أعزّ مكانٍ في الدُنيا سرجُ سابحٍ
وخيرُ جليسٍ في الزّمانِ كتابُ

# كِفايَةُ النّحو

پشتو شرح

# هِدايَةُ النّحو



شيخ الصرف والنحو حضرت مولانا
ابو حماد نصير الحق صاحب
شالپين سوات

مكتبة الاشاعت
محله جنگی پشاور

زیر اہتمام
مولوی نقیب الله حنیف
0345-9459209
0300-5875425

## فهرست كفايت النحوشرح هدايت النحو

## مقدمة الكتاب

**سبب د تالیف:**

علم النحو په علوم شرعیوکښې ډیرلوی حیثیت لری لکه ونیلے شویدی چه: الصرف ام العلوم و النحوابو ها.

دارنګه النحوفی العلوم کالقمرفی النجوم اوداعلم مشتمل دے په ډیرو قواعدو،کلیاتو،اوجزئیاتواودامحنتونه د سلف صالحینو دی چه دهغوی په مونږډیراحسانات دی چه څمونږه زمانے ته په خپلو محنتونو سره داسلسله علمی په تعلیم اوتعلم سره راورسیده.

الغرض په علم النحوکښے "کتاب هدایة النحو" لویه مرتبه لری او همدغه وجه ده چه علماؤپدے باندے ډیرشراح لیکلی دی پدے کښے څه په درجه دطوالت کښے دی اوڅه په نهایت درجه داختصارکښی دی چه ددوی نه اخذ دمبتدیانودپاره ګران وو.نوبنده هم ددغه شراحونه اخذ اوکړواوپه درجه دتوسط کښے ئے مبتدیانوته دامجموعه وړاندے کړه په شکل دتعاون کښے ددوی سره په علم نحوه کښے په نهایت اسانے طریقے سره بیاهم داوایم که څه غلطی پکښے وی نودهغے تصحیح دے اوشی اوددے نسبت دے مؤلف ته اوشی نه ماخذته.

اجرکم علی الله. ، العبد نصیر الحق بقلم خود، تاریخ:2006/6/4،۷ربیع الاول ۱۴۲۷ھ

### دمؤلف مختصر حالات

اسم. ابو حمادنصیر الحق عفی عنه تاریخ پیدائش: **1965**.

اسم ابیه مولاناغلام احمد(مرحوم) المعروف به شالپین مولوی صاحب

القریة: شالپین من مضافات سوات عزیحیل صوبه سرحدپاکستان.

مدرس. سابقه مدرس مدرسه منار التوحیدو السنة(متہ)سوات

اوحالامدرسه خلفاء راشدین شالپین.

مسکن حالًا : تحصیل خوازه خیله ګاؤں جانوبیله سوات.

**تالیفات :**

(۱) تبیان نصیر شرح نحومیر. (۲)کفایة النحوشرح هدایة النحو.

## امتيازات شرح كفاية النحو شرح هداية النحو

(۱) په درجه دتوسط كښې ده نه ډيره لنډه اونه ډيره طويله.

(۲) په اسانه پښتوژبه كښې ليكلې شوې ده.

(۳) داكثرعبارتونودكتاب مختصراً حل تركيب پكښې شوې دے اوپه بعضې مواضعو كښې ترك كړې شوې دے.له وجې دظهوردتركيب نه.

(۴) ترجمه دعبارت دكتاب پكښې شوى ده.

(۵) مناسب تشريح اودليل دمسئلې پكښې ذكرشوې دے.

(٦) دماسبق تشريحاتودزيات وضاحت دپاره بيا هم په نقشه كښې راغستلې شوى دى.

(۷) په اخردهرمبحث كښې اكثرتمرين په اياتو دقرانيووسره اوپه بعضې مواضعو كښې احاديث اوپه بعضې مواضعو كښې په امثال عربيه سره شوې دے.

(۸) دبعضوتمريناتودموقع په مناسبت سره مختصراً تركيب هم ذكرشوې دے.

وماتوفيقى الابالله العظيم الكريم اللهم وفقنا لما تحب وترضى برحمتك يا ارحم الراحمين.

❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖

❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖

❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖ ❖

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العلمين الذى نزل القرآن بلسان عربى مبين و الصلاة و السلام على رسوله افصح العرب وعلى اله واصحابه وعلى من تبعهم الى يوم الدين۔

**امابعد** دهرعلم د شروع نه مخکښې ديو څو څيزونو پيژندل ضروري دی :

(۱) تعريف دعلم ددے دپاره چه طلب دمجهول مطلق لازم نشي.

(۲) موضوع دعلم ددے دپاره چه يوعلم دبل علم نه ممتازشي.

(۳) غرض دعلم ددے دپاره چه طلب دعبس لازم نشي.

(۴) واضع دعلم ددے دپاره چه دعلم عظمت اوشان په زړونو کښې راشي.

(۵) تاريخ دعلم ددے دپاره چه دلويولويوعلماؤ دهغه محنت معلوميدوسره زيات عظمت دعلم په قلوبو کښې راشي.

(٦) مقام ومرتبه دعلم ددے دپاره چه ددے علم دتعليم اوتعلم شوق پيداشي.

(۷) **دکتاب د مصنف تعارف**: ددے دپاره دکتاب عظمت په زړونو کښې راشي ځکه دمصنف په عظمت سره دکتاب عظمت وي.

**تفصيل** : اولنئ درې خبرې تعريف موضوع اوغرض دعلم په کتاب هداية النحو کښې دننه موجوددے اوتشريح به هلته کيدے شي انشاء الله.

څلورمه خبره واضع دعلم :دعلم نحود واضع په باره کښې ډيراقوال دی :

ده ابو الاسود دُئيلي نه نقل شوی دی چه زه دامير المؤمنين حضرت عليؓ په خدمت کښې حاضرشوم هغه په سوچ کښې ناست ووماترينه تپوس اوکړلو حضرت ولے هغه اووئيل دعجم دعرب سره داختلاط له وجے لغت عربي کښې فسادراغلے دے نوماديو څواصولو دمنضبط کولو اراده کړے ده که په دے عمل اوشي نودفسادنه دتحفظ سبب به اوګرځي درې ورځې پس بيا زه حاضرشوم هغه ماته يو رقعه راکړه په هغے کښې داسے وو بسم الله الرحمن الرحيم الكلام كله ثلثة اسم وفعل وحرف فالاسم ما انبأ عن المسمى و الفعل ما انبأ عن الفاعل والحرف ما انبأ عن معنى ليس باسم ولا فعل حضرت اوفرمائيل بدے

كـتـبـے اضـافـه اوكـړه نـو مـاخه مزيدقواعدعطف لغت تعجب استفهام باب انّ وغيره جمع كړل هـغـوی ته مامسوده پيش كړه لكن دحروف مشبه بالفعل نه مالكن نوذكركړے هغوی اوونـبـل داورسـره هـم شـامـل كـړه نـويـوه مـجـموعه دقواعدونحويه مرتب شوه حضرت علیؓ چه وليدل نـوويـے فـرمـائـيـل مـااحسن هذا النحو الذی نحوت ددينه معلومه شوه اول واضع دعلم نحو ے حضرت علی كرم الله وجهه دے اوداقول مشهوردے.

**٢- دعلم نحواول واضع** حضـرت عـمـرفـاروقؓ دے.يـو اعرابی راغـے چه هغه دقران كريم دتـلاوت مـطـالبـه اوكـړه نوعجمی قاری دقران تلاوت شروع كړوكله چه نـے دقران كريم دسورت برأت ددے آيت تلاوت شروع كړو: ﴿إن الله بریٔ من المشركين ورسوله﴾ په كسـره دلام درسوله سره هغه تلاوت كړومعنی غلطه شوه الله دمشركينو نه بری دے اودخپل رسول نه هم بری دے نـواعـرابی اووئـيـل ان كان الله بریٔ من رسوله فانابریٔ منه نو حضرت عمر چه كله داخبره واوريدله نوډيرغمگين شواوپه فكرسره ئے يو څوقواعدوضع كړل.

٣- قول بعضی وائی چه عبد الرحمٰن بن هرمزالاعرج دے.

٤- څلورم قول بعضی وائی نصربن عاصم دے.

## پینځمه خبره: تاريخ دعلم النحو

**دوراول** حضرت عمرؓ حضرت علیؓ اوحضرت ابوالاسوددئيلی دوی بنيادايخودے دے.

دورثـانـی : ابـنـاء ابـو الاسـود دئـيـلـی. دارنـگه ابو اسحاق عيسـی الثقفی .دارنگه ابو عمروبن الـعلاء دارنگه نضربن عاصم اوعبدالرحمٰن هرمز الاعرج يحی بن يعمرؒ دوی علم النحوته ترقی وركړه تدريجاً تدريجاً.

**دورثالث** : ابـو عـمـروبـصری اودهغه شاگردابوعبد الرحمٰن خليل بن احمدفراهيدی اودخليل شـاگردامـام ابـوبشـرعـمروبن عثمان چه مشهوريه سيبويه دے. المتوفی سـ١٦١ـه هجری.سيبويه پدے فن كتبـے كتاب السيبويه اوليكلواوابوعمروعيسی بن عمرو الثقفیؒ دوه كتابونه اوليكل: ١الاكـمـال ٢:الـجامع.ددے نه بعدنحات دوه فريقی شوی دی (١)نحات كوفه(٢) نحات بصره دے دواړوفـريـقـيـنـودعـلـم نـحـو ے ډيرپـه ښـه شان سره وضـاحت اوتشريح اوتـشـهـيرپـه افاقو كتبـے اوكړوليكن بيا هم په تدوين اوايجاد دعلم نحو كتبـے علماء ونحات بصره مقدم دی په علماء ونحات

کوفه باندے اوهم نحات بصره اساتذه دنحات کوفه دی.ددوی په خپل مابین کښے ډیرے مناظرے اومقابلے شوی دی حتی چه هره یوه ډله جدا جدامذهب پدے فن اوعلم کښے اوګرځیده.امام علماء کوفه(۱) امام فراء(۲). امام کسائی امام علماء بصره(۱).سیبویه(۲) خلیل.

## مشهور ائمه فن

(۱) علامه الزمخشری ابو القاسم المتوفی۵۳۸ هجری.

(۲) علامه ابوعبدالله محمدبن مالك المتوفی۶۷۲ ددہ تصنیف الفیه

(۳) علامه جمال الدین عبدالله بن یوسف المعروف بابن هشامؒ المتوفی۷۶۲ هجری.دده مشهورکتاب په علم نحوکښ (۱)اوضح المسالك(۲)مغنی اللبیب عن کتب الاعاریب.

(۴) علامه الشیخ جمال الدین ابوعمروعثمان بن عمربن ابی بکر المالکی المتوفی۶۴۶ دده مشهورکتاب پدے فن کښے کافیه.

(۵) - علامه سید السند شریف الجرجانی المتوفی ۸۱۲ وافیه شرح کافیه دزمانے دطفولیت تصنیف دے دده اوفن علم نحوکښی مشهورکتاب دده نحومیرچه اوس هم په مدارسو کښی شامل نصاب دے.

نورائمه هم دی مثلازجاج محمد بن سراج ابوعلی فارسی عبد القاهرجرجانی امام ثعلب امام رضی مبرداخفش ابن هشام وغیره وغیره.

## شپږمه خبره مقام اومرتبه دعلم نحو

علوم په دوه قسمه دی علوم مقصوده عالیه ۲ .علوم غیرمقصوره غیرعالیه.

مقصوده عالیه علم تفسیرعلم حدیث علم الفقه وغیره.

غیرمقصوده غیرعالیه لکه نحو شوه وغیره ځکه دابالذات مقصودعلم نه دے بلکه اله دمقصودده او موقوف علیه دمقصودده ددے وجے نه صاحب مفتاح فرمائی دعلم نحو حاصلول فرض کفایه دی دحضرت علی قول دے تعلموا النحوکماتعلمون السنن و الفرائض امام سجستانیؒ فرمائی: تعلمواالنحوفانه جمال للوضیع وترکه محنة للشریف امام کسائیؒ وائی : انما النحوقیاس یتبع وبه کل علم ینتفع .

دعلم نحودعظمت اومرتبے په باره کښے اظهارارشاداتوکړے دے.

۱- النحوفی الكلام كا الملح فی الطعام.

۲- النحوفی العلوم كا لضوء للنجوم.

۳- النحوفی الكلام كالضوء فی الظلام.

۴- الصرف ام العلوم و النحوابو ها.

**اومه۷خبره دهدایت النحو د مصنف تعارف**

**دمصنف نوم :** محمدكنیت ابو حیان دپلارنوم یوسف .

**سلسله نسب :** ابو حیاّن محمدبن یوسف بن علی بن حیان الاندلسی.

ولادت : د شـوال میاشـت غـرنـاطـه ښار.ابتدائی عمركښې حفظ كړے دے.تجویداوحدیث علم قـرات كښې پـوره مهارت حاصل كړے وو.صلاح الدین صفویٰ چه دده هم عصرد ے وائی كان امیر المؤمنین فی النحو.**وفات:**یوقول:۷۴۲ھ یا ۷۴۵.ماخذتذكرة المصنفیـن.

**اسفار :** مصر، عراق،شام،حجاز،یمن ته ئے سفردعلم دپاره كړے وو.

**اساتذه :**

(۱) ابو محمدعبد الحق . (۲) ابو جعفرغرناطی.

(۳) اوحافظ ابوعلی حسین بن عبد العزیزؒ.(۴) علم الدین عراقی.

(۵) ابو جعفربن زبیر. (٦) ابو الحسن.

(۷) ابو جعفربن زبیر. (۸) ابو جعفرلیلیؒ.

(۹) اوابن صائغ دی.

**تلامذه :** (۱) ابن عقیل. (۲) ابـن هشـام . قـابـل ذكـردی.اوددوی نـه علاوه ئـے نورهم ډیرشاګردان دی.

**تصانیف :** "٦۵"كتب په عربی اوفارسی ژبه كښې چه مشهوردهغـے نه دادی:

(۱) البحر المحیط تفسیر القران المجید (۲) شرح تسهیل.

(۳)منهج السالك شرح الفیه. (۴)هدایه النحو.

بسم الله الرحمن الرحیم

مـصـنـف ده هـدایـت الـنـحـو خپل كتاب په بسم الله سره شروع كړوېدے سره یو څوقواعد

حاصل کړه: (۱) د تبرك دپاره، چه ز ماكتاب بركتي شي. (۲) اقتداءً بالقرآن.

(۳) چه په حديث باندے هم عمل راشي چه كوم دابتداء بالتسميه باره كښے دے: كل امرذى بال لم يبدأفيه ببسم الله فهو ابتر. (۴) دشيطان درجم دپاره لكه چه په حديث كښ دى: من قال بسم الله يذب الشيطان كمايذب الرصاص في النار.

(۵) په كفاروباندے د رد دپاره ځكه چه هغوى به په خپلو كارونو كښ دخپلو دمعبودان باطله په اسماؤسره شروع كوله باسم اللات و العزى.

(٦) دپاره داتباع دسلف صالحين. هغوى خپل كتابونه په بسم الله الرحمٰن الرحيم مصدر كړى دى. ددے دپاره چه استعانت اومدد حاصل شي بسم الله مركب ده داسماء ثلاثه دالله تعالى نه يو اسم ذاتي چه لفظ ده الله دے اودوه صفتي چه الرحمٰن او الرحيم دى پدے كښے يو اسم صفتي مختصه ده الله تعالى چه الرحمٰن دے دويم اسم صفتي غير مختصه په الله تعالى پورے چه الرحيم دے.

**الرحمٰن الرحيم** داواړه درحم نه مشتق دى دوى كښے معنى دمبالغے ده دلفظ ده الرحمٰن معنى ده: ذو الرحمة التى لاغايت لهابعد الرحمة

ددے وجينه دعلماؤقاعده ده. لايطلق الرحمن الاعلى الله.

## الفرق بين الرحمٰن و الرحيم.

(۱) – فرق اول باعتبار كيفيت يعني باعتبار كثرت افراددرحمٰن تعلق ددينوى نعمتونوسره دے چه شامل دے مومنانو اوكفاروتولوته. اود رحيم تعلق دنعمتونو اخرويؤسره دے چه دهغے نه كفارمحروم دى پدے اعتبارسره مرحومين درحمٰن زيات اومرحومين درحيم كم.

۲. فرق: باعتبار كيفيت چه درحمٰن تعلق ددواړو اولنو نعمتونو سره دے دنيا كښ واړه نعمتونه هم شته اولوى هم شته اودرحيم تعلق صرف دلويو نعمتونو سره دے.

حل تركيب: با حرف جر اسم مضاف الله موصوف الرحمٰن صفت اول الرحيم صفت ثاني موصوف سره دصفتينو نه مضاف اليه شو دمضاف مضاف سره دمضاف اليه خپل نه مجرور شو دجار جارسره دمجرونه ظرف مستقر متعلق په اشرع يااصنف فعل محذوف پورے فعل سره دفاعل نه اودمتعلق خپل نه لفظاجمله خبريه معناانشائيه.

**سوال**: درحمت لغوی معنی ده رقة القلب بحیث یقتضی الفضل و الاحسان او الله تعالی د رقه القلب نه مبری اومنزه دے نورحمٰن اورحیم ځنګه دالله صفتین واقع کیږی؟

**جواب**: دصفات یوه مبدأ رقت القلب دے لکن منتهی اوغایه ددے فضل اواحسان دے دلته غایه اومسببات مراددی ذکر الاسباب واراده المسببات دقبیل نه دی چه دایوقسم دمجاز مرسل نه دے.

الحمد لله رب العٰلمین ترجمه: ټول صفتونه ثابت الله لره دی چه رب دتمام عالم دے.

**تشریح**: مصنف د تسمیه نه روستودتحمیدذکرکړے دے پدے سره هم یو څو فوائد حاصلول غواړی:

(۱) اقتداءً بالقرآن. (۲) عملًا بالحدیث. (۳) اتباع سلف الصالحین.

حمد په لغت کښے ستودن ته وائی او اصطلاحا کل حمد من الازل الی الابدمن ای حامد من الخلائق اومن مخلوقه مختص لله تعالی. پدے کښے تعمیمات ثلاثه اوتخصیص واحده دے.

(۱) تعمیم الحمد. دامعلومیږی دالف لام نه چه دجنس دپاره دی یاداستغراق دپاره ده.

(۲) تعمیم الزمان. اے من الازل الی الابدداده جملے اسمیه نه معلومیږی چه معدوله ده دجملے فعلیه نه.

(۳) - تعمیم الحامد. دا دعدم ذکرحامد اوفاعل حامدنه معلومیږی.

(۴) - تخصیص الحمد. دامعلومیږی دلام جاره نه په لفظ ده لله کښں لام جاره اختصاصیه دے چه ګرځی یوشی مختص په خپل مدخول پوری.

ربِّ: دامرفوعا اومنصوبااومجروروادری واړه لوستل صحیح دی که مرفوع شی نو خبردمبتداء محذوفے دے اے هورب العٰلمین اوکه منصوب شی دری احتماله دی:

(۱) بناء برحال. (۲) منصوب علی المدح.

(۳) منادی بحذف حرف النداء. اوکه مجروراشی نوبیادری احتماله لری:

(۱) بناء برصفت. (۲) بدل الکل. (۳) عطف بیان.

رب مدبر، مالك، متصرف، مربی الفاظ مترادفه دی معنی ددوی یوه ده.

**حل ترکیب** : الحمد مبتداء لام جاره الله موصوف رب مضاف العالمین مضاف الیه مضاف بامضاف الیه صفت موصوف موصوف باصفت خبرمبتداء مبتداء با خبر جمله اسمیه خبریه لفظاً جمله اسمیه انشائیه معناً .

**العالمین**. عالمین جمع ده عالم ده اوعالم صیغه ده اسم اله ده بمعنی مایعلم به الشیء ته وئیلی لکه خاتم مایختم به اطلاق دعالم په جمیع ماسوی الله باندے کیږی.

**سوال** : هرکله چه اطلاق په کل ماسوی الله باندے دمفردکیږی نو جمع نی ولے ذکرکړه سره ددے چه جمع فرع دمفرد ده ذکرداصل متعذرنه دے ولے فرعه ذکرشوه؟

**جواب** : جمع نی ذکرکړیده په اعتباردکثرت دانواعوسره عالم انس عالم جن عالم ملائکه اوپه صیغه دجمع دذوی العقول ذکرکړه لوجے دشرافت ددوی نه په غیرذوی العقول باندے.

**وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِیْن** ترجمه : غوره عاقبت دمتقیانودپاره دے.

**حل ترکیب** : واو استیناف العاقبة مبتدأ لام جارمتقین مجرور جارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق په ثابتة فاعل ثابته ضمیرمستتره چه تعبیرترینه په هی سره کیږی راجع العاقبه صفت سره دفاعل خپل نه اومتعلق نه شبه جمله خبردمتدأ مبتدأ سره دخبرنه حمله اسمیه خبریه شوه. العاقبة چه کوم الف لام داخل دے داعوض دمضاف نه دے اصل عبارت داسے دے خیر العاقبة یا حسن العاقبة بامضاف حذف عوض دهغے نه الف لام راوړلے شولے که الف لام عوض نشی دمضاف الیه نه نو عاقبت انجام خیر اوشردواړولره شامل دے حالانکه دمتقینودپاره دشرانجام نه دے بلکه خیرانجام دے.

(۲) توجیه : العاقبة موصوف دے ددے دپاره صفت محذوف دے چه المحموده دے اصل عبارت داسے دے : العاقبة المحمودة للمتقین

عاقبت صیغه ده مصدرده په وزن د:فاعلة لکه کاذبة چه مصدردے په وزن دفاعله.متقین جمع دمتقی ده معنی ددے (۱) الذی یتقی الشرك وكسب الكبائر.

(۲) اذاقال قال لله واذاسکت سکت لله. (۳) الذی لایری نفسه خیراً من احد.

پدے عبارت سره مصنف طلباؤته ترغیب اوتنبیه دصحیح عمل وړکوی لکه فرمانی.

لو کان للعلم شرف بدون التقوی لکان الشیطان اعلی منزلة

و الصلاة علی رسوله محمدواله و اصحابه اجمعین : اورحمتونه دے نازل وی په رسول الله چه نوم دهغه محمدﷺ دے اوپه آل دده اواصحابوټولودده.

**حل ترکیب** : واوعاطفه الصلاه مبتداعلی جاررسول مضاف ه ضمیرمضاف الیه مضاف بامضاف الیه معطوف علیه محمدعطف بیان یامبدل منه. بدل سره دمبدل منه نه معطوف علیه واوحرف عاطفه ال مضاف ه ضمیرمضاف الیه راجع الی محمدمضاف بامضاف الیه معطوف علیه واوحرف عاطفه اصحابه مضاف مضاف الیه معطوف،معطوف سره دمعطوف علیه نه مواکد اجمعین تاکیدمواکدسره دتاکیدنه معطوف علیه شودپاره دمعطوف چه رسوله دے معطوف علیه سره دمعطوف نه مجرورشودجار جارسره دمجرونه ظرف مستقرمتعلق په نازلة نازلة شبه جمله خبردمبتدا چه الصلاة دے مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معناجمله اسمیه انشائیه معطوفه.

**تشریح** : مصنف د حمد باری تعالی نه رووسته ذکردصلاة اوسلام اوکړو ددؤوجونه:

(۱) چه دقران کریم دحکم تعمیل اوشی : یا ایها الذین امنو اصلو اعلیه و سلموا تسلیما

(۲) الله تعالی محسن اومنعم حقیقی دے اوحضورﷺ محسن مجازی دے ده الله ده احکامودرسولو رسول یوه ذریعه ده نوهرکله چه مصنف دمحسن حقیقی ثناء اوتعریف اوکړونومناسب ئے اوګنړله چه د محسن مجازی حق هم اداکړی ددے وجینه صلات علی النبی ذکرشو.

(۳) مصنف په ذکردصلات اوسلام سره اشاره اوکړه چه داتصنیف دمسلمانانو دتالیف نه دے ځکه دمسلمانانواودکافرانوترمینځه یوفرق په صلات اوسلام سره هم دے.په خلاف دحمدسره داخوکفارهم کوی.

**د صلوٰة لغوی معنی** : (۱) دعاء . (۲)رحمت، (۳) استغفار. (۴)تسبیح.

اواصطلاحا صلاة عبارت دے دارکان مخصوصه په اوقات مخصوصه دلنه ددے حملے معنی اضافة الخیرمن الرب المعبودنازلة علی رسوله المحمود.

**قوله رسوله** رسول لغةً معنی رالیګلے شوے اواصطلاحا هوانسان بعثه الله تعالی الی الخلق لتبلیغ الاحکام ومعه کتاب .نبی عام دے چه کتاب ورسره وی اوکه نه وی اورسول

خاص دے.

**قـولـه محمد** : لـفـظ مـحـمـد داسـم مـفـعـول صیغه ده دباب تفعیـل نه اوخاصـه دد ے باب تـکثیرهم راځی معنی داشوه چه هغه ذات چه دهغه فضائل محموده کثیردی دحضورﷺنوم مـحـمـدنیـکـه یـاوالـدمـاجـده ایخودے ووپه زمکه کښے په محمدسره مسمی وو. اوپه اسمان کښـے په احمدسره.

لـفـظ محمد مرفوعا منصوبا اوکه مجرور دری واړه احتمالات صحیح دی اوکه مرفوعاشی نوخبرېشی دمبتدامحذوفـے ای هو محمداوکه منصوب شی نوبنابرحال به وی اوکه مجرورشی نـودوه احتـمـالـه دی بـدل، یاعطف بیان لکن عطف بیان به دبدل نه اولی وی وجه داده چه مبدل مـنـه پـه کلام کښـے مقصودنه وی بدل وی اودلته کښ دواړه درسول مبدل منه دے دازیات دے په صفت کښ دبدل نه چه محمدذے اوپه عطف بیان کښ دواړه مقصودوی داځکه اولی دے.

**قـوله وآله** : ال اسم جمع ده دسیبویه اودبصرینوپه نزدباندے داپه اصل کښـے اهل وودینه خلاف القانون هاحذف شوه ال شودلیل ددوی تصغیرددے اهیل راځی قانون دادے التصغیرو التکسیریردان الشیء الی اصله.

**فائده** : **فرق د آل او اهل** :

(۱) د ال استعمال اواضافت ذوی العقولوته کیدے شی ددے وجینه لفظ دالله اوحق اوزمان اومـکـان اوحروف اومعانی دوی ته اضافت نشی کیدے نو الله آل حق آل زمان آل مکان وغیره نشـی وئـیـلـی بـخـلاف اهـل. (۲) فـرق دال اضـافـت ذوی العقول مذکرته کیدے شی مونث ته نشی آل فاطمه نشی وئیلے بخلاف اهل.

(۳) فـرق د ال استـعمال په اشراف کښ کیدے شی مطلقاشرافت دنیوی وی اوکه اخروی وی آل نبی یـاآل فـرعـون وئـیـلـے شـی فـرعـون تـه شـرافـت دنـیـوی حـاصـل وو. چـه بـادشـاهی وه ددنیا.بخلاف اهل ددے استعمال په اشراف اوغیراشراف دواړوکښ کیدے شی اهل حجام اهل حائك وغیره وئیلے شی.

(۴) دآل اضافت ضمیرته جائزدے بخلاف اهل دده اضافت ضمیرته جائزنه دے.

## د آل نبی مصداق کښې اختلاف دے

(۱) او بعض علماء متبعین دنبی اخلی.

(۲) او بعض علماء ازواج مطهرات اوبنات نبی اخلی. (۳) او بعض علماء اهل بیت اخلی.

**قوله واصحابه** : اصحاب اصل کښې جمع دصَحِبٌ ده لکه انمارجمع دنَمِرٌده یااصحاب جمع دصاحب ده لکه اطهارجمع ده طاهریااصحاب جمع ده صِحب ده لکه انهارجمع ده نهرده.

**تعریف صحابی:** صحابی هغه کس ته وئیلی شی چه پیغمبرعلیه السلام هغه لیدلے وی اوایمان ئے پرے راوړے وی برابره خبره ده چه روایت دحدیث ترینه کړے وی اوکه نه.اوهمدارنگه که داصحبت قلیل وی اوکثیروی اوبیاسره دایمان نه وفات شوے وی.

**قوله اجمعین** : دالفظ داجمعین تاکیدمعنوی دے دپاره دآل اواصحاب اودا تاکیدمصنف ذکرکړے دے دپاره دردپه روافضوباندے هغوی په بعضی اصحابو باندے صلات وائی اوپه بعضونه دوجے ددشمنئ ددوی نه دهغوی سره.

۲- دویم پدے سره مصنف ردکوی په خوارجوباندے دوی صلات نه وائی په آل درسول اللهﷺباندے دوجے دمعاندے اودشمنئ نه دحضرت علی کرم الله وجهه سره.

**اما بعد فهذا مختصر** : پس ددے مذکورنه دایو مختصرکتاب دے.

**حل ترکیب** : اماحرف شرط قائم مقام فعل شرط محذوف اصل عبارت داسے دے مهمایکن من شیء بعد البسمله و الحمدو الصلات بعدظرف زمان مقطوْع عن الاضافت مبنی برضمه مفعول فیه داده اماحرف شرط چه قائم مقام دفعل شرط دے یامفعول فیه دفعل شرط محذوفه فاجزائیه هذامبتدامختصرموصوف.

**تشریح** : اماکښې د نحات اختلاف دے سیبویه وائی دامستقله کلمه برأسهاده تغیرتبدیل نه کوی ابتداء ته نقل شوه اومتحرکه شوه ام ماترے جوړشوبعده میم درمیم ادغام کردنداماشدبعض نحات وائی اصل ددے ان دے اومازائده دے لکن دامذهب ضعیف دے راجح مذهب دسیبویه دے.

امایه کلام دعربوکښې ددوه معانیودپاره مستعملیږی.برائے تفصیل مااجمل مثال جاء نی القوم امازیدفاکرمته واماعمروفاهنته وامابشرفاعرضت عنه.

۳- براے استيناف دابه هله مستعمليږی چه ماقبل كښ اجمال نه وی مثال لكه دااما چه په سردكتابونوكښ ذكرشوے وی.

**قوله بعد** : بعدظرف دے دظروف زمانيوونه مقطوع الاضافه منبی علی الضمه ددے تفصيل به په بحث دظروف كښ راځی ان شاء الله تعالی.

**قوله فهذا** : هذا داسماء اشارات نه دے پدے سره اشاره كيدے شی مشاراليه مفردمذكرته.

**سوال** هذاوضع شوے دپاره دمشاراليه محصوص بالبصردلته اشاره ده كتاب ته اوهغه غيرمحسوس دے. **جواب** كله چه غيرمحسوس تـه درجه دغيرمحسوس وركولے شی نواشاره ورته كولے شی لكه ذالكم الله ربكم.

**دويم جواب۲** : بعض شارحين وائی دلته خطبه الحاقيه ده چه داده كتاب ليكلونه وروسته ليكلے شوے ده نوپه هذاسره مشار اليه كتاب دے.

**قوله مختصر** : صيغه داسم مفعول ده باب افتعال نه مصدرئے اختصاردے معنی ئے اداء المطالب الكثيرة بالفاظ قليلة یاهوكلام قليل المبانی كثير المعانی.كتابونه په څلورقسمه دی :

(۱) رساله : قليل الفاظ قليل المعانی.

(۲) فتاوی : كثيرالالفاظ كثيرالمعانی.

(۳) مختصر: قليل الالفاظ كثيرالمعانی.

(۴) مطول : كثيرالالفاظ قليل المعانی.

مصنف په مختصراسره اشاره اوكړه چه څماكتاب دحوش اوتطويل نه محفوظ دے حشوعبارت دے دهغه زيادت نه چه دالفظ زائده به معين وی مثال فی بئرلا حور،پدے كښ دالفظ دلازائدمعين دے ،راغلے دے په مابين دمضاف اومضاف اليه كښ اوتطويل عبارت دے ددينه چه لفظ زيات وی دمعنی نه اوپدے زيادت كښ څه فائده نه وی اودالفظ زائدمعين هم نـه وی مثاوالفی قولهاكذباومينابدے قول دلفظ دكذبامعنی هم دروغ دی اودلفظ دمينامعنی هم دروغ دی نودايولفظ پكښ زائددے اودازيادت بلافائده دے اوغيرمعين دے.

مضبوط فی النحوجمعت فيه مهمات النحو : داسے مختصرچه مضبوط دے نه علم نحوكښ جمع كړی دی ما پدے كښ مقاصد د علم نحو.

**حل الترکیب**: مضبوط صفت اول مختصرفی جار النحو مجرورجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعل په کائن پورے داصفت ثاني جمعت فعل فاعل فیه جارمجرورظرف لغوه متعلق په جمعت مهمات النحو مضاف مضاف الیه مضاف بامضاف الیه مفعول به جمعت.

**تشریح**: پدے عبارت سره چه شروع دے دهذا مختصرانه الخ شان دکتاب ذکرکوی چه دامـایوعـظـیم الشـان کتـاب اولیـکـلـو یـوخوالـفـاظ کم دی اوبل مطالب اومعانـی ئـے ډیـردی اوبیامقاصددعلم پکښ ماراجمع کړی دی بل اشاره ده عبارت کښ چه کتاب په فن دعلم نحو کښ.

**سوال**: في النحوداظرف دماسبق دپاره صحیح نه دے ځکه چه ظرف یازماني وي یامکاني وي نـحـو نه زمانه ده اونه مکان دے. **جواب**: ظرف پـه دوه قسـمه دے ظرف حقیقي چه هغه زمـانـه وي یـامـکـان وي لـکـه سافرت شهراً في شهرٍ یاجلست في المسجد. دویم ظرف مجازي اعتـباري دے پـدے کـښ مـدخـول فـي ظرفـي زماني اومکان نه وي بلکه مدخول دده عام وي دمـاقبـل خاص نـه لـکـه زیـدفـي الـعـلـم زیـد.خاص علم عام یابالعکس لکه العلم في زید دلته مـدخـول د فـي چه زیددے خاص دے دماقبل عام چه العلم دے نودلته ظرف مجازي اعتـباري دے چه في النحودے.

علی ترتیب الکافیة : په ترتیب دکافیه باندے.

**حـل الـتـرکـیـب**: عـلـی جـارتـرتـیـب مـضـاف الـکـافـیـه مـضـاف الیه مضاف بامضاف الیه مجرورجار جارمجرورظرف لغوه متعلق په جمعت پورے.

**تشریح**: مصنف نسبت دترتیب ددے کتاب کافیه ته کړے ددے تقریبااوه ۷ وجے دي:

(۱)دکافیه ترتیب موافق طبعیت اوذوق مستقیم دے ځکه مصنف داترتیب غوره کړو.

(۲) کـافـیـه مشـهـوره ده پـه مشـارق اومـغـارب کـښ مـصـنـف وائـي چه څماکتاب هم دغه شان مشهورشي. (۳) داکتاب عمده شي په قواعدودنحو کښ پشان دکافیه.

(۴) چه تعظیم دمصنف ددے کتاب راشي پشان دکافیه.

(۵) داکتـاب تمهید اوتیارے جوړشي دکافیه دپاره نو مبتدي ته به وروستود ازده کولودے کتـاب نـه ازده کـول دکـافـیـه اسان شي. (٦) چه توجه دطالبانودے کتاب ته پیداشي لکه څنګه چه کافیه ته توجه ده. (۷) چه اجابت دمسؤل راشي ځکه دمصنف ددے کتاب نه سوال شوے

دے په جوړولو دکتاب پشان دکافیه په ترتیب کښې.

**سوال**: هدایت النحو کښې ډیرمسائل داسے دی چه په ترتیب دکافیه نه دی مثلاتحذیر اومااضمرعامله دمنادی دبحث نه مخکښې ذکردی اوکافیه کښې بحث دمنادی مقدم دے.بل بعض مسائل کافیه کښې موجوددی لکه تضمن دمبتدامعنی دشرط لره اومسئله دتضمن دخبرمفرددارنګه حکم داسم فاعل داسماء اعدادنه نوداځنګه په ترتیب دکافیه دے؟

**جواب**: مراد ددے ترتیب نه هغه ترتیب دے کوم چه کتاب کښې ذکردے اوترتیب په مسائلوکلیوکښې دے نه په مسائلوجزئیوکښې.

**مبوباومفصلا**: په حال ځماکښې چه زه باب باب اوفصل فصل کونکے یمه یاپه حال کون دمختصرکښې چه باب باب اوفصل فصل شوے دے.

**تشریح**: دادواړه صیغے داسم فاعل دی یااسم مفعول دی دباب دتفعیل نه دتبویبامصدرنه اسم مفعول دے بنابرحالیت ذو الحال کښې دیوبل نه جدادی.که صیغه داسم فاعل نودابه حال شی دضمیردجمعت مرفوع متصل نه چه فاعل دجمعی دے معنی به داسے پیداسے حال کښې چه زه باب باب اوفصل فصل کوونکے یمه دے مختصرلره اوکه صیغه داسم مفعول شی نو حال به شی دضمیرمجروره دفیه نه چه راجع دے مختصرته معنی داشوه چه په حال کون ددے مختصرکښې چه باب باب اوفصل فصل شوے دے.

**قوله بعبارة واضحة**: په عبارت واضحه سره.

**حل ترکیب**: مبوباصیغه داسم فاعل معطوف علیه واوحرف عاطفه مفصلاصیغه داسم فاعل معطوف معطوف علیه بامعطوف حال دجمعت دضمیرفاعل نه باجاره موصوف واضحه صفت اول.

**تشریح**: دا قول بعبارة دے دامتعلق دے په جمعت پوری اوواضحة وعبارة صفت عبارت واضحه هغه عبارت ته وئیلے شی چه په خپله معنی دلالت کولوکښې ظاهروی اوبغیردڅه صعوبت نه په فهم کښې په اسانئ سره راځی. --- داعبارت په اصل کښې جواب دیوسوال دے چه مخکښې مصنف اووئیل چه داکتاب په ترتیت دکافیه دے نوسائل سوال اوکړوچه دابه دکافیه پشان مغلق اوګران وی نومصنف جواب پدے عبارت سره ورکړوچه مقاصددنحوبه په

عبارت واضحه سره بيانوى نه په عبارت مغلق سره پشان دكافيه.

**قوله مع ايراد الامثلة** : سره دراوړلو دمثالونو نه.

**حل التركيب** : مع مضاف ايراد مصدر مضاف الامثله مضاف اليه.

**تشريح**: دا ظرف متعلق دے په واضحة پورے ايراد دباب افعال مصدر دے صيغه دامثله جمع دمثال ده لکه ائمه جمع ده امام ده مثال ديته وائى چه يوشے دقاعدے دوضاحت دپاره راوړے شوے وى.

**فى جميع مسائلها** : په ټولو مسائلوکښ.

**حل التركيب** : فى جارجميع مضاف مسائل مضاف اليه مضاف بسوى ضمير مضاف اليه مضاف سره دمضاف اليه نه مضاف اليه دمضاف شودمع ،مع سره دمضاف اليه نه مفعول فيه دجمعت.

**تشريح** : سوال دمسائلهاضميرراجع دے مختصرته هغه مذكردے اوضميرها مونث دے مطابقت نشته بين الضميرومرجعه. **جواب** : ضميرراجع دے مختصرته لکن مختصرمنسوب دے كافيه ته اوهغه مؤنث دے. **سوال** : كافيه كښ تاء دتانيث دپاره نه ده بلكه دمبالغے دپاره ده څرنګه ضميردمؤنث ورته راجع كيږى.

**جواب** : اووضع دتااصل كښ د تانيث دپاره ده نوكه استعمال ددے په مبالغه كښ اوشى نوهم دتانيث شبه پكښ شته. ددے وجينه علامه تاء برائے مبالغه دتانيث دشبے دوجنه، اطلاق په الله تعالى نشى كيدے ځكه چه الله تعالى د تانيث اوشبه دتانيث نه مبرادے. **جواب ثانى** : ضميركافيه ته راجع دے مختصرته نه دے ددے وجينه چه دمختصرمسائل بعينه دكافيه دى.

**قوله من غيرتعرض للادلة و العلل** : بغيردمخکښ كيدونه ادله اوعلتونوته.

**حل تركيب** : من جارحل مضاف تعرض موصوف لل جارمجرورادله معطوف عليه واوحرف عاطفه العلل معطوف عليه معطوف سره دمعطوف عليه نه مجرورد جارشوجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق په كائن پورے كائن اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله صفت شودتعرض موصوف دپاره.

**تشریح** :د تعرض معنی ده اقدام علی الشی، اوادله جمع ده دلیـل ده لکه اجنه جمع دجنین ده دلیـل پـه لـغت کښی لارخودلوته وائی چه ددے په وجه بل شی معلومیدے شی علل جمع دعلت ده لغت کښی مؤثرته وائی اواصطلاحا هغه ته وائی چه پده باندے دبل شی وجودموقوف وی.

**سوال** : ادلـه جـمع قلت ده اودلته جمع کثرت پکاروه چه دلائل دے. **جواب** : کله کله جمع قـلت دجمع کثرت په ځاے استعمالیدے شی اوکله بالعکس سیجئ فی بیان الجمع انشاء الله.
**سوال** ددے کتـاب پـه بعضی مواضعوکښی ادله بیان کړے دی. **جواب** : دلتـه مرادپه نفی سره نفی اغلب مراده ده عموما طورسره بیان دادله مصنف ندے کړے.

**قـولـه لئلایشوش ذهن المبتدی عن فهم المسائل** : ددے دپاره چه ګډوډ نکړی ذهن دمبتدی لره دفهم دمسائلو نه.

**حل الترکیب** : لام جاره ان نـاصبه مصدریه لانافیه یشوش فعل هو ضمیر مستتر فاعل فـعـل راجـع دے تـعـرض یامختصریاذهن المبتدی مضاف مضاف الیه مفعول به یشوش عن فهـم الـمسـائـل جارمـجـرورظـرف لـغـومتعلق په یشوش فعل سره دفاعل اومتعلق نه بتاویل الـمـصـدرمـجـرورشودلام جاره اومفعول به جارسره دمجرورنه متعلق په جمعت پوری فعل سره دفاعل اودمفعول به اوسره دمتعلقات نه جمله فعلیه خبریه صفت ثالث مختصر.

**تشریح** : قـولـه یشـوش : پـدے صیغه کښی دوه احتماله دی ۱ .مضارع معلوم ۲ . مضارع مـجهـول کـه مـضارع معلوم شی نوذهن المبتدی به مفعول به شی اوکه مجهوله صیغه شی نوذهن المبتدی به نائب فاعل شی.

**الذهن** : قـوة موجودة فی جنان الانسان. **المبتدی** : پـه لـغـت کښـے شروع کونکے ته وائی اوپه اصطلاح کښی:هو الذی شرع فی الجزء الاول مع قصد تحصیل باقی الاجزاء.

**وسمیته بهدایة النحو** : نوم مے ورله ایخودے دے په هدایت النحوسره.

**حل الترکیب** : واوعـاطـفـه سـمیـت فعل فاعل ه مفعول به اول هدایت مضاف النحو مضاف الیه مفعول به ثانی.

**تشریح** : سـمـی یـسمی تـسمیة پـه مـعـنـی دنوم ایخودلو. (۱) هـدایة بـمـعـنـی اراءة الطریق

الموصل المطلوب ۲ .الایصال الی المطلوب اضافة د هدایت نحو ته اضافت معنوی دے دادقبیلے داضافت دمصدرنه دے مفعول ته لکه قیام اللیل.

**سوال** : سمی یسمی داباب متعدی بنفسه دے دوه مفعوله غواړی نودلته باځنګه په مفعول ثانی داخله شوے ده؟ **جواب** : دا باء زائده ده.سوال دباء زائده دپاره قانون دے چه لاندے دنفی اواستفهام وغیره نه به نه وی جواب دابا زائده ده خلاف القانون.

رجاء ان یهدی الله تعالی به الطالبین : دپاره دطمع چه الله هدایت اوکړی په دے سره طالبانودعلم نحو ته.

**حل ترکیب** : رجاء مضاف ان مصدریه یهدی فعل اللهذو الحال تعالی بتقدیرقدجمله فعلیه خبریه بتقدیرقد حال شوذو الحال ذوالحال سره دحال نه فاعل شودپاره دفعل باجاره ضمیرمجرورجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په یهدی به الطالبین پوری مفعول به فعل سره دفاعل اوسره دمفول به نه اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه بتاویل مصدرسره مضاف الیه درجاء مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول له دسمیت فعل سره دفاعل اوسره دمفعولینو اومفعول له نه جمله فعلیه خبریه صفت رابع مختصربذریعه عطف.

**تشریح** : مصنف وجه دتسمیه بیان کړه چه ځماداالله تعالی نه امیددے چه ځماددے کتاب په سبب طلباء ته هدایت ورکړی.

ورتبته علی مقدمة وثلاثة اقسام بتوفیق الملك العزیز العلام : اومرتب کړے مے دے په یوه مقدمه اوپه اقسام ثلاثوباندے ده اللهتعالی په توفیق چه بادشاه غالب اوډیرپوهـ دے.

**حل الترکیب** : واوعاطفه رتبت فعل فاعل ه مفعول به علی جارمقدمه معطوف علیه واوحرف عاطفه ثلاثه اقسام مضاف دمضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه معطوف دمعطوف علیه معطوف سره دمعطوف علیه نه مجروردجارچه علی دے جارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په رتبت پوری باجارتوفیق مضاف الملك موصوف العزیزصفت اول العلام صفت ثانی موصوف باصفتین مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور دجار جار سره دمجرورنه متعلق په رتبت یاجمعت پوری دامجموعه جمله فعلیه خبریه صفت خامس دمختصرموصوف سره دصفات خمسونه خبرشودهذامبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه

جزاء شرط شرط سره دجزاء نه جمله شرطيه.

**تشريح** :مصنف پدے عبارت خپل سره اجزاء بيانوى اجزاء دكتاب پينځه دى : (١) مقدمه (٢)اسم (٣)فعل (۴)حرف (۵)خاتمه .

**فائده** : مصنف خاتمه ذكركړے ده ليكن په صحيح نسخو كښے خاتمه نشته دے داسهوه دقلم د ناسخ نه ده. **ترتيب** : په لغت كښ كل شيء فى مرتبه اوپه اصطلاح كښ جعل الاشياء المتعددة حيث يطلق عليها الاسم الواحد

**ثلاثة اقسام** : قسم اول بحث اسم قسم ثانى بحث فعل قسم ثالث بحث حرف.

**خلاصهٔ كتاب اجمالاً** :مصنف اولًا مقدمه ذكركړے ده مراد دلته دمقدمه نه مقدمه دعلم ده پدے مقدمه كښ فصول ثلاثه ذكركوى فصل اول كښ امورثلاثة دى:(١) تعريف دعلم نحو٢ .موضوع دعلم نحو٣ .غرض دعلم نحو .دويم فصل كښ تعريف دجزدموضوع دعلم نحو چه كلمه ده اودهغے اقسام ثلاثه چه (١)اسم (٢)فعل (٣)حرف دى اوبيادهريوتعريف په اعتباردوجودذهنى سره.

الاسم مادل على معنى فى نفسه الخ :اوپه اعتباردوجودخارجى سره چه وعلامات الاسم الخ : دارنګه تعريف دفعل اوحرف كوى اوفائده دحرف ذكركوى په كلام دعرب كښ پدے قول خپل سره وللحرف فى كلام العرب فوائد. په دريم فصل كښ تعريف اوتقسيم ددويم جزدموضوع دعلم نحوتعريف الكلام ماتضمن الكلمتين الخ اوتقسيم دكلام پدے قول خپل سره فعلم ان الكلام لايحصل الامن اسمين الخ دامقدمه چه ذكرشى نوبياشروع كوى په تقسيم داقسام ثلاثو كښ پدے قول كښ اول بحث داسم كوى اودامنقسم كوى په بابين كښ ١ .باب معرب ٢ .باب مبنى باب معرب كښ اول مقدمه اوبيامقاصدثلاثه ذكركوى المقصدالاول فى المرفوعات و المقصد الثانى فى المنصوبات و المقصد الثالث فى المجرورات

**مقدمه** كښ څلورفصول ذكركوى اول فصل په بيان دتعريف داسم معرب كښ دويم فصل. حكم داسم معرب اوتعريف داعراب اوتعريف دعامل .دريم فصل په بيان داصنافو داعراب اوپه بيان دحكم دده كښ.څلورم فصل په باره دبيان داقسام داسم معرب كښ قسمينو ته منصرف اوغيرمنصرف اوددوى په حكم كښ پدے كښ تفصيل دغيرمنصرف كوى نهه اسباب دمنع

دصرف ذکرکوی اومنصرف ترینه معلو میږی ځکه وبضد هاتتبین الاشیاء.ددینه چه فارغ شی بیابیان دمقاصدثلاثه کوی مقصداول اته مرفوعات ذکرکوی فاعل مبتدأ الخ اجمالا وتفصیلاً بیادولس منصوبات په مقصدثانی سره ذکرکړی چه هغه پینځه دی نعت الخ داخلاصه دباب معرب شوه داچه ختم شی نوباب دمبنی شروع شی اولاتعریف داسم مبنی ذکرکړی وهواسم وقع غیرمرکب مع غیره الخ سره.اوحکم دمبنی ذکرکړی دهغے نه بعدتفصیل دااته اقساموداسم مبنی اوکړی په یوه خاتمه مشترکه دمعرب اومبنی ذکرکوی اوهغے کښ مختلف فصول راوړی.

۱- فصل اول په بیان دمعرفے اونکره کښ۲- دویم فصل په بیان د اسماء العددکښ دریم فصل په بیان داسم مذکر اواسم مونث کښ څلورم فصل په بیان دمثنی اوپینځم فصل په بیان دالجموع کښ. شپږم فصل په بیان دمصدرکښ اواوم فصل په بیان داسم فاعل اواتم فصل په بیان داسم مفعول کښ اونهم فصل په بیان دصفت مشبه کښ اولسم فصل په بیان داسم تفضیل کښ ددے ځائے پورے بیان داسم اوشوداچه ختم شی نوبیابحث دفعل شروع شی.نووائی دارنګه القسم الثانی فی الفعل پدے کښ اقسام دفعل ذکرکوی تفصیلادماضی تعریف دمضارع تعریف دامرحاضر تعریف اودفعل علامات ذکرکوی بیا فصول ذکرکوی اول فصل کښ بیان داصناف داعراب الفصل کښ اوهغه څلورقسم ذکرکوی دویم فصل کښ عوامل دمضارع ذکرکوی دوه قسمه معنوی اولفظی لفظی بیاپه دوه قسمه (۱)نواصب (۲)جوازم داپه دری فصولوکښ بیامکمل دامرذکر اوکړی بیادمفعول مالم یسم فاعله بحث راواخلی په فصل سره په بحث دفعل کښ لازمی متعدی افعال ناقصه افعال قلوب افعال مدح وذم افعال تعجب داټول ذکرکړی ددینه چه فارغ شی نوبحث دحرف راواخلی القسم الثالث الحرف پدے کښ دوه قسمه حروف ذکرکوی عامله غیرعامله اختتام په تنوین سره.اوکړی اوپدے باندے کتاب ختم شی.

**اما المقدمة :** هر چه مقدمه ده. په لفظ دمقدمه کښ یو څو مباحث دی.

۱- صیغوی تحقیق.۲. احتماله پکښ دی ده (۱)احتمال اسم فاعل صیغه ده معنی داشوه مخکښ کونکے. **سوال :** مقدمه صیغه داسم فاعل غلطه ده ځکه چه مقدمه پخپله مخکښ

شوے ده نه دا چه بل مخکښ کونکے ده. **جواب**: دا باب تفعیل په معنی تفعل سره دے مقدمه په معنی دمتقدمه متعدی بمنعی لازمی اوباب تفعیل بمنی تفعل راغلے دے لکه په قران کریم وتبتل الیه تبتیلا دباب تفعیل دپاره مفعول مطلق دباب تفعیل نه راوړے دے.ددینه دامعلومه شوه چه یودبل په ځائے مستعملیږی. **جواب ثانی**: صیغه داسم فاعل صحیح د، مقدمه خپل عالم مخکښ کوی په جاهل باندے چه علم دهغه په مقدمه نه وی. **دویم احتمال**: صیغه داسم مفعول ده په معنی دمخکښ شوے اودا هم دمقصودنه مخکښ وی.

۲- **ماخذی تحقیق** لفظ مقدمه ماخوذده مقدمه الجیش نه مناسبت شته مقدمه کښ هم داسے مسائل ذکرکوی چه راتلونکی مضامین پرے اسانیګی.

۳- **تحقیق اقسام مقدمه**: مقدمه په دوه قسمه ده مقدمة العلم مقدمة الکتاب مقدمه د علم هغه معانی مخصوصه دی چه په هغے باندے دعلم دمسائل شروع موقوف وی لکه تعریف موضوع غرض.اومقدمة الکتاب دیته وائی چه داهغه حصه دکلام ده چه دکتاب دمسائلو نه مخکښ راوړے شي برابره خبره ده چه مسائل پرے موقوف وی اوکه نه وی.

**اما المقدمة ففی المبادی التی یجب تقدیمهالتوقف المسائل علیهاوفیهافصول ثلاثة.**:

**حل الترکیب**: اما حرف تفصیل مقدمه مبتدأ متضمن ده معنی دشرط لره فاجزائیه فی حرف جر المبادی موصوف التی اسم موصول یجب فعل تقدیم مصدرمتعدی مضاف هاضمیرراجع دی مبادی ته مجرورمحلا مضاف الیه لام حرف جرتوقف مصدرلازمی مضاف المسائل مجرورلفظاً مضاف الیه مرفوع معنی فاعل علی جارهاضمیرراجع مبادی ته مجرورجارسره دمجرورنه ظر لغوه متعلق په توقف مصدرپورے مصدرمضاف سره دمضاف الیه فاعل نه مجرورشولام جار جارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق شوپه یجب فعل پوری فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه صله شوه دموصول موصول سره دصله نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مجروردجارشو جارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق په ثابتة پوری دامجموعه خبرقائم مقام جزامبتداسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه واوعاطفه فیها جار مجرورظرف مستقرمتعلق په ثابتة پوری خبرمقدم فصول موصوف ثلاثه صفت موصوف باصفت مبتدأ موخرمبتدأ سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشريح** : **سوال** : مبادي اومقدمه يوشي دي اوفي دظرف دپاره دے نودلته ظرفيت دشي لازم شـودخپـل نـفـس دپاره اوداباطل دے. **جواب** : دمبادي نـه مـراد الـفـاظ مخصوصـه دي اودمـقـدمـه نـه مـرادمعاني مخصوصه دي معني دارنگه شوه امـا الـمعاني المخصوصة ففي الالفاظ المخصوصة فلايلزم ظرفية الشيئ لنفسه . **دويم جواب** : يامراددمقدمه نه الفاظ دي اودامبادي نـه مـعـانـي اوكـلـمـه دفـي پـه معني دلام سره تقديردعبارت دارنگه شوواما لالفاظ و الـمـعـانـي فـلايـلـزم ظرفـيـت الـشـيء لـنـفـسـه اومـرادلـتـه دمقدمـه الكتاب نـه تعريف دعلم نـحـواومـوضـوع دعـلـم نحو اوغرض دعلم نحو مراددے اودامو قوف عليه دي ځكه كه تعريف مـعـلـوم نشـي نـو طـلـب دمـجهول به لازم شي اوكه موضوع معلومه نشي نو امتيازبه رانشي دعلم ماشرع اودغيرماشرع اوكه غرض معلوم نشي نو سعي به عبث شي اوداصحيح نده.

**وفيها فصول ثلاثة :**

**تشريح** : فـصـول جمع ده فصل ده ثلاثه دفصول صفت واقع دے مقدمه كښې فصول ثلاثه دي. فـصـل اول:فـي تـعـريف عـلـم الـنحو وموضوعه وغرضه.دويم فصل كښې تعريف دكلمے اودهغے اقسام اسم فعل حرف اودهريوعلامات دريم فصل كښې دكلام تعريف او داقساموبيان.

**الفصل الاول في تعريف علم النحو :**

**تشريح** : فصل لغةً معنى جداكول اواصطلاحاً هو الحاجزبين الحكمين فصل كښې دوه احتماله دي ١ - معرب٢ - مبني دمبني احتمال به هله وي چه مفردشي نومبنيْ على السكون به وي اوكه معرب شي نومعرب به شي فصل مبتدااوخبردده حذف چه هذا دے يابالعكس هذا فصل يامنصوب به وي په اعني مقدره سره اعني مفصلا.

**الـنـحوعلم باصول يعرف بهااحوال اواخر الكلم الثلث من حيث الاعراب و البناء وكـيـفية تـر كيب بعضهامع بعض**  **حـل الـتـركـيـب** : الـنـحـومبتـداعلم مصدرباجاره اصول مـوصـوف يـعـرف فعل مجهول باجاره هامجرورجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په يعرف احـوال مـضـاف اواخـر مـضـاف الـيـه الكلم موصوف الثلاث صفت موصوف باصفت مضاف الـيـه اواخـر مـضـاف سـره دمـضـاف الـيـه نـه مـضـاف الـيـه داحـوال شو مضاف سره دمضاف اليه مـعـطـوف عـلـيـه مـن حـرف جر حيـث مـضـاف الاعـراب مـعطوف عليه واوحرف عاطفه البناء

معطوف عليه معطوف عليه سره دمعطوف نه مضاف اليه دحيث مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول به دمصدر چه تركيب دے مع مضاف بعض مضاف اليه مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه تركيب تركيب مضاف سره دمضاف اليه نه اومفعول به اوفيه نه دامضاف اليه شودپاره چه تركيب دے مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف احوال معطوف عليه سره دمعطوف نه نائب فاعل ديعرف فعل سره دنائب فاعل اوسره دمتعلق نه صفت شودموصوف چه اصول دے موصوف باصفت مجرورجارسره دمجرورنه ظرف لغوه په علم مصدرپورى مصدرسره دمتعلق خپل نه خبردمبتداء مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

**تشريح** : **قوله النحو** : نحوپه لغت كښے په ډيرومعانيو مستعمل ده اودغه معانى مذكورفى الشعردى :

نحونا نحونحوك ياحبيبى — نحونا نحو الف من رقيب
وجدناهم مريضا نحوفلبى — تمنوا منك نحواً من زبيب

نحواول په معنى دقصد۲ .طرف۳ .قبيله۴ .په معنى دانداز۵ه .په معنى دمثل

معنى دشعرداده: قصداوكړومونږپه طرف دقبيله ستااى څمادوست ٭نوبياموںږ اندازه اوكړه دزرورقيبانو نومونږه بيامونده مريضان په مثل دزړه څمااوتمنى كوى ستاپه يوقسم دوځكوباندے. (۸) معنى دنحوے (لار)هذا النحو المستوى يعنى الطريق المستوى.

(۹) بمعنى الفصاحة مااحسن نحوك فى الكلام. (۱۰) بمعنى الانحاء(يعنى الاعراض)انحيت عنه بصرى اى عدلته. (۱۱) انتحاء اعتهاد والميل.

**فوائد قيود** : تعريف دعلم جامع مانع دے پدے كښى لابدى ده دجنس اوفصل نه.علم پكښى جنس دے تمام علومولره شامل دے څلورپه تعريف كښى فصول دى فصل اول يعرف بهااحوال پدے سره هغه علوم خارج شو چه په هغے سره دكلمے معلومولے شى لكه علم الصرف فصل ثانى قوله اخر الكلم الثلاث پدے سره هغه علم خارج شودتعريف نه چه په هغے سره داول اوداوسط حالات معلومولے شى دريم فصل من حيث الاعراب والبناء پدے سره خارج شوعلم عروض پدے سره احوال معلومولے شى لكن لامن حيث الاعراب و البناء څلورم فصل وكيفية تركيب الخ پدے سره هغه علوم خارج شو چه په هغے سره

دمفرداتو کیفیات معلومولے شی لکه علم الهیئت وغیره. **سوال**: په تعریف دعلم نحو کښې لفظ دعلم راوړل صحیح نه دی ځکه چه علم په لغت کښې وئیلے کیږی پو هے ته اوپه اصطلاح حصول صورت الشیء فی العقل اودانه وی بلکه وجودذهنی وی اوعلم نحوقواعدمکتوبه ملفوظه دی. **جواب**: دعلم اطلاق په درې معانیو سره کیږی اول حصول صورت الشیء فی العقل ۲.قواعدمکتوبه ملفوظه ۳-قواعدمکتوبه منقوله دلته اخری دوه معانی مراددی.

**سوال**: ډیر مبتدیان طلباء علم نحوزده کړی لکن اخردکلمات ثلاثومن حیث الاعراب نه پیژنی. **جواب**: دلته عبارت په حذف سره دے چه هغه دبهانه مخکښې مضاف حذف دے ای باستحضارهااوداخبره ظاهره ده چه په وخت داستحضاردقواعدنحویه کښې اخردکلمات ثلاثومن حیث الاعراب و البناء معلومولے شی. **سوال**: په تعریف دعلم نحو کښې لفظ داحوال ذکردے اوداصیغه دجمعے ده نودلته ټول احوال مراددی اوکه بعض که ټول احوال مرادشی نویونحوی دی نحوی نشی ځکه ټول احوال چاته معلوم دی دعلم نحو اوکه بعض احوال مرادشی په احوال سره نوپه یو څواحوال معلومولو سره دے نحوی شی نوبیاخو هریو سړے نحوی جوړیدے شی حاصل داشو چه اول صورت نحوی غیرنحوی اودویم صورت کښې غیرنحوی نحوی لازم شواوداخبره باطله ده. **جواب**: داحوال نه مرادټول احوال دی لکن دمعرفت مرادملکه الاستعداده یعنی نحوے ته یوه ملکه حاصله شی چه ددے په ذریعه سره په ټولو احوالو اوقواعدوپه معلومولو باندے قادر وی.

**و الغرض منه صیانة الذهن عن الخطأ اللفظی فی کلام العرب.**

**حل الترکیب**: واوحرف عاطفه یااستنافیه الغرض موصوف منه جارمجرورظرف مستقرمتعلق په الکائن پورے الکائن صفت موصوف موصو ف باصفت مبتدأصیانت مصدرمضاف الذهن مضاف الیه مفعول به عن حرف جر الخطاء موصوف اللفظی صفت اول فی حرف جرکلام مضاف العرب مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق په کائن پوری داکیږی صفت ثانی دموصوف موصوف سره دصفتینو خپلونه مجروردجارشوجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په صیانت پوری صاینت مضاف سره دمضاف الیه نه چه مفعول به ده اودمتلعق نه

خبردمبتداء شو مبتدا، سره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

**تشريح** : مصنف دلته دنحوی غرض بيانوی غرض په لغت کښې نښه ته وائی اوپه اصطلاح کښې مايکون باعثاللفعل اودخطاء سره ئے قيدلفظی اولګولودے دپاره چه خارج شي په قيدسره علم الصرف اوعلم معانی اوعلم منطق ځکه غرض دعلم صرف دصيغوی غلطونه بچ کيدل دی اودعلم منطق غرض دفکری غلطونه بچ کيدل دی اودعلم نحو غرض دلفظی غلطونه بچ کيدل دی. **سوال** : غلطی خولفظی دژبے نه کيږی نه دذهن نه نودلته څنګه وائی صيانت الذهن عن الخطأ اللفظی دلته صيانت اللسان عن الخطاء الخ پکاروو. **جواب** : اصل کښې ذهن لفظی غلطی کوی اولسان دذهن مترجم وی نوعبارت په اصل کښې په حذف دمضاف سره دے تقديرداشوصيانت مبين الذهن هو اللسان. **۲- جواب** :تلفظ کونکے په اصل کښې ذهن دے اولسان مترجم دے دذهن فصيانت الحقيقيه صيانت الفرع ايضا.

قوله وموضوعه الكلمة و الكلام **حل التركيب** : واوعاطفه يا استينافيه موضوع مضاف ده مضاف اليه سره دمضاف نه مبتداء الکلمه معطوف عليه الكلام معطوف معطوف سره دمعطوف عليه نه خبردمبتدامبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

تشريح:موضوع په لغت کښے ايخودلوته وائی اوپه اصطلاح کښې ده مايبحث فيه عن عوارض الذاتيه يعنی دحالات ذاتيونه دغه علم بحث کوی مثلا دعلم طب انسان بدن الانسان ځکه په علم طب کښې دانسان داحوال نه بحث کيږی اودعلم نحو موضوع کلمه اوکلام دی ځکه په علم نحو کښې دکلمه اوکلام غوارض ذاتيه اواحوال ذاتيه بيانوی مثلا منصرف اوغيرمنصرف معرب مبنی مفردتثنيه جمع مذکر مونث مرکب تام مرکب ناقص وغيره ددوی نه بحث کيږی.

**سوال** : دهرعلم موضوع يوه وی دلته دعلم نحوموضوع دوه شوی نوپکارده چه علم نحو هم دوه علمين شی ځکه چه قاعده داده لان تعدد الموضوع يستلزم تعدد العلم اوحال دادے چه علم نحويوعلم دے. **جواب** : تعدد په دوه قسمه دے ۱-لفظی ۲-معنوی تعددلفظی لکه قاعدجالس تعددمعنوی لکه عاقل بالغ دلته مرادتعددلفظی دے نه معنوی لکه چه دواړه کلمه اوکلام وضع شوی دی ديو ے معنی دپاره.اوقاعده چه کوم ده چه تعدددموضوع مستلزم وی

تعدددعلومولره هلته تعددمعنوی مراددے نه لفظی.

**سوال** : هرکلـه چـه کـلـمه اوکلام دواړه دعلم نحوموضوع شوه نوکلمه په کلام ولې مقدم شوه سره ددینـه چـه کـلام کـښې فـائده تامه شته اوکلمه نشته ددے وجینه صاحب الفیه کلام مـقـدم کـړے دے په کلمه باندے. **جواب اول** : کـلـمـه ئـے پـه کلام ځکه مقدم کړه چه کلمه جـزدکـلام دے اوکـلام کـل دے کـلـمـه دکلام لفظامعناجزده کلام هرچه لفظازیدمثلاجزء دے دزیدقـائـم اومـعـنـاً مـعـنـی دزیـدقـائـم حیـوان نـاطق مع هذا التشخص ذات من له القیام داکل شـواومـعـنـی دزیدحیوان ناطق مع هذا التشخص اودامعنی جزء دے.دمعنی دکلام نه اوجزء په کـل مـقـدم وی وځـکه دلته کلمه مقدم شوے ده په کلام باندے. **جواب ثانی** : کـلمه مفردے اوکلام مرکب دے مفردمقدم وی په مرکب نولهذامصنف کلمه په کلام مقدم کړه.

**فَصْلٌ اَلْکَلِمَةُ لَفْظٌ وُضِعَ لِمَعْنًی مُفْرَدٍ** : **حل الترکیب** : الکلمة مبتـداء لفظ موصوف وضـع فـعـل مـاضـی مـجـهـول نـائـب فـاعـل دده ضـمیرمستتره چـه راجع دے لفظـه لام حرف جارمـعـنـی مـجرور تقدیرا جارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په وضع پوری فعل سره دنائب فـاعـل اومـتـعـلـق نـه جـمـلـه فـعـلـیـه خبریـه صـفت مفرد دری احتماله لری مرفوعاصفت لفظ مـجـروراصـفـت مـعـنـی مـنـصـوبـاحـال ازضمیروضع یااز معنی لفظ موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح** : دا ددے مـقـدمـے دویـم فـصـل دے پدے کښې اول تعریف دیوجزدموضوع دعلم نـحـوذکـرکـوی دویـم تـقـسیـم کـوی دری اقسامـوتـه دریـم دهرقسم تعریف ذکرکوی اودهغوی علامات ذکرکوی. په تعریف دکلمه کښې یوځوکلمات دی:

(۱) الکلمه (۲) لفظ (۳) وضع (۴) معنی (۵) مفرد

ددے پینـځـه کلماتومختصرتشریح کیدے شی تفصیل ددے بیاکافیه اوشرح جامی کښې کولے شی.ان شاء اللہ تعالی.

**اول تشریح دالکلمة** پدے کښې دری اجزاء دی ۱ ال ۲ کلم ۳ تادهریو جداجدابحث کیدے شی.

**بحث اول : دالف لام نه ۹ قسمونه دی**

الف لام پـه لـغـت کښې کلمه دال ... ری وپـه اصطلاح کښې کـلـمة تحلی بها کلمة اخری الف

لام یـوه کـلـمه ده چه خائسته کولـے شي پدے سره بله کلمه.ده ، الف لام ابتداء دوه قسمونه دي ۱.اسمـي۲.حـرفـي الف لام اسمي داخليږي په اسم فاعل اواسم مفعول باندے اتفاقااوپه صفت مشبـه بـانـدے اختـلافـااودا الف لام بـه دلالـت کوي په اسم موصول باندے په الذي باندے په مـذکـرکښ او التـي پـه مـونـث کـښ داسم فاعل نه به تعبيرپه ماضي معلوم سره کيږي.اوداسم مـفـعـول نـه بـه تـعـبـيـرپه ماضي مجهول باندے کيږي يامضارع مجهول سره کيږي.مثال اسم فـاعـل اَلـضَّـارِبُ وَ الـضَّـارِبَةُ اَلَّـذِیْ ضَـرَبَ یـایَـضْـرِبُ اَلَّـتِیْ ضَـرَبَـتْ یـا اَلَّتِیْ تَضْرِبُ مثال اسم مفعول المضروب و المضروبة الذی ضُرِبَ یایُضْرَبُ التی ضُرِبَتْ و التی تُضْرَبُ.

صـفـت مشبـه کښ اختلاف دے بعضي وائي دامشابهت لري داسم فاعل سره په افراداومثنيت جـمـعـيـت وغـيـره کـښ نوپده باندے هم الف لام اسمي داخليږي اوبعضي وائي الف لام حرفي پـرے داخـلـيـږي ځکه داصفت مشبه پشان داسم جامددے چه تعلق دده دزمانـے سره نشـتـه لکه دجـامـدپـشـان اوپـه جـامـدبـانـدے الف لام حرفي داخليږ نوپه صفت مشبه باندے هم الف لام حرفي داخليږي. **دويم قسم** دے الف لام حـرفـي الف لام حرفي ديته وائي چه داخل به وي په هـغـه اسم بـانـدے چه هغه غيروئ داسم فاعل اواسم مفعول نه مثال لکه الرجل دارجل نه اسم فاعل دے اونه اسم مفعول دے الف لام پده کښ حرفي داخل دے.

**د الف لام حرفي بيادوه قسمه دي** : (۱)الف لام حرفي زائد . (۲) الف لام حـرفـي غـيـرزائد الف لام حـرفـي زائـدديـتـه وائـي چـه پـه سقوط دده سره خلل نه رائحي په اصـل معنى کښ مثال لکه داقول دحضرت عليؓ شعر:

لـقـدامـرعـلـی الـلـئـیـم یسُبُّنِیْ فـمـضـیـت ثُمَّ قـلـت لا یـعـنـیـنـی

نـو الف لام پـه الـلـئـيـم کـښ زائـددے ځـکـه دايسبـنـي جمله ورته صفت ده اوجمله صفت دنـکـرے واقـع کـيـږي نـه ده مـعـرفـے نـودا الـلـئـيم به هله نکره شي چه الف لام پکښ زائدشي نومعلوميږي چه الف لام به په تقديردصفتيت باندے زائدوي.

۲- الف لام غيـرزائده ديته وائي چه دهغـے په سقوط سره خلل رائحي په اصل معنى کښ مثال لـکه الرجل چه الف لام غيرزائدوي نومعرفه به وي اوکه زائدشي الف لام نودتعريف نه اوځي. بيـا الف زائـد پـه څلورقسمه دے: (۱) الف لام زائـدعـوضي لازمي . الف لام دلفظ الله

شو. (۲) الف لام زائدلازمی غیرعوضی الف لام .النجم الصعق. (۳) الف لام زائدغیرلازمی عوضی لکه الف لام دی الناس . (۴) الف لام زائدغیر لازمی غیرعوضی لکه الف لام یاالغلامان. او الف لام حرفی غیرزائدهم په څلورقسمه دی: (۱) الف لام جنسی . (۲) الف لام استغراقی. (۳) الف لام عهد خارجی. (۴) الف لام عهدذهنی. **وجه د حصر** پکښ دا ده چه دا الف لام غیرزایده به خالی نه وی یابه پده سره اشاره شوے وی مفهوم اوحقیقت دمدخول خپل ته سره دملاحظے دافرادنه اویابه ورته اشاره شوے بغیردملاحظے دافرادنه نودادویم الف لام جنسی دے او اول به خالی نه وی یابه پکښ ملاحظه دټولو افرادوشوی وی اویابه پکښ ملاحظه دبعضوافرادومعینوشوی وی اویابه پکښ ملاحظه دبعضوغیرمعینو افرادوشوی وی نو اول الف لام استغراقی دے اودویم عهدخارجی دے اودادریم الف لام عهد ذهنی دی.

مثال د الف لام جنسی الرجل خیرمن المرأة : په الف لام سره اشاره شوے ماهیت اوحقیقت دمدخول ته چه رجل دے بغیردملاحظے دافرادونه. **مثال د الف** لام استغراقی لکه ان الانسان لفی خسر : په الف لام سره اشاره شوے ده ماهیت اوحقیقت دمدخول ته سره دملاحظے دټولوافرادونه. **مثال** دالف لام عهدخارجی لکه فعصی فرعون الرسول : په الف لام سره اشاره شوے ده ماهیت اوحقیقت دمدخول ته سره دملاحظے دیوفردمعین چه هغه معلوم دے متکلم اومخاطب دواړوته چه د الرسول نه مرادموسی دے. مثال دالف لام عهدذهنی لکه انی اخاف ان یأکله الذئب :په الف لام سره اشاره شوے ماهیت اوحقیقت دمدخول ته سره دملاحظے دیوفردمعین په ذهن دمتکلم کښ.

**سوال** : الف لام په الکلمة کښ دڅه دپاره دے یعنی الف لام به خالی نه وی یابه اسمی وائی نودانه صحیح کیږی ځکه چه کلمه اسم فاعل اواسم مفعول نه دے اومدخول دالف لام اسمی اسم فاعل اواسم مفعول وی اوکه حرفی وائی نویابه زائده وی یابه غیرزائده وی قسم اول نه صحیح کیږی ځکه چه نکارت دمبتدا به لازم شی اونکارت دمبتداء باطل دے اوکه قسم ثانی وائی نوبیابه خالی نه وائی یابه جنسی وائی نوداهم نه صحیح کیږی ځکه تاپه الکلمة کښ دوحدت دپاره ده دهغے سره ئے منافات دے اوکه استغراقی وائی نوبیاهم نه صحیح کیږی یوددے وجینه چه دتاسره ئے منافات دے اوبل به لازم شی تعریف دافراداوتعریف دماهیت

کیدے شی نه ده افرادو.اوکه الف لام عهدذهنی وائی نوبیاهم نه صحیح کیږی ځکه چه لازم
به شی نکارت دمبتداء اوداباطل دے.
اوکه الف لام عهدخارجی وائی نوبیاهم نه صحیح کیږی ځکه چه هغه مخکښ
معهودغواړی اودلته معهودنشته دے.۱ **جواب** - دلته الف لام جنسی وائیم اووحدت دلته په
څلورقسمه دے.۱- وحدت جنسی۲- وحدت نوعی ۳- وحدت صنفی ۴- وحدت فردی
منافات دالف لام جنسی اودوحدت فردی کښ دے نه دباقی قیودواومراددلته غیردوحدت فردی
نه دی.۲ **جواب** الف لام عهدخارجی وایم اومعهودهغه دے چه جاری وی په السنو
دنحاتوباندے.

## دویم بحث په کلم کښ

په کلم کښ دنحات دوه اختلافه راغلی دی.۱ -: دامشتقی ده اوکه نه پدے کښ دوه
مذهبین دی.اول مذهب دجمهورودے دوی وائی مشتقان دی دکَلْمٌ نه په سکون دلام اومناسبت
دمشتق چه کلمه اوکلام دی دمشتق منه سره چه کلمه دی شته لفظااومعنااوهرچه لفظاهغه
ظاهردے چه کلمه کښ ك لام م دی په کلام کښ هم ك لام م دی دارنګه په کلم کښ هم ك لام
م دی اوهرچه مناسبت معنوی دی نودبعضی کلماتوسره تاثیرفی النفوس لازم دے که څوك
خه خبره اوکړی اوکه بده خبره اوکړی نوتاثیرپه نفوسوکښ راځی اوکلم جرح ته وائی اودهغے
تاثیرپه مجروح کښ وی چه الم او درددے حتی چه بعضی شعراء ترینه عین تعبیرپه جرح سره
کړے دے لکه چه وئیلے شوی دی :

جـراحـات الـسـنـان لهـا التيـام | ولايـلـتـام مـاجـرح الـلـسـان

★ پرهردنیزے خه وی چه جوړیږی په مرهم ★ پرهردژبوبدوی چه دعمره سره سم

دارنګه داموقله دعربوده جراحة اللسان اصعب من جراحة السنان:زخم دژبے ډیرسخت دزخم د
نیزے نه. **دویم مذهب دبعضی** دے دوی وائی چه کلمه اوکلام اسمین جامددی دوی دچانه
مشتق نه اونه دوی دچانه مشتق دی ځکه ددوی مناسبت دکلم سره لفظاشته لکن معنامناسبت
نشته ځکه دکلمه معنی ده لفظ وضع الخ اودکلام معنی ده ماتضمن کلمتین الخ اودکلم
معنی ده جرح اومناسبت معنوی په مابین دمشتق اومشتق منه کښ شرط دے اومناسبت

فقط لفظی کافی ند ے لپاره داشتقاق.

**جمهور نحات** وائی: مناسبت معنوی شته په التزامی معنی کښې دبعض کلمات سره تاثیر لازم دے اودجرح په مجروح کښې تاثیروی دویم اختلاف په کلم کښې په کسرے دلام سره پدِے کښې هم دوه مذهبین دی (۱) جمهور نحات (۲) بعض نحات.

جمهور نحات وائی کلم جنس دے جمع نده. دری ادله دجمهور نحات :

(۱) صفت دده مفرد راځی مثال دده پدے قول دالله تعالی کښې ﴿الیه یصعد الکلم الطیب﴾ نودا الطیب مفرد دے اوصفت واقع دے د الکلم نوکه چرته الکلم جمع وے نوصفت دده به الطیبات راغلے وو نو هرکله چه صفت مفرده دده واقع دے نو معلومه شوه الکلام هم مفرد دے اوجنس دے. (۲)- کلم تمیز دعدد اوسط واقع کیږی لکه ثلاثه عشر کلما اوتمیز دعدداوسط نه وی مگر دمفرد وی.(۳) - دده تصغیر کلیم راغلے دے غیر درد کولو نه اصل ته نو معلومیږی چه داجنس دے،که جمع وے نو تصغیر دده به محتاجه وو ردکولو دواحد ته.

**بعضی نحات** کلم جمع ده اومفرد دده کلمة دے دلیل دادے چه دده اطلاق په ثلاثه اوپه مافوق دثلاثه کیږی اوداعلامه دجمع ده که مفرد وے جنس وے نوپه واحد اوثنین باندے به دده اطلاق کیدے اوداسے نده ځکه جنس دیته وائی قلیل اوکثیر صادقیږی. **جمهور** ته وائی بعضی چه الکلم الطیب کښې الطیب دبعض مقدر دے اوبعض مفرد دے نو الطیب هم مفرد شو لکن داجواب مردود دے ځکه تاویل دوی کوی اودابغیر دضرورت نه نشی کولے اودلته ضرورت نشته دے. **دویم دلیل نه جواب**: چه تمیز دعدد اوسط کلمه بالتاء واقع کیږی نه کلم بغیر التاء جواب دادے چه داقول هم مردود دے ځکه چه دادعوه بلادلیل ده ددریم دلیل نه جواب کوی تصغیر دکلم کلیم بدون التاء نه راځی بلکه کلیمة بالتاء دے جواب داهم تحکم اودعوئ بلادلیل ده. **جمهور جواب** د بعض ددلیل نه کوی چه داعدم اطلاق دکلم په واحد اواثنین باندے جائز دے حق مذهب دجمهور نحات دے.

**دریم بحث په تاء د الکلمة** کښې تاولادوه قسمه ده ۱ .مطوله۲ .مدوره ،مطوله په دوه قسمه ده اسمی لکه مسلمات مومنات فعلی ضربتُ ضربتَ ضربتِ داقسم تاء په حالت

دوقف کښې نـه هاکيـږی مـدوره تاء په حالت دوقف کښې هاکيږی مثلاامـرأة نوپه وقف سره امرأة وغيره داقسم تاء په اسم پوری ملحق کيږی اوداپه چندقسمه ده:شعر:

تاءِ تانيث است تذکيراست وحدت هم بدل مصدريت ومبالغه زائده شدهم نقل

مثال (۱)تـاء تـانيـث امــرأة مثال (۲)تاء تذکيرثلاثة رجال مثال(۳) تاء وحدت تمرة مثال(۴) تـائـے بـدل عدة مثال(۵) تائـے مصدر د جرحة مثال(٦) تائـے مبالغه علامة مثال(۷) تائـے زائده زنادقة مثال(۸) تائـے نقل کافية.يابه الفاظ ديگر:شعر:

مصدرتانيث وحدت مبالغة نقل عوض مذکرتاء زائده.

دارنګه تاء ۹دمرّت دپاره هم راځی لکه جلست جَلسةً ۱۰ اودحالت دپاره هم راځی لکه جلست جِلسَةَ القاری .




**لفظ**: لفظ په لغت کښې رمی ته وائی (ویشتل)برابره خبره که ده ذوی العقول نه وی لکه اکلت التمرة ولفظت النواة یعنی کهجورړے مے اوخوړے اوهډوکے مے دهغے ارتاوکړواوکه دغیرذوی العقول نه وی لکه لفظت الرحی الدقیق جرندے اوړه ویشتل.په اصطلاح کښې لفظ عبارت دے ﺑﻬﻤﺎیتلفظ به الانسان نه یعنی دهغه شی نه عبارت دے چه انسان پری تلفظ کوی.

**اقسام لفظ**: لفظ اته قسمه دے (١)لفظ موضوع داعبارت دے دهغه لفظ نه چه واضع وضع کړے وی دپاره دمعنی لکه زیدرجل انسان شووغیره وغیره.

ونونی التاکید . ـــــ - : بله خاصه دفعل نون تاکید ثقیله وخفیفه دی

**حل الترکیب**: نونی مضاف التاکید مضاف الیه دامجموعه عطف دے په التضمان باندے.

**تشریح**: بله خاصه دفعل اتصال دنون تاکید ثقیله اوخفیفه دے به فعل پورې **دلیل**: داخاصه دفعل څکه ده څکه دادواړه نونین راځي دتاکید دپاره اودامعنی موجودیږي په فعل کښې نوداهم خاصه دفعل شوه.دنون تاکید ثقیله اوخفیفه تفصیل به انشاء الله دکتاب په اخرکښې راځي.

فَاِنَّ كُلَّ هٰذِهٖ خَوَاصُّ الْفِعْلِ : ترجمه: داټول مذکوره خواص د فعل دي.

**حل ترکیب**: فاء فصیحیه ان حرف از حروف مشبه بالفعل کل هذه اسم انّ خواص الفعل خبرانّ ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح**:- مصنف پدے عبارت سره جواب ورکوی دیوسوال سوال داسے واردیږي چه علامه دشی نه نه جداکیږي اوبعضي دعلاماتو مذکورنه دفعل نه جداکیږي لکه نون التاکیدپه ماضي کښې نه راځي دارنګه تاء التانیث الساکنه په مضارع پورې نه یوځای کیږي نوداځنګه دفعل علامات شو. مصنف پدے عبارت سره جواب ورکوی چه مراددعلامت نه خواص دي اوخاصه الشی مایوجدفیه ولایوجدفي غیراوخاصه په دوه قسمه ده شامله اوغیرشامله دلته مرادخاصه غیرشامله مرّ بیانه فلانعیده.

وَمَعْنَى الْاِخْبَارِبِهٖ اَنْ يَّكُوْنَ مَحْكُوْمًابِهٖ : اومعنی داخباربه داده چه محکوم به به وی.

**حل ترکیب**: معنی مضاف الاخبارمصدرمعرف باللام به جارمجروردا ظرف متعلق په الاخبارپوری الاخبارسره دمتعلق خپل نه مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء ان مصدریه یکون فعل ازافعال ناقصه هوضمیرپکښې مستتردے هغه اسم یکون محکوماسم مفعول به جارمجرورنائب فاعل اسم مفعول سره دنائب فاعل نه شبه جمله خبریکون یکون سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح**: غرض عبارت مخکښې الاخباربه ذکرشو د دے مرادواضح نه وو اوشبه ددینه پیداشوه چه امر اونهي لره به شامل نه وي څکه دوي مخبربه نه وي څکه دوي دانشاء نه دي نودلته معنی واضح کوی دالاخباربه پدے عبارت سره" ومعنی الاخباربه الخ" چه مراداخباربه

نه محکوما به دے اولفظ امر او نهی لره شامل دی.

**وَيُسَمَّى فِعْلًا بِاسْمِ اَصْلِهِ وَهُوَ الْمَصْدَرُ لِاَنَّ الْمَصْدَرَ هُوَ فِعْلُ الْفَاعِلِ حَقِيقَةً** : او مسمی کولے شی په اسم دخپل اصل سره چه هغه مصدر دے ځکه مصدر خاص فعل دفاعل دے حقیقتاً.

**حل ترکیب** : یسمی فعل مجهول هو ضمیر درومستتر نائب فاعل فعلا مفعول به باسم اصله جار مجرور ظرف لغوه متعلق په یسمی پوری واو اعتراضیه هو مبتداء المصدر خبر مبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معترضه لام جار ان حرف از حروف مشبه بالفعل المصدر اسم ان هو مبتداء فعل الفاعل مضاف مضاف الیه مبهم ممیز حقیقة تمیز ممیز سره دتمیز نه خبر دمبتداء چه هو دے مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبر دانّ انّ سره داسم او خبرنه بتاویل المفرد مجرور د جار شو جار سره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق په ثابت پورې او دا خبر مبتداء محذوفے دے چه هذا دے.

**تشریح** :- غرض العبارت ، پدے عبارت سره مصنف وجه د تسمیه دفعل ذکر کوی چه فعل نحوی ته فعل ځکه وائی چه فعل حقیقۃً نوم مصدر دے دفعل نحوی نو دا معنی مصدری دفعل ورکړ فعل اصطلاحی لره(۱) تسمیه الفرع باسم الاصل مصدر اصل دے او فعل فرعه ده ځکه فعل مشتق کیږی دمصدرنه نو شو مصدر مشتق منه او فعل مشتق نو مشتق منه اصل وی او مشتق فرعه وی بل تعبیر ترینه داسے هم کیږی.

(۲) من قبیل تسمیة المشتق باسم المشتق منه .(۳) یا تسمیة الکل باسم الجزء ځکه فعل لغوی چه مصدر دے او فعل نحوی چه حدث نسبت زمانه دا کل دے نو دجزء نوم کل ته ورکړے شو نو ځکه دا تعبیر کیږی.

| فعل لغوی | فعل نحوی یا اصطلاحی | تعبیرواطلاق |
|---|---|---|
| (۱) حدث | .حدث۲ .نسبت۳زمان | تسمية الفرع باسم الاصل |
| (۲)یامصدرمشتق منه | فعل مشتق | تسمية المشتق باسم المشتق منه |
| (۳) جزء | کل | تسمية الكل باسم الجزء |
| (۴) مأخوذمنه | ماخوذ | تسمية الماخوذ باسم الماخوذ منه |
| (۵) مدلول | دال | تسمية الدال باسم المدلول |
| (٦)متضمن اسم مفعول | ۱۰متضمن بصیغه اسم فاعل | تسمية المتضمن باسم المتضمن |

## علامات فعل درشعر

سین سوف جازمه قدتائے ساکن امردان — اتصال تائے فعلت نہی این علامات فعل دان

## تمرین علامات فعل:

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ ○ — لولاان رأ برهان ربه ○

سيقول السفهاء من الناس — لَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْن ○

فَاٰمِنُوْا بالله ورسوله النبی الامی ○ — كتاب الله ○

اِشْرِبُوْا ○ — اُعْبُدُوْا رَبَّكُمْ ○

اِنْ تَنْصُرُ اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ ○ — لَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى ○

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ ○ — اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ ○

وقالت النّصارىٰ ○ — سيعلم الذين كفروا

فان لم تفعلوا ولن تفعلوا ○ — قالت الاعراب امنا ○

ماقلت لهم الاماامرتنی.

هرکله چه فارغ شو مصنف دتعریف دفعل نه په اعتبارین سره چه وجودذهنی اووجودخارجی وونوشروع ئے اوکړه په تعریف دحرف کښ نودارنګه ئے اوونیل:

وَحَدُّ الْحَرْفِ كَلِمَةٌ لَاتَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى : اوتعریف دحرف دایوه کلمه ده چه دلالت نکوی په معنی الخ. **حل ترکیب** : واوعاطفه حد الحرف مضاف مضاف الیه مبتداکلمه

موصوف لاتدل علی معنی فی نفسهامعطوف علیه بل اضطرابیه تدل علی معنی فی غیرهامعطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه صفت موصوف موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء محذوفے چه هی دے هی ضمیرراجع دے حد الحرف ته مرفوع محلامبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه ان حرف معناهااسم انّ الابتداء خبرانّ هی مبتداء لاتدل فعل فاعل علیه جارمجرورظرف لغوه متعلق لاتدل الاحرف استثناء بعدمضاف ذکرمضاف الیه ماموصوله منه ظرف مستقرخبرمقدم الابتداء مبتداء موخرداشوه جمله اسمیه خبریه صله دموصول دامجموعه مضاف الیه دذکرامضاف سره دمضاف الیه نه مضاف الیه دبعدمضاف سره دمضاف الیه نه مستثنی مفرغ مفعول فبه مستثنی منه فی وقت من الاوقات محذوف دہ لاتدل سره دفاعل اوسره دمتعلق اوسره دمفعول فیه نه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح : سوال**:. حرف په خپله په معنی دلالت نکوی نوځرنګه به دلالت علی المعنی فی غیرها اوکړی. **جواب** :. دلته فی په معنی باعتبارسره دے لکه دفقهاؤداقاعده ده الدارفی نفسهاحکمهاکذااې باعتبارنفسهاحکمهاکذاحاصل داشو چه حرف په اعتباردخپل ذات سره دلالت نکوی بلکه یوه کلمه ده چه دلالت نکوی په بوه معنی باندے په اعتباردغیرسره چه په دلالت کښ انظمام دکلمے اخری ته محتاج دے.

### فوائد قیود

په تعریف دحرف کښ حرف معرف اومحدوددے. کلمه الخ تعریف اوحددے کلمه په درجه دجنس کښ ده معرف لره هم شامل ده اوغیرمعرف لره هم شامل ده چه اسم اوفعل دی لاتدل بمنزله دفعل دے پدے سره اسم اوفعل خارج شو نوتعریف جامع اومانع شو.

**:وعلامته ان لایصح الاخبارعنه ولابه وان لایقبل علامات الاسماء ولاعلامات الافعال.**

ترجمه : اوعلامه دحرف داده چه نه به محکوم عنه واقع کیږی اونه به محکوم به اونه پکښ علامات داسم وی اونه دفعل.

**حل ترکیب** : علامه مبتداء ان لایصح الخ ددے ترکیب مخکښ ذکردے دابیامعطوف علیه شو واوعاطفه ان لایقال الخ معطوف دمعطوف علیه معطوف سره دمعطوف علیه نه

بتاويل مفردخبردمبتداء.

**تشريح** :- پدے عبارت سره عـلامات دحرف ذکرکـوی نو حرف نه مخبرعنه اومخبربه يعـنـی مبتـدافـاعـل نائب فاعل اوخبرنه واقع کیږی څنگه چه دوی مستقل معنی لری اوحرف غیرمستقل دے دايوه علامه دحرف شوه. دويمه علامه دحرف: داده چه حرف علامات داسماء اوعـلامـات دافـعـال نه قبلوی. مصنفؒ د ان لايقبل قيدپس دان لايصح نه ذکرکړے دے اشاره ده دیته چه دا تخصيص بعد التعميم دے.

:**وللحرف في كلام العرب** فوائد:تاان شاء الله تعالى ---- اودحرف په کلام دعربو کښې ډیرے فائدے دی الخ.

**حل تركيب** : للحرف جارمجرورظرف مستقرخبرمقدم فوائد موصوف مؤخرفي كلام العرب جارمجرورظرف مستقرمتعلق په كائنة پورے كائنة سره دمتعلق نه صفت مقدم موصوف سره دصفت نه مبتداء مؤخرباقی ترکیب واضح دے.

**تشريح** :- غرض ددے عبارت نه جواب دسوال دے چه هرکله حرف نه مخبرعنه اونه مخبربه واقع کیږی اونه علامات داسم اونه علامات دفعل قبلوی نوبحث ترینه بلافائدے دے نومصنف پدے عبارت سره جواب ورکړوچه للحرف فی کلام العرب فوائدنوبحث ورنه بلافائده ندے. (۱) **د حرف اوله فائده** داده چه دده په واسطے سره ربط قائمیږی په مابین ددواسمينو کښې مثال لکه زیدفی الدار نودزیداودداریه مینځ کښې ربط پدے طریقے سره دے چه دزيداستقرار راغلے دے په دارکښې دارته ظرف وائی اوزیدته مظروف وائی اودااستقرارحاصل دے په حرف جرسره چه فی دے اوکه فی نه وے نومعنی به داسے وه چه زيد دار دے اودامعنی باطله ده. (۲) **دويمه فائده** داده چه په حرف سره بين الفعلين ربط راځی مثال لکه اريد ان تضرب اريد يوفعل دے اوتضرب بل فعل ددوی په مابين کښې ربط پدے طريقے سره دے چه دويم فعل مفعول به داول فعل ده اودامفعوليت دفعل ثانی دفعل اول دپاره په واسطه دحرف سره دے چه ان دے اوان مصدريه دفعل ثانی نه اسم جوړکړه اومفعول به اسم وی.

(۳)**دريمه فائده** ربط داسم اوفعل راولی مثال ضربت بالخشبة ضربت فعل فاعل اوالخشبة

اسم دے ربط داسے دے الخشبه واسطه دپاره دحصول دضرب ده اوداواسطه توب په باحرف جرسره حاصله ده ورنه معنی به داسے وی ضربت الخشبه مالرگے او دامعنی باطله ده.

**(٤) ربط** دجملتبنوراولی مثال لکه ان جاءنی زیداکرمته پدے مثال کښ جاءنی زیدیوه جمله ده اواکرمته بله جمله ده ربط ددوی إن راوستے دے پدے شان سره چه جمله ثانیه متعلقه شوے ده ترجملے اولی پوری اوداتعلق حاصل شوے دے په واسطه دان حرف شرط سره.اودحرف نورفوائدهم دی چه دهغے بیان به راشی په قسم ثالث چه بیان دحرف دے پدے کتاب هدایه النحوکښ انشاء الله تعالی. پدے عبارت سره وجه دتسمیه دحرف ذکرکوی نودارنگه ئے اوونیل:

**ویسمّی حرفالوقوعه فی الکلام حرفااای طرفااذلیس مقصودا :**

اومسمی شوے دے حرف په حرف سره لوجے دوقوع دده نه په یوطرف کښ ځکه دے مقصودبالذات ندے.

**مقصودابالذات مثل الخ. حل ترکیب**: یسمی فعل مجهول ضمیرمستترهودرونائب فاعل حرفامفعول به لوقوعه جاراومجروراظرف لغوه متعلق یسمی فی الکلام جارمجرورمتعلق دوقوع مصدرحرفاحال ذوالحال دده ضمیرمجروردوقوعه دے ای حرف تفسیرطرفاتفسیردحرفادے اذتعلیلیه لیس لعل ازافعال ناقصه هوضمیراسم دافعال ناقصه مقصوداخبر،بالذات جارمجرورظرف لغوه متعلق دے په مقصوداپورے مثل مضاف المسندمعطوف علیه واوحرف عاطفه المسند الیه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه خبردمبتداء محذوفے چه هودے چه راجع دے مقصودا ته.

**تشریح**: حاصل دوجے دتسمیے دادے مصنف وائی چه حرف ته حرف ځکه وائی چه حرف په لغت کښ طرف ته وائی لکه وئیلے شی جلست حرف الوادی ای طرف الوادی اوداحرف هم په طرف دکلام کښ واقع کیږی.اوغرض ددے عبارت نه چه اذلیس مقصودابالذات جواب دیوسوال دے چه نه منم داخبره چه حرف په طرف کښ واقع کیږی دکلام بلکه په وسط دکلام کښ هم واقع کیږی لکه زیدفی الدارنومصنف جواب ورکړوچه مراددطرف نه طرف دکلام ندے بلکه مراددطرف نه مقصودبالذات به نه وی لکه مسند اومسند الیه چه ځنگه مقصودوی نوداحرف په یوطرف کښ وی دمقصودنه چه هغه مسند اومسندالیه دی.

**خلاصه دماسبق** : اول تـعریف دجزدموضوع دعلم نحوے اوشوپدے شان سره الکلمه لفظ الخ بیاتـقسیـم دده په هی اسم وفعل وحرف سره بیادهریوتعریف په اعتباردتعریف وجودی ذهنی اوتعریف وجودی خارجی سره.الاسم کلمه الخ وعلامته الفعل کلمه الخ وعلامته الحرف کلمه الخ وعلامته اودهرواحدوجه دتسمیه ذکرشوه ویسمی اسما الخ ویسمی فعلا الخ ویسمی حرفا الخ

**نقشه** : الکلمة لفظ وضع لمعنی مفرد

| علامات الاسم. | علامات الفعل | علامات الحرف. |
|---|---|---|
| (۱)کون الکمة معرفاباللام مثل الحمد<br>(۲)کون حرف الحرفی<br>الابتداء مثل بعریز<br>(۳)کون التنوین فی اخر<br>الکلمة مثل رسولٌ<br>(٤)کون الکلمة مسنداليه مثل اللهقادرٌ<br>(٥)کون الکلمة مضاف مثل رسول الله<br>(٦)کون الکلمة مصغرامثل یابنیّ لاتشرك بالله<br>(۷)// //منسوبا // مدنی مکی<br>(۸)// //مثنی //ان هذان لساحران<br>(۹)// //جمعا// الرحال قوامون علی النساء<br>(۱۰)// //موصوفا//رسول کریمٌ | (۱)کون حرف قدفی اول الکلمة<br>مثل قدیعلم المعوقین منکم الایه<br>(۲) السین مثل سیصلی نارا الخ<br>(۳)سوف مثل فسوف تعلمون<br>(٤)دخول حرف جازم مثل ان<br>ینصرکم اللهفلاغالب لکم<br>(٥)اتصال ضمیر المنفصل فی اخر<br>الکلمة مثل انی وجدت امراۃً تملکهم.<br>(٦)کون التاء الساکنة فی<br>اخرهامثل امنت به بنوااسرائیل<br>(۷)کون الکلمة امرافاخرج منها<br>(۸)// //نهیالاتقربوا الفواحش | وللحرف علامه واحده فقط<br>هی خلو کلمه من علامات<br>الاسم و الفعل شعر<br>درحرف ہرگز نباشد ای عزیز ازعلامات<br>اسم وفعل ہیچ چیز |
| (۱۱)کون التاء المتحرکة فی اخر<br>الکلمة مثل قائمة علی اصولهافباذن الله | (۹)کون نونی التاکیدفی اخر<br>الکلمة مثل ثم لتسئلن لنسفعا<br>والاصل لنسفعن بالنون الخفیفة<br>(۱۰) التصریف ای کون الکلمة<br>مصرفاویخرج منهااربعة عشرة<br>صیغةً مثل ضرب یضرب. | |

## فوائد الحروف

| | | |
|---|---|---|
| (١) | للربط بين الاسمين | مظروف جار ظرف |
| (٢) | للربط بين الفعلين | زيد في الدار. |
| (٣) | للربط بين الاسم و الفعل | اريد ان تضرب |
| (۴) | للربط بين الجملتين | ضربت بالخشبة |
| | | ان جاء نى زيد فاكرمته. |

**( التمرين)** ميزكل واحدمن الاقسام الثلاثة بعلامة فى الامثلة الآتية:

| | | |
|---|---|---|
| (١)كتاب الله | (٧)اتقواالله | (١٣) المدرسة حميلة |
| (٢)لقدكفر الذين | (٨) ان هذان لساحران | (١۴) القرآن كتابنا |
| (٣)والله قدير | (٩) فسوف يكون لزاما | (١۵) اجتنب الذنوب |
| (۴)انه لقول رسول كريم | (١٠) العلم نورٌ | (١٦) وان تصومواخيرلكم |
| (۵)لايلاف قريش | (١١) امنت بالله | |
| (٦)كلاسوف تعلمون | (١٢)فلان عبد من عباداللہ | |

**حل تركيب : قوله**:وان تصومواخيرلكم:- الواو حسب ماقبلها ان حرف مصدريه ونصب تصوموافعل مضارع منصوب بحذف النون و الواوضميرمتصل فى محل رفع فاعل ان ومابعدهابتاويل مصدرفى محل رفع مبتداء خيرٌخبرمرفوع بالضمه.لكم جارمجرورمتعلق به خير.

**نقشه**




علامات الاسم فى الاية

متعلق (ب) قوامون.

**فصل** الكلام لفظ تضمن كلمتين بالاسناد:

ترجمه: کلام یو لفظ دے چه متضمن وی کلمتین لره په سبب داسناد حاصله سره

**حل ترکیب**: الکلام مبتداء لفظ موصوف تضمن فعل فاعل کلمتین مفعول به بالاسناد متعلق به تضمن یا متعلق مستقر فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به او متعلق شو دلفظ موصوف باصفت خبر مبتداء مبتداء باخبر جمله اسمیه خبریه.

**تشریح**:- ربط دماقبل سره دریم فصل دمقدمے دے په دے کښې بیان دموضوع دجز ثانی دعلم نحو بیانوی چه هغے ته کلام وائی او بیا اقسام دکلام بیانوی کلام په لغت کښې مایتکلم به ته وائی. اوپه اصطلاح دنحاتو کښې ماتضمن کلمتین بالاسناد ته وائی. اوداکلمتین عام دی:

(۱) حقیقتاً وی (۲) که حکماً وی (۳) که لفظاً وی (٤) که تقدیراً وی

**سوال**: کلام به مصنف په عطف سره ذکر کړے وے داسے به ئے وئیلی وے الکلام الخ څکه دواړه دعلم نحو موضوع دی. **جواب**: په عطف سره ئے څکه ذکر نکړو چه په دے سره ئے اشاره کړے ده استقلال دکلام ته که حرف عطف ئے ورسره ذکر کړے وے نو کلام به معطوف وو او کلمه به معطوف علیه وه او معطوف تابع دمعطوف علیه وی نو بیاداوهم پیداکیدو چه کلمه اصل دکلام دے او کلام فرعه او تابع دکلمه ده حالانکه مستقلا اصل دے. **سوال**: په تعریف کښې ذکر شو تضمن کلمتین نو ددینه دامعلومه شوه چه کلام هغه ته وائی چه متضمن وی کلمتین لره مثلاً زیدقائم کلام دے نو دد ے دپاره متضمن څه شے دے؟ نو که خپله تضمن وائی نو اتحادراغے بین المتضمِن و المتضمَن. **جواب**: دلته دا فیدپکښې لګولے کیږی چه متضمن وی په اعتبار دعروض دهیئت اجتماعی سره نو زیدقائم متضمن دے او هر واحد دکلمتین نه متضمَن دے دد ے مثال په محسوساتو کښې مثلاً کټ شو په اعتبار دعروض دهیئت اجتماعی سره متضمن دے او خپے بازوګان اورسئ پرې متضمَن دی.

**سوال**: ستاد تعریف نه زیدقائم ابوه اوزیدابوه قائم خارج شو څکه داکلام دی او متضمن کلمتین لره ندی بلکه کلمات ثلاثو لره دی.

جواب: کلمتین عام دی حقیقتا وی او که حکماوی دا حکماکلمتین لره متضمن دے په اعتبار دتاویل سره چه زیدقائم الاب دے.

**سوال** : داخوبیاکلمات ثلاثه دی. **جواب** : الاب مـضاف الیه دے اومضاف الیه خرج وی دمضاف نه. **سوال** : خارج شودتعریف دکلام نه جسیٌ مهملُ اودیز مقلوب زید ځکه پدے کښ الـفاظ مهـمله دی لکه جسق لفظ مهمل دے اودیزلفظ مهمل دے اومرادستابه لفظ موضوع للمعنی وی. **جواب** : کـلمتین عام دی حقیقتاوی که حکماوی داحکمادی په تاویل دهذا اللفظ سره. **سوال** : ستـادتـعـریف نـه اضرب اولاتـضرب خارج شو اوکـلام دے.دلـه تـضمن دکـلمتینـونشتـه دے بلکه کلمه واحده ده. **جواب** : کـلـمتیـن عـام دی لفظی کلمتیـن وی که تـقـدیـری کـلمتیـن وی دلته تقدیری کلمتین دی په اضرب اولاتضرب کښ انت مـستتردے چه هغه فاعل دفعل دے فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه انشائیه.

**سوال** : مصنف کلمه کلام ذکرکړل اوجمله ئے ذکرنکړه دجملے ذکردلته هم پکاروو. **جواب** دلـتـه دوه مـذهبـه دی (۱) دمحققینونحاتو (۲) اودبعضونحاتو .مُحققیں نحات دجملے اوکلام په مینځ کښ په ترادف قائل دی هرکله چه دکلام تحقیق اوشی نودادجملے تحقیق هم دے.
(۲)بـعـض نـحـات وائـی چـه دجملے اوکلام ترمینځه فرق دے جمله عامه ده اوکلام خاص دے هـغـوی دجملے تحقیق داسـے کوی الجملة مـاتـضـمـن الاسنادالاصلی برابره خبره ده که هغه اسـنادنسبت مقصودلذاته وی اوکنه وی.اودکلام تعریف داسـے کوی ماتضمن الاسناد الاصلی لـکـن اسـنـادپـکـښ مـقـصـودلذاته وی نوپدے وجه باندے دجملے اوکلام په مینځ کښ عموم خـصـوص مـطـلـق شـونـوپـس کل کلام جمله ولاینعکس دلته مصنف مذهب دتحقیق نحات راغستـے دے پـس تـعـریف دکلام تعریف دجملے دے وبالعکس ایضا. مصنف تعریف دکلام اوکړواوپه هرتعریف کښ لابدی دجنس اوفصل نه لفظ قیدسره تمام الفاظ داخل شو(داپه منزله دجنس دے)مفردات مرکبات موضوعات مهملات ټول داخل دی په تعریف دکلام کښ په لفظ سره اوداقید چه بالاسناف فصل ثانی دے پدے سره مرکبات غیرکلامیه خارج شو.

**والاسناد نسبة احدی الکلمتین الی الاخری ویسمی جملة جملة**

**ترجمه** :- اواسنادنسبت ددوکلمونه دیوے کلمے دے بلے ته الخ.

**حل ترکیب** : الاسـنادمبتداء نسبت مضاف احدی مضاف مضاف الیه الکلمتین مضاف الیـه دامـجـمـوعـه مضاف الیه دغـره شو الی الاخری دامتعلق دے په نسبت پوری باجارحیث

مضاف تغيرفعل فاعل المخاطب مفعول به فائدة موصوف نامة مفسريصح السكوت فعل فاعل عليهامتعلق دے په السكوت پورى فعل سره فاعل اومتعلق نه تفسيردتامه مفسر سره دتفسيرنه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مفعول مطلق تفيدفعل سره دفاعل اومفعول به نه اومفعول مطلق نه مضاف اليه دحيث مضاف بامضاف اليه مجرورجاردامجموعه ظرف لغوه متعلق نسبت پورى دامجموعه خبردمبتداء واوعاطفه يسمى فعل هونائب فاعل جمله مفعول به فعل بافاعل ومفعول به جمله فعليه خبريه.

**تشريح**: غرض ددے عبارت نه چه والاسناددے تعريف داسنادکوى چه ذکردے په تعريف دکلام کښ. **فوائد قيود**: نسبة احدى الكلمتين الى الاحرى داجنس دے پدے سره نسبت اضافى غلام زيداونسبت توصيفى رجل عالم خارج شوپدے سره مخاطب ته فائده تامه نه رسيږى ځکه چه دفائدے تامے دپاره ځلور څيزونه ضرورى دى:

(۱) محکوم عليه. (۲)محکوم به. (۳)نسبت حکميه. (۴)حکم مثلا غلام زيدقائم شو.زيدمحکوم عليه دے اوقائم محکوم به دے اودقيام نسبت زيدته نسبت حکميه دے اودقائم چه کوم ربط دے ديته حکم وائى ددينه هراهل لسان په خپله ژبه کښ تعبيرکوى فارسى زبان ورته هست وائى اواردوزبان ورته هے واےء اوپه پښتوکښ ورته دے وائى.

په مرکب اضافى اوتوصيفى کښ داځلورڅيزونه موندے کيږى: مثلا غلام زيدمضاف مضاف اليه که محکوم عليه شى نومحکوم به نشته اوکه محکوم به شى نومحکوم عليه به نه وى نولهذانسبت تامه نه فائده کوى ځکه خارج دى.

قيديصح السكوت عليها داپه تعريف داسنادکښ داخل ندے لکه داده فائده تامے دپاره تفسيردے.فائده دکلام نورنومونه هم دى:

(۱) جمله (۲)مرکب تام. (۳)مرکب مفيد. (۴) مرکب اسنادى. لکن مشهورنوم دده جمله ده په ترکيب کښ

---

**فعلم ان الكلام لايحصل الامن اسمين نحو زيدقائم الخ تاحمله فعلية**

**ترجمه**: پس معلومه شوه چه کلام نه جوړيږى مگردد وواسمينونه لکه زيدقائم.

**حل ترکيب**: فاء تفريعيه علم فعل مجهول ان حرف مشبه بالفعل الكلام اسم ان لايحصل

فـعـل فـاعـل الاحرف استثناء من اسمین معطوف علیه من فعل وسم معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه مثنی مفرغ دامجموعه بیاظرف لغوه متعلق لایحصل فعل سره دفاعل اومتعلق نه خبردانٔ دابیاپه تاویل دمفردسره نائب فاعل دعلم شونوشوه جمله فعلیه تفریعیه یسمی فعل هونائب فاعل جمله فعلیه موصوف موصوف باصفت مجموعه مفعول به.

**تشریح** : کلام حاصلیږی داسمین نه داسے اسمین نه چه یو مسندالیه اوبل مسندوی یابه یـواسـم وی اوبـل فـعـل وی.دلیـل دادے دپاره پـه کـلام کـښ لابدی وی داسنادنه اوپه اسنادکښ لابدی وی دمسنداومسند الیه نه اودانه حاصلیږی مګرپه ضمن داسمین یاپه یواسم اوبل فعل کښ.

**سوال** : ستاقـاعـده منقوضه ده په غلام زیدباندے دادوه اسمین دی اوکلام ندے. **جواب** : مونږه وایو چه دوه اسمین به وی لکن یوبه مسندالیه وی اوبل مسندوی اودلته داسے ندی بلکه یومضاف دے چه غـلام دے اوبـل مضاف الیه دے چه زیددے. **سوال** : ستاقاعده منقوضه ده په ضریك باندے دلته یواسم دے اوبل فعل اوکلام ندے. **جواب** : مونږه وایو چه کـلام بـه مـرکـب وی داسم نـه چـه مسندالیـه وی اوفـعـل نـه چه مسندوی دلتـه اسم چه ضمیردمفعول دے فضله دے مسنذ الیه ندے اګرکه فعل مسنددے. **سوال** : څـه وجـه ده چه مصنف پـه تـقسیـم دکلام کښ ادات دحصرذکرکړه چه لا او الا دی اوپه تقسیم دکلمه کښ ئـے نـه ووذکرکړی. **جواب** : پـه تـقسیـم دکـلـمـه کـښ احتمالات نه ووا وه کلام کښ احتمالات عـقـلـیه مـوجـودوونـوپـه االاسره چـه کـوم احتـمال صحیح وو هغه ذکرکړه څکه احتمالات په تقسیم دکلام کښ شپږدی:

دری احتمالات متوافقین دے :

(۱)اسم اواسم. (۲)فعل وفعل. (۳)حرف وحرف.

اودری احتماله متخالفین دے: (۱)اسم وفعل. (۲)اسم وحرف. (۳) حرف وفعل.

بلکه راغلی دی پدی قول د شاعرکښ :

اسـم واسـم فـعـل وحـرف وحـرف     اسم وفعل اسم وحرف فعل وحرف

پدے احتمالاتوکښ اسم اواسم اسم اوفعل صحیح وو اوباقی نوراحتمالات غیرصحیح دی

څکـه پـدوی کښې که مسندالیه وی نو مسندبه نه وی اوکه مسندوی نو مسندالیه به نه وی یابه دواړه نـه وی اوکـلام جـوړیږی دمسنداومسندالیه نه مصنف دیته اشاره کړے ده پدے قول سره اذلایوجد المسندو المسند الیه معاً فی غیرهما الخ.

**فائده** : اسـم مسـنـد اومسـنـد الیـه دواړه واقـع کیږی فعل مسندواقع کیږی نه مسند الیه اوحرف نـه مسـنـد اونـه مسـنـد الیـه اوکوم ځائی چه فعل مسند الیه واقع وی اوحرف یامسند یامسند الیه واقع وی نو هغه به اسم وی تاویلاً سنذکره فی موضعه انشاء الله تعالٰی.

**فـان قیـل قـدنـوقض بالنداء نحویازیدُ** : پس کـه څـوك وائـی چه ستـاقاعده مذکوره منقوضه شوه په ترکیب ندائیه باندے لکه یازید.

**حـل ترکیب** : ان حرف شرط قیـل فـعـل مـجـهـول قـد حرف تحقیق نوقض فعل مجهول بالنداء ظرف لغوه متعلق نوقض داجمله فعلیه مقوله قیل.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف په قاعده مذکوره باندے یو اعتراض ذکرکوی حاصل داعتـراض دا دے چـه ستـا حـصـر دکـلام صرف په دوو صورتونوکښې صحیح ندے چه کلام به دواسمیـنـو نـه مـرکب کـیـږی یادفـعـل اواسـم نـه مـرکـب کـیـږی جمله ندائیه داقاعده ورانوی مثـلاً یـازیـدبـالاتـفـاق کـلام دے اودامـرکـب دے دحـرنداء نـه چـه یاحرف نداء ده اوداسم نـه چـه زیدمنادی ده ددے جواب مصنف پدے خپل عبارت سره کوی.

**قلناحرف النداء قائم مقام ادعو واطلب وهو الفعل فلانقض علیه .**

مـونـږ وایـو چـه حـرف نـداء قـائـم ده پـه مـقـام دفعل چه ادعواواطلب دے اوهغه فعل دے نـوقـاعـده منقوضه نده. **حـل ترکیب** : قـلـنـافـعـل فـاعل حرف النداء مبتداء قائم صفت مقام مـضـاف ادعـو مـعـطـو ف عـلیـه اطـلب مـعـطـوف دامـجـمـوعه مضاف الیه دمقام دامجموعه بیامفعول فیه دقائم دامجموعه خبردمبتداء فاء تفریعیه لالنفی الجنس نقض اسم لاعلیه ظرف مستقرخبرلا.

**تشریح** :- حـاصـل دجـواب دا دے چـه یـاحرف نداقائم مقام ادعواطلب ده اودافعلین دی نوترکیب دکلام دیواسم اوفعل نه راغلے دے نه دحرف اواسم نه.

**سوال** : یاحرف نداء ده غیرمستقل حرف دے نو غیرمستقل دمستقل قائم مقام څنګه شو.

**جواب :.** دغـه شـان سـمـاع دعـربـونـه راغـلـے ده اوقیـاس لـره پدے کـښې دخل نشتـه دے فلایردمایرد.

## التمرین لبحث الکلام

| | |
|---|---|
| ختم الله علی قلوبهم | ضرب الله مثلاً |
| انی رئیت احدعشر کوکبا | حج بیت الله فرض |
| انه لقول رسول کریم | عذاب القبرحق |
| تالله لاکیدنّ اصنامکم | وامرأته قائمةٌ |
| لاتقربوا الزنیٰ | لاتشرك بالله شیئا |

**واذافرغنامن المقدمة فلنشرع فی الاقسام الثلاثة .**

هرکله چه ،مونږه فارغ شودمقدمے نه نواراده مونږه دشروع اوکړه په اقسام ثلاثوکښې.

**حل ترکیب :** اذاشرطیه فرغنافعل فاعل من جار المقدمه المجرور دامجموعه فعل شرط فاء جزائیه نشرع فعل فاعل فی جار الاقسام موصوف الثلاثه صفت جارمجرورمتعلق په فعل پوری دامجموعه جزاء دشرط.

**تشریح :** زده کړه داخبره داکتاب دمصنف مشتمل دے په امورخمسوباندے:

(۱) مقدمه. (۲)اقسام ثلاثه. (۳)خاتمه.دا سهوه د قلم دناسخ نه ده.

قسـم اول دکتـاب په بیان داسم کښې قسم ثانی په بیان دفعل کښې اوقسم ثالث په بیان دحرف کښې.بیـادقسم اول دری اجزاء دی جزاول باب اول دے په بیان معرب کښې جزثانی باب دویم دے په بیان داسم مبنی کښې اوجزثالث خاتمه ده په امورمشترکو کښې فی بیان لاسم المعرب والاسم المبنی پـه هغـے کښې دمطلق اقسام ذکرکوی مثلا معرفه اونکره مذکرمؤنث واحدمثنی جمع اسم عدد غیرعدد وغیره وغیره.په اول باب کښې اجزاء خمسه دی:

(۱)مقدمه. ۲،۳،۴مقاصدثلاثه (۱) مرفوعات. (۲)منصوبات. (۳) مجرورات.

(۵)خاتمه په بیان دتوابعوکښې. مقدمه باب اول کښې فصول اربعه دی:

(۱) تعریف اسم معرب. (۲)بیان حکم اسم معرب.

(۳) بیان اصناف اعراب. (۴)تقسیم اسم معرب الی المنصرف والی غیر المنصرف.

مصنف بيان داسم مقدم كړے دے په بيان دفعل باندے اوپه بيان دحرف باندے. ځكه اسم اصل اوعمده دے په نسبت دفعل اوحرف باندے پدے شان سره چه دنوع داسم نه كلام جوړيدے شي نه دنوع دفعل اودنوع دحرف نه.

**سوال** : اذافرغناشرط دپاره دفلنشرع نه صحيح كيږى ځكه شرط ملزوم وى اوجزاء ورسره لازم‌وى پدے معنى سره چه شرط كله موجودشى نوجزاء ورسره هم موجوده وى اودلته لزوم نشته دے بين الفراغ عن المقدمه وبين الشروع فى الاقسام الثلاثه ځكه جائزده چه دفراغ نه بعدمصنف استراحت اوآرام كړے وى. **جواب** : دلته شروع جزاء نده دفراغ بلكه جزاء دلته اراده دشروع ده تقديردعبارت داسے دے فاردنا الشروع فى الاقسام الثلاثه.

**سوال** : تاسوتقسيم داسم كوئ معرب اومبنى ته اوتقسيم دشى اوتعريف غواړى بياتقسيم كيدے شى. **جواب** :. ددے اعتراض دفعه مصنف په خپل عبارت سره كړے ده په وقدمّ تعريفه سره فلايردمايرد.

---

**فصل فى تعريف الاسم وهو كل اسم ركب مع غيره الخ ويسمى متمكنا**

فصل په بيان دتعريف داسم معرب كښے دے اودا هرهغه اسم دے چه مركب شوے وى سره دغيرنه. **حل تركيب** : فى جار تعريف مضاف مجرورالاسم مضاف اليه مجرورهو مبتداء كل اسم موصوف ركب فعل مجهول مع مضاف غيره مضاف مضاف اليه دامجموعه مفعول فيه دركب دافعل اونائب فاعل اومفعول فيه معطوف عليه واوحرف عاطفه لايشبه فعل فاعل مبنى الاصل مفسراعنى فعل فاعل الحرف معطوف عليه الامر الحاضرو الماضى معطوف عليه معطوف عليه سره معطوفاتونه مفعول به فعل سره دفاعل اوسره مفعول به نه معطوف ركب معطوف عليه سره معطوف نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف اليه دمضاف مضاف سره دمضاف اليه نه خبردمبتداء داجمله اسميه خبريه.

**تشريح** :- مصنف پدے عبارت سره داسم معرب تعريف كوى اسم معرب هغه اسم دے چه مركب وى دغيرسره اودمبنى الاصل سره مشابه نه وى.مبنى الاصل عند الجمهور درى ځيزونه دى : (۱)ماضى (۲)امرحاضر (۳) اوحرف.

اوڅلوردى عندصاحب مفصل (۱)ماضى (۲)امرحاضر (۳)اوحرف. (۴) جمله.

**فائده قیود:** اسم معرب معرّف اومحدوداوکل اسم الخ داتعریف اوحددے کل اسم بمنزله جنس دے رکب مع غیره فصل اول دے پدے سره اسماے معدوده خارج شو مثلازیدعمرو بکرخالدولایشبه مبنی الاصل فصل ثانی دے پدے سره هٰؤلاء خارج شو په قام هٰؤلاء سره پس داسم معرب تعریف مانع اوجامع دے مثال قام زیدٌ.

**وجوه تقدیم المعرب علی المبنی** ۱:.معرب اصل دے په نسبت سره مبنی ,ته ځکه مقصوددوضع د الفاظ نښ اظهاردمافی الضمیردے اوداظهاردمافی الضمیرحاصلیږی په اعراب سره ځکه په اعراب سره دامعلومیږی چه دایولفظ عامل دے اودابل لفظ معمول دے.اوهغه بل لفظ مضاف دے اوهغه بل لفظ مضاف الیه دے اوداعراب په معرب کښ موجودیږی نه په مبنی کښ.

**سوال** : اظهاردمافی الضمیرپه مبنی کښ هم کیدے شی مثال جاء نی هٰؤلاء رئیت هٰؤلاء الخ. **جواب** : په معرب کښ علی وجه الاکمل وی اوپه مبنی علی وجه الانقص وی. ۲: وجه داده چه معرب په منزله دمفرددے دایوقسم دے چه مرکب سره دغیرنه وی اومشابه دمبنی الاصل سره نه وی اومبنی بمنزله دمرکب ده دوه قسمه ده (۱) مشابه دمبنی الاصل (۲) اووقوع غیرمرکب اومفردمقدم وی په مرکب اندے نوځکه معرب مقدم شوپه مبنی باندے.

**وجه د تسمیه دمعرب:** معرب په لغت کښ ماخوذدے داعراب نه اواعراب په لغت کښ په دوه معنو مستعمل دے:(۱)اعراب ابانه اواظهارته وائی اومعرب کښ هم معنی مراده ظاهره وی.دامعنی په حدیث کښ هم موندلے شوے ده قالؑ الثیب تعرب عن نفسها یعنی ثیبه ښځه به په خوله باندے اظهاردرضادنکاح کوی په لغت دعربوکښ هم دامعنی موندلے شوے ده.کمافی الشعر:

وانـــی لاکســـوعـــن قـــذوربـــعیـــر　　　　واعـــرب احیـــانـــاانـــافـــاصـــارح

دویمه معنی اعراب ازالة الفساد ته وائی داماخوذدے دعربت معدته نه په اعراب کښ همزه دباب افعال د سلب دپاره ده ای ازالة الفساد اوپه معرب کښ هم ازاله دفسادده.

**سوال** : تعریف دمعرب مانع ددخول دغیرنه نه دے لکه غلام زیدپکښ داخل شو لفظ دغلام دغیرسره چه زیددے مرکب اودمبنی الاصل سره مشابه هم ندے حالانکه دامعرب

نـدے مبنی دے. **جواب** : دلتـه مـرادغیـرنـه عامل دے اودلته غلام دخپل عامل سره مرکب ندے.

**سوال** : بیاتـرینه مبتداء اوخبرخارج شوځکه دوی مرکب مع العامل ندی اومعرب دی. **جواب** : عـامـل عـام دے چـه لـفـظـی اوکـه مـعـنـوی وی دمبتـداء اوخبـرعـامل معنوی دے. سوال : غیرمنصرف ترینه خارج شو؟ځکه دامشابه دے دمبنی الاصل سره.

**جواب** :. مراددمشابهت نه مناسبت موثره دے اودغیرمنصرف مشابهت ضعیفه دے.

اودویم نوم دمرکب متمکن دے متمکن دباب تفعیل داسم فاعل صیغه ده په معنی دځاے ورکولوسره اومعرب هم اعراب لره ځاے ورکوی دد ے وجی نه دیته متمکن وائی.

**فـصـل وحکمه ان یختلف اخره باختلاف العوامل** : اواثـرمـرتبه په اسم معرب دادے چه اخیرحرف دده به په سبب داختلاف دجنس عوامل سره بدلیږی.

**حل ترکیب** : حـکـم مـضـاف ه مـضاف الیه مجموعه مبتداء ان ناصبه یختلف فعل اخره مـضـاف مـضـاف الیـه فـاعـل بـاجـاره اختلاف مجرورمضاف العوامل مضاف الیـه داتول بیاخبردمبتداجوړیږی. **تشریح** : دا دویم فصل دے پدے کښ بیان د یو څوامورودے:

(۱) حـکـم معرب. (۲)تعریف اعراب (۳) اقسام اعراب (۴) دعامل تعریف. (۵) محل اعراب (٦) اقسام مـعـرب. .... پدے عبارت سره حکم داسم معرب ذکرکوی حاصل دد ے دادے چه دعـامـل پـه بـدلـے دوسره اخـرد مـعـرب بـدلیـږی اختـلاف عام دے لفظی وی مثال جاء نی زید الخ.یاتقدیری مثال جاء نی موسیٰ الخ.

**اختلاف** : اولا پـه دوه قسـمـه دے ۱- اختـلاف صـفـتـی. ۲- اختلاف ذاتی. د اختلاف صـفـتـی نـه مـراد دا دے چه یو حرکت په بل حرکت بدل شی اوداختلاف ذاتی نه مراددادے چه یو حرف په بل حرف بدل شی. بیا هریوددینه په دوه قسمه دے:۱- اختلاف صفتی لفظی.

۲-اختلاف تقدیری، پس مجموعه څلورصورتونه شو.

(۱) اختلاف ذاتی لفظی لکه جاء نی ابوك الخ.

(۲) اختلاف ذاتی تقدیری لکه جاء نی مسلمیّ الخ.

(۳) اختلاف صفتی لفظی لکه جاء نی زیدٌ الخ.

(۴) اختلاف صفتي تقديري لکه جاء ني موسیٰ الخ.

**سوال** :- حکم په ډیرو معانو سره راځي دلته کومه یوه معنی مراده؟. **جواب** : دلته په معنی داثرسره دے. **سوال**: اثر نسبت مؤثرته کيږي دلته معرب ته شوے دے اومعرب موؤثر اوعامل ندے. **جواب** : دلته دوجه دادني ملابست نه اضافت اونسبت معرب ته شوے دے ځکه چه دااثر په معرب ظاهريږي اومرتب کيږي. **سوال** : ضربت زيداً اوانّ زيداً اني ضاربٌ ذيداً په اول مثال کښ عامل دے په زيدکښ دويم مثال کښ حرف عامل دے اوپه دريم مثال کښ اسم عامل دے اواخرذزيدندے مختلف شوے په دريو حالاتو کښ يوشان دے اومعرب دے.

**جواب** :. اختلاف ذاتي مرادندے په حکم دمعرب کښ بلکه عمل داختلاف مراددے.

**سوال** : العوامل جمع ده اودجمع اطلاق کم ازکم په دريوباندے کيږي ددے مطلب داشو چه په معرب باندے درے عامل اوددينه زيات به پرے داخليږي حالانکه دامعنی غلطه ده. **جواب** : دلته جنس عوامل مراددی قرينه پرے الف لام جنسي دی چه داخل دی په عوامل باندے.

**سوال** :. جمع بياولے راوړه چه دلته جنس عوامل مراددی. **جواب** :. اشاره ده کثرت ده عوامل ته عامل يوندے بلکه ډيردي ددے وجينه صيغه دجمع کثرت راوړے ده.

**الاعراب مابه يختلف اخر المعرب** : اعراب هغه دے چه دده په سبب سره مختلف کيږي اخردمعرب. **حل ترکيب** : الاعراب مبتداء ماموصوله ياموصوفه مابعدورله صله ياصفت خبردمبتداء به جارمجرورمحلا يختلف فعل اخر المعرب مضاف مضاف اليه فاعل فعل.

**سوال** : په تعريف داعراب کښ عامل اومعنی مقتضی داخل شوه ځکه دډوی په وجه هم اخردمعرب مختلف کيږي. **جواب** : مراددمانه دلته حروف اوحرکتونه دی اوعامل اومعنی مقتضی حروف اوحرکتونه ندی حاصل داشو چه اعراب نوم دحرف اوحرکت دے.

**سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په واودوالله کښ داحرف اواعراب خوندے اوته وائی چه اعراب حرف دے. **جواب** : مطلق حرف ندے بلکه حرف علت ساکنه به وی اودلته داواوحرف علت ساکنه ندے. **جواب ۲**- مرادده مانه شي دے اوپه بِهٖ کښ باسببيه ده اومرادسبب نه سبب قريبه داختلاف دے اوهغه اعراب دے اوعامل اومقتضی داختلاف دپاره سببين بعيده دی هرچه عامل سبب بعيده دے ځکه داختلاف اوعامل ترمينځ دوه واسطی دی ۱. معنی

مقتضی ۲ .اعراب ددینه روستو اختلاف راځی اول عامل راشی بیامعنی مقتضی په دریم اعراب کښې روستو بیااختلاف او معنی مقتضی داختلاف لپاره هم سبب بعیده دے ځکه دمعنی مقتضی اواختلاف ترمینځ یو واسطه ده چه اعراب دے اواعراب داختلاف دپاره سبب قریبه دے ځکه داعراب اواختلاف ترمینځه واسطه نشته پشان دعامل اومقتضی باندے اعراب راشی نو اختلاف راشی.




جاء نی زید،جاء فعل عامل زیدفاعل مرفوع بنابرفاعلیت ضمه اعراب دال محل اعراب.

**سوال** : سبب قریبه دپاره دلته قرینه څه ده؟ **جواب** : دلته باء سببیه ده اوسبب مطلقا ذکردے اوقاعده داده چه شی ذکرشی مطلق نو صرف دهغے کیږی فردکامل ته اوفردکامل داختلاف دپاره سبب قریبه اعراب دے چه داسبب قریبه داختلا ف دپاره دے.

**تشریح** :کالضمة و الفتحة و الکسرة و الواو و الالف و الیاء. پدے عبارت سره دوه قسمونه داعراب ذکرکوی اعراب په دوه قسمه دے(۱)اعراب بالحرکت (۲) اعراب بالحرف. اول اعراب بالحرکت په دری قسمه دے ضمه فتحه کسره اوبالحرف په دری قسمه دے بالواو و الالف والیاء اعراب بالحرکت اصل دے اواعراب بالحرف فرعه ده.

---

:واعراب الاسم علی ثلاثة انواع رفع ونصب وجر : اواعراب داسم معرب په دری انواعو سره دے یورفع دویم نصب دریم جر. **حل ترکیب**:- اعراب الاسم علی ثلاثه انواع مبتداء رفع ونصب وجرخبرمبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه.

**تشریح** :- داعراب سره قید د اسم ولکولو ځکه پدے سره مطلق اعراب اواعراب الفعل

خارج شو مطلق اعراب څلوردی۱ - رفع۲. نصب۳. جر۴.جزم . اواعراب الفعل هم دری دی ضمه فتحه جزم اواعراب داسم دری دی و.رفع ۲ .نصب۳. جر وجه د حصر په اعراب داسم کښ داده چه دا اعراب به خالی نه وی یابه دااعراب دال وی په عمده باندے نورفع یابه دااعراب دال وی په فضله باندے نوبیابه خالی نوی یابه بالذات وی نو نصب یابه بالواسطه وی نو جر.

**سوال** : مصنفؒ انواع اوونیل اواقسام ئے ولے ونه وئیل. **جواب** : اعراب لفظاً راوړے دے اشاره ده چه رفع اونصب اوجردایوه نوعه ده اوددینه دالاندے افرادی درفع دری افرادی (۱)په ضمے سره (۲) رفع په الف سره (۳)رفع په واوسره دنصب څلورانواع دی (۱) نصب په فتحه سره (۲)نصب په کسرے سره(۴) نصرب په الف سره (۴)نصب په یاسره.دجردری افرادی ۱.جرپه کسرے سره۲.جرپه فتحه سره۳.جر په یاسره

**العامل مابه رفع اونصب اوجر** : عامل داسم هغه دے چه دهغه په وجه رفع اونصب اوجرپه آخرداسم کښ راځی.

**حل ترکیب** : العامل مبتداء ماموصوله به خبرمقدم رفع ونصب وجرمعطوفات مجموعه مبتداء مواخره دامبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه صله دموصول دابیاخبردمبتداء.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف تعریف دعامل ذکرکوی عامل په لغت کښ موثرته وائی اوپه اصطلاح کښ مابه رفع اونصب اوجرعامل هغه اسم دے چه دهغه په وجه په اخرداسم معرب کښ رفع اونصب اوجرراځی.

**سوال**: لما اولم عامل دی ددے په وجه په اخرکښ جزم راځی نه رفع اونصب اوجر. **جواب** مراد دلته عامل داسم دے اولمااولم عامل دفعل دی په فعل کښ عمل کوی نه په اسم کښ دا تعریف دعامل په نزدبعضونحاتودے (۲) اوبعضی نحاتوتعریف دا عامل داسے کړے دے العامل مابه یتقوم المعنی المقتضی للاعراب کماقال به ابن حاجب فی کتابه الکافیه۳ بعضی نحاتوتعریف دعامل داسے کړے دے العامل مایوجب کون اخر الکلمه علی وجه مخصوص چه هغه وجه یابه رفع وی یابه نصب وی یابه جروی.داتعریف شامل دے هم تعریف داسم لره اوهم تعریف دفعل مضارع لره پدے تعریف باندے سوال مذکوره نه واردیږی اولنی دواړه تعریفونه عامل دفعل مضارع لره نه شاملیږی بلکه تعریف دعامل اسم دے فقط.

**سوال** : تـعـریف دعـامـل مـخـکـښ پـکاروو داعراب روستوپکاروو دتعریف دعامل نه څکه اعراب تفریع وی په عامل باندے اوپه واسطه دعامل سره په کلمه کښ حاصلیږی.

**جواب** : تـغـریف داعـراب مـخکښ اوکړه اوتعریف دعامل روستواوکړه څکه داعراب دپاره دوه جهتـه دی. ۱ .جهـت دصـدورداعـراب۲ .جهت دوقوع داعراب په اول اعتبارسره موقوف دے پـه عـامـل بـانـدے اوپـه اعـتـبـار ثانی سره موقوف دے په معرب باندے څکه اعراب صادریږی دعـامـل نـه وواقـع کـیـږی پـه مـعـرب بـانـدے نوداعراب دپاره دوه محله راغله روستودمعرب نه ذکـردده هـم صحیـح دے څکه دمعرب سره هم تعلق شته اودعامل نه روستوذکردده هم صحیح دے نـو پـدے ذکـرداعراب روستودمعرب اومخکښ دعامل نه څه اعتراض نه واردیږی. **سوال** : مبتـداء اوخبـرمـرفـوع دی اوعـامـل خـودلتـه نشتـه دے اوتـه وائـی چـه رفع دعامل له وجے نه راځی. **جواب** :. پـه عـامـل کښ تعمیم دے لفظی وی که معنوی وی دلته عامل لفظی نشته دے لکن عامل معنوی دے. **سوال** : جاء القاضی مررت بالقاضی دلته عامل شته چه جاء اوباء ده اورفع اوجرخونشته. **جواب**: دلته رفع اوجر اونصب عام دی لفظی وی اوکه تقدیری وی دلته تقدیری دی.

**ومـحـل الاعـراب من الاسم هو الحـرف الاخیر** : اومـحـل داعراب داسم حرف اخیر داسم معرب دے. **حل ترکیب** : مـحـل الاسم مضاف مضاف الیه موصوف من الاسم باعتبار المتعلق چـه الـکـائـن دے صـفـت مـوصـوف مـوصـوف باصفت مبتداء الحروف الاخری موصوف صفت خبرمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح** : سـوال : مـحـل الاعراب آخر الاسم ولے دے؟. **جواب** : آخرپـه مـنـزلـه دصفت دے اواسـم په منزله دموصوف اوقاعده داده چه صفت روستووی دموصوف نه ددی وجینه اخرداسم مـعـرب مـحـل داعـراب دے. سـوال:. مسلمان اومسلمون ددے اخرحرف نون اومحل داعراب خونـون نـدے بلکه ماقبل دنون نه محل داعراب دے. **جواب** : نـون حـرف اخردتثنیه اودجمع نـدے بـلـکـه دانون دحرکت مفردیانون دمفردپه عوض کښـے راوړے شوے دے اومحل داعراب الف اووا و دے.ددے وجـی نـه مـصـنـف داسوال دفع کـړے دے پـه ضـمیـرفـصل سـره چـه دحصردپاره دے پدے قول دهغه کښ هو الحرف الاخیر(فتامل)

**:واعلم انه لایعرب الخ** : پوهه شه شان دا دے چه دانه معرب کیږی الخ.

**حل تركيب** : اعلم فعل فاعل ان حرف از حروف مشبه بالفعل ه ضميرشان لايعرب لانافيه يعرب فعل مضارع مجهول فى كلام العرب جارمجرور متعلق دلايعرب الاحرف استثناء الاسم المتمكن موصوف صفت واوعاطفه الفعل المضارع موصوف صفت ماقبل معطوف عليه مستثنى مفرغ نائب فاعل دامجموعه خبرانٔ بيابه تاويل المفردمفعول به د اعلم.

**تشريح** : غرض ددے عبارت نه بيان داقسام دمطلق معرب دے معرب په دوه قسمه دے.

(۱) اسم متمكن لكن دامشروط دے پدے شرط سره چه په تركيب كښ واقع وى ورنه اسم مبنى به وى مثلازيد،عمر،بكر. (۲) **فعل مضارع** ددے دپاره هم شرط دے چه فعل مضارع به خالى وى دنون تاكيدثقيله اوخفيفه اودنون جمع مونث نه مثال يَضْرِبَنَّ يَضْرِبَنْ تَضْرِبْنَ څكه پدے صورتونوكښ فعل مضارع مبنى وى دلته دفعل مضارع تفصيل نه كوى دهغے بحث به په قسم ثانى بحث فعل كښ راځى ان شاء الله تعالى. **بحث اقسام اعراب وهى تسعة**.

**فصل فى اصناف اعراب الاسم وهى تسعة اصنافٍ** : فصل دے په بيان د اصنافوداعراب اواسم معرب كښ اوهغه نهه دى.

**حل تركيب** : فى جار اصناف مضاف الاسم مضاف اليه دامجموعه مجرورجارظرف مستقرمتعلق كائن متعَلق سره دمتعلِق نه صفت موصوف چه فصل نه دے موصوف باصفت خبرمبتداء چه هذادے هى مبتداء تسعه اصناف مضاف مضاف اليه خبراول مبتداء ان يكون الخ بتاويل مصدرمبتداء.

**تشريح** : پدے فصل كښ مصنف داسم داعراب اقسام بيانوى داعراب اقسام نهه دى اواسم متمكن چه اعراب پرى راځى شپاړس "١٦" قسمه دے دانهه قسمه اعراب چه تقسيمولے شى په شپاړس اقسامو داسم باندے طريقه ددے داده اعراب ابتدأ په دوه قسمه دے (۱) اعراب لفظى(۲) اعراب تقديرى اعراب لفظى بياپه دوه قسمه دے (۱)اعراب لفظى بالحركت(۲)اعراب لفظى بالحرف.اعراب لفظى بالحركت راځى په اسماء مذكوره كښ.(۱)مفردمنصرف صحيح.(۲)جارى مجرى صحيح.(۳)جمع مكسرمنصرف.(۴)جمع مونث سالم.(۵)غيرمنصرف.(٦)اسم منقوص فى حالت النصب.

**اعراب تقديرى بالحركت** راځى په اسماء مذكوره كښ.(۱) اسم منقوص فى حالتى الرفع و الجر.(۲)اسم مضاف الى الياء المتكلم فى احوال الثلاث.(۳)اسم مقصورفى الاحوال الثلاث اعراب لفظى بالحرف

راځي په اسماء مذکوره کښې.(۱) تثنیه حقیقي.(۲)تثنیه صوري.(۳)تثنیه معنوي.(۴)جمع حقیقي.(۵)جمع صوري.(٦) جمع معنوي.(۷)جمع مذکرسالم چه مضاف وي ياء متکلم ته نصباوجرا.اعراب تقدیري بالحرف راځي په جمع مذکرسالم کښې چه مضاف وي ياء دمتکلم ته په حالت درفع کښې فقط.

وجه دحصرداسم متمکن په اعتبارداقسامو داعراب سره. چه ذکرده په نقشه کښې.




**تشریح:** قسم اول ددے اقسامونه دادے ان یکون الرفع بالضمة و النصب بالفتحة و الجربالکسرة : داقسم اعراب مصنف مقدم کړوده دووجونه (۱) داعراب بالحرف نه(۲)داقسم اعراب په احوال ثلاثوکښې راځي داصل دے په نسبت سره حالت واحده اوحالتینوته. اواصل

مقدم وی په غیراصل باندے.

**ویختص بالمفرد المنصرف** الخ : اوخاص دے داصنف داعراب په مفردمنصرف پوری.

**تشریح** : اول قسم داعراب نه چه بالحرکت به وی دامختص دے په دریو اسماء پوری :

(۱)مفردمنصرف صحیح. (۲) جاری مجری صحیح. (۳)جمع مکسر منصرف.

تفصیل مفردپه مقابله دڅلورو اقسامو کښې راځی. (۱)مفردمقابل مرکب. (۲)مفردمقابل تثنیه وجمع. (۳)مفردمقابل مضاف وشبه مضاف. (۴)جمله وشبه جمله.

دلته مفردپه اصنافو داعراب کښې مقابل دتثنیه اوجمع دے ځکه دهغوی اعراب داسے ندے.پدے قیدسره چه منصرف دے غیرمنصرف خارج شو دهغے اعراب هم داسے ندے اوپه قیدصحیح سره خارج شو اسماء سته مکبره دهغے اعراب هم داسے ندے.

فائده. صحیح په دوه قسمه دے (۱)صحیح نحات(۲)صحیح صراف.نحات صحیح دیته وائی چه په اخرکښې حرف علت نه وی نو پدے قیدسره ناقص خارج شواومهموزاومضاعف اومثال اواجوف وغیره په صنف اول کښې داخل شو ددوی اعراب جاری مجری دصحیح دے.صراف صحیح دیته وائی چه په فااوعین اولام کلمه کښې همزه تضعیف اوحرف علت نه وی دلته مراددصحیح نه صحیح دنحاتو دے ځکه مصنف وائی الصحیح وهو ما الخ. **دلیل**: دے صنف ته دا قسم اعراب ځکه چه دااسماء اصل دی په نسبت سره نوروا سماؤته اواعراب بالحرکت اصل دے په نسبت سره اعراب بالحرف ته نوورکه اصل ته اصل داعراب دپاره درعایت دعدل.

مفرداصل بالنسبة الی التثنیة و الجمع والمنصرف اصل بالنسبة الی غیر المنصرف

صحیح اصل بالنسبة الی غیر الصحیح . جاری مجری الصحیح اصل بالنسبة الی الغیر جمع مکسر اصل بالنسبة الی الجمع السالم.

**سوال** : جمع مکسرولے اصل ده په نسبت سره جمع سالم ته سره ددینه چه جمع سالم کښې حروف دمفردتول وی. **جواب** : په جمو ع کښې اصل داوی چه تغایرپکښې راغلے وی دحروف دمفردنه اوتغایرتام په جمع مکسرکښې وی نه په جمع سالم کښې. **سوال** : دجمع په صفت کښې مکسرراوړل صحیح ندی ځکه تکسیرپه حروف دمفردکښې نه راځی نه په حروف دجمع کښې.

**جواب اول:** مرادد لته دجمع مکسرنه لغوی معنی مرادنده بلکه معنی اصطلاحی مرادده.

دویم جواب: داصفت بحال متعلقه دے تقدیردعبارت داسے دے الجمع المکسرواحده.

**سوال** : اسماء سته خو هم مفرددی دهغوی دپاره هم دصنف اول اعراب پکارو.

**جواب** : مرادمفردنه دلته مفردلفظااومعنادے اواسماء سته لفظامفرددی اومعنا تثنیه ده.

مثال مفردمنصرف

| حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|
| جاء نی زید جاء فعل ن وقایه یاء ضمیرمتکلم مفعول به زیدفاعل فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه. | رئیت زیدارئیت فعل فاعل زیدامفعول به فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه. | مررت بزید مررت فعل فاعل باجار زید مجرور جار سره دمجرورنه متعلق دمررت فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه. |

مثال جاری مجری صحیح

| حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|
| هذا دلو هذامبتدا دلوخبر مبتداء باخبرجمله اسمیه خبریه. | اخذت دلوااخذت فعل فاعل دلوامفعول به فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه. | نظرت الی دلو نظرت فعل فاعل الی جار دلو مجرورمتعلق په فعل پوری فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه. |

مثال جمع مکسر

| حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|
| جاء نی رجال جاء فعل نون وقایه رجال فاعل فعل بافاعل ومفعول به جمله فعلیه خبریه. | رئیت رجالاً فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه. | مررت برجال مررت فعل فاعل برجال جار مجرورمتعلق په فعل پوری فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه. |

**و الثانی ان یکون الرفع بالضمة و النصب و الجر بالکسرة ویختص بالجمع المؤنث السالم تقول هن مسلمات ورئیت مسلمات ومررت بمسلمات:** اودویم

قسم داعراب چه وى به رفع په ضمه سره نصب اوجرپه كسرے سره اومختص دے داقسم په جمع مونث سالم پورے وائى به ته هن مسلمات الخ. **حل تركيب** : الثانى مبتداء ان مصدربه يكون فعل ناقص الرفع اسم يكون بالضمه مجموعه معطوف دمعطوفاتو سره ظرف مستقرمتعلق ثابت خبريكون فعل ناقص باسم وخبرپتاويل مصدرخبرمبتداء ويختص فعل مجهول ضمير مستتردرونائب فاعل بالجمع جارمجرورظرف لغوه متعلق يختص.

**تشريح** : دويم صنف داعراب بالحركت لفظى په حالتينوكښ پدے شان سره چه نصب تابع دجروى دامختص دے په هغه جمع پورى چه په اخركښ ئے تاوى برابره خبره ده چه مفردورسره مذكروى اوكه مؤنث وى. **سوال**: ستاقاعده منقوضه شوه چه تبون اوقلون اوارضون باندے جمع مونث سالم وى اوداقسم داعراب پكښ نشته دے. **جواب** : مراد دجمع مونث سالم نه جمع اصطلاحى هرهغه جمع مرادده چه په اخركښ ئے الف اوتاء زائده وى دامذكوره جمع پدے قيدسره خارج دى. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په مرفوعات اومنصوبات اومجرورات اوعرفات باندے اودارنگه كوكبات صافنات ددوى مفردمذكردے كوكب صافن اوصنف ثانى داعراب پكښ راځى. مرفوع .منصوب. مجرور . **جواب** :مراددجمع سالم نه اصطلاحى جمع سالم ده برابره خبره ده چه مفردورله مونث وى لكه مسلمات اوكه مذكروى لكه جموع مذكوره شوے چه ددوى مفردمذكردے .مرفوع .منصوب. مجرور .كوكب .صافن.

سوال : په جموع كښ نصب تابع دجرولے دے؟. **جواب** : جمع مونث سالم فرع دجمع مذكرسالم ده اوپه جمع مذكرسالم كښ نصب تابع دجروى ددے وجے نه په جمع مونث سالم كښ نصب تابع دجرشوددے دپاره چه دفرع زيادت په اصل باندے رانشى. **سوال** : زيادت دفرع په اصل باندے راغلے دے ځكه چه په جمع مونث سالم كښ اعراب بالحركت دے اوپه جمع مذكرسالم كښ اعراب بالحرف دے اواعراب بالحركت اصل دے داعراب بالحرف نه.

**جواب** : اعراب بالحركت مطلقا اصل ندے دارنگه اعراب بالحرف مطلقافرع نده بلكه مفردكښ اعراب بالحركت اصل دے اوپه جمع كښ اعراب بالحرف اصل دے نوزيادت دفرع په اصل باندے ندے لازم دلته. **سوال** : هركله چه جمع مونث سالم فرع دجمع مذكرسالم شوه نولے فرع په اصل مقدم شوه؟

**جواب**: دلتـه اعتبـارداعـراب دے نـه ده اسـمـاء متـمـکـنـه مصنف اول اعراب بالحرکت ذکرکوی بیااعراب بالحرف ددے وجینه اعراب دجمع مونث سالم مقدم شوپه اعراب دجمع مذکرسالم باندے.

مثال جمع مونث سالم

| حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|
| هـن مسـلـمـاتٌ هـن مبتـداء مسلـمـات خبـرمبتداء سـره دخبرنه جمله اسمیه خبریه. | رئیـت مسـلـمات رئیت فعل فـاعـل مسـلـمات مفعول به فـعـل بـافـاعل ومفعول بـه جمله فعلیه خبریه. | مـررت بـمسـلـمـات فعل سـره دفـاعـل اومتـعـلـق نـه جـمـلـه فعلیه خبریه. |

**الثالث ان یکون الرفع بالضمة و النصب و الجربالفتحة الخ.**

ترجمه: اودریم قسم داعراب چه وی به رفع په ضمه سره اونصب اوجرپه فتحه سره.

حـل تـرکـیـب: ددے تـرکـیـب بـعـیـنـه دالثانی ان یکون الخ پشان دے. **تشریح** : دریم صنف داعـراب بالحرکت چه جرتابع دنصب داعکس دجمع مونث دے دامختص دے په غیرمنصرف پوری.**سوال**: پـه غیـرمـنـصرف کښ جرتابع دنصب ولـے دے. **جواب** :. غیـرمنصرف مشابهت لـری دفـعـل سره اوپـه فـعـل کښ کسره نه راځی نوپه غیرمنصرف کښ هم جرنه راځی. **سوال** :غیرمنصرف فرع دمنصرف ده نودلته اعراب فرعی پکاردے چه بالحرف اعراب دے. **جواب** : ددے سـوال جـواب مـخـکښ تیرشو ے دے. چه ددے په حالاتوکښ اعراب بالحرکت به راځی لـفـظی پـدے کـښ یو حالت اصل اودوه حالتین فرع دی فتامل.تفصیل دغیرمنصرف په خپل مقام کښ کولے شی.انشاء الله.،

مثال دغیرمنصرف

| حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|
| جـاء نـی احـمـدجـاء فعل فاعل نون وقایه یـاضـمیرمتکلم مفعول به احمدفاعل فعل فعل بالفاعل ومفعول به جمله فعلیه خبریه. | رئیـت احـمـد رئیـت فعل فـاعل احـمـد مـفـعـول بـه فعل بافاعل ومفعول به جمله فعلیه خبریه. | مـررت بـاحـمـد فعل سـره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه. |

هرکله چه مصنف فارغ شوداعراب لفظی بالحرکت نه شروع ئے اوکړه په اعراب لفظی بالحرف کښ اوددے دپاره هم دری صورتونه دی نودارنگه ئے اوونیل:

و الرابع ان یکون الرفع بالواو و النصب بالالف و الجر بالیاء

ترجمه: اوڅلورم صنف دادے چه رفع به وی په واوسره اونصب په الف اوجرپه یاء سره.

**حل ترکیب**: کما مرسابقاً یختص فعل نائب فاعل ضمیر مستتر باجار الاسماء ا لسته موصوف صفت ذوالحال مکبره حال اول موحده حال ثانی مضافة حال ثالث الی غیریاء متکلم جارمجرورظرف لغوه متعلق مضافه و الباقی واضح تفکربادنی تامل.

**تشریح**: په اسماء ستّه مذکوره کښ اعراب لفظی بالحرف راځی لکن مطلقا نه بلکه ددے دپاره څلورشرطونه دی: (۱) مکبره به وی اوکه مصغروونواعراب بالحرکت راځی پشان دجاری مجری دصحیح مثال جاء نی اُبَیٌّ رئیت اُبَیًّا مررت بابیٍّ. (۲)موحده به وی که تثنیه اوجمع وو نودتثنیه اوجمع والااعراب به راځی مثال دتثنیه جاء نی ابوان رئیت ابوین مررت بابوین مثال دجمعی جاء نی اباء رئیت اباءً ومررت باباء. (۳) مضاف به وی ورنه دمفردمنصرف والااعراب به راځی مثال جاء نی ابٌ رئیت اباً ومررت بابٍ. (۴) مضاف به نه وی یادمتکلم ته ورنه بیابه اعراب بالحرکت تقدیری راځی مثال جاء نی ابی رئیت ابی مررت بابی.

اسماء سته دادی:

(۱)اخوك اخ ورور (۲)ابوك اب پلار

(۳)هنوك هن عورت دسړی یادښځی.(۴)حموك حم لیور دخاوند ورور.

(۵)فوك فم خوله ) (٦)ذومال صاحب المال مال دار شخص.

اولنی دری اوپینځم دامشترك دی په ضمیردمخاطب اومخاطبه کښ دواړوته اضافت صحیح دے اوڅلورم چه حموك دامختص دے په مونث مخاطبه پوری دارنگه ضمیرغائب مونث پوری څکه لیوردښځے وی اودسړی نه وی اضافت دده ضمیردمذکرمخاطب ته منع دے دارنگه دضمیردغائب مذکرهم اضافت دده منع دے.

اوشپږم چه ذودے دده اضافت ضمیرته منع دے اسم ظاهرته دده اضافت کیدے شی دے مضاف الیه دے دخپل ماقبل دپاره صفت واقع کوی اوضمیرصفت نه واقع کیږی بیااولنی

خلو راصل کښې اخوٌ ابوٌ، هنوٌ، حموٌ په وزن دفعلٌ واوخلاف القیاس حذف شو اعراب په عین کلمه باندے راغے اخٌ ابٌ، هنٌ، حمٌ شو اوفو اجوف واوی دے اصل کښې فوهٌ ووپشان دفلس په وزن دفعل ها خلاف القیاس حذف شوه فوشو پدے کښې بیادوه استعماله دی که په اضافت سره مستعمل نوی نو واو په میم سره بدلیږی نو فمٌ جوړیږی او که اضافت سره مستعملیږی نو واو بیا معاد کیږی فوك وئیلے کیږی. ذو لفیف مقرون دے ذوٌ اخری واو حذف شو ذو شو واو ساکن شو اوذال لره ضمه ورکړے شوه ذُو ترینه جوړشو. **سوال**: اسماء سته مکبره لره اعراب بالحرف ورکړے شو ددے دپاره اعراب بالحرکت پکار وو ځکه دا اسماء اصل دی او اصل لره اصل اعراب پکار وی؟

**جواب**: ددے دپاره چه لازم نشی منافرت او وحشت تامه په مابین دمفرداتو او تثنیو او جموعو کښې سره دمناسبت اشتقاقی نه. هر کله چه مفرداتو ته اعراب بالحرف ورکړے شی نو منافرت تامه او وحشت تامه به راشی بینهما نو لهذا بعض مفرداتو لره اعراب بالحرف ورکړے شو پشان دتثنیو او جموعو دپاره ددے چه مناسبت راشی په مابین ددوی کښې نه منافرت او وحشت تامه. **سوال**: بیائے شپږ اسماء ولے خاص کړه. **جواب**: دری حالته دتثنیه وی او دری حالته دجمعی وی نو شپږ و حالاتو کښې مشابهت دپاره دشپږ اسماء انتخاب اوشو **سوال**: انتخاب ددے شپږو ولے اوکړو؟ **جواب**: ددوی مشابهت او مناسبت دتثنیه او جمع سره زیات وو ځکه چه په تثنیه او جمع کښې تعدد وو لهذا ددوی اسماء ا لسته انتخاب اوشو. و التفصیل فی المطولات.

امثله اسمائے سته مکبره مؤحده

| حالت رفعا ، | حالت نصبا. | حالت جرا |
|---|---|---|
| مذکرا و مونثا ، مذکرا، مونثا | مذکرا و مونثا ، مذکرا، مونثا | مذکرا و مونثا ، مذکرا، مونثا |
| جاء نی ابوكِ وابوه وابوها | رئیت اباكَ واباه واباها | مررت بابیك وبابیه وبابیها |
| جاء نی اخوكِ واخاه واخاها | رئیت اخاك واخاه واخاها | مررت باخیك وباخیه وباخیها |
| جاء نی هنوكِ وهنوه وهنو ها | رئیت هناك وهناه وهناها | مررت بهنیك وبهنیه وبهنیها |
| جاء نی حموكِ وحمو ها | رئیت حماكَ وحماها | مررت بحمیك وبحمیها . |
| جاء نی فوكَ وفوه وفو ها | رئیت فاك وفاه وفاها | مررت بفیك وبفیه وبفیها |
| جاء نی ذومالٍ × × | رئیت ذومال × × | مررت بذی مال × × |

**و الخامس ان يكون الرفع بالالف و النصب و الجر بالياء  تاء اثين و اثتين**

**حل تركيب** : الخامس مبتداء ان ناصبه مصدريه يكون فعل ناقصه الرفع مرفوع اسم يكون بالالف سره دمتعلق نه ظر مستقرخبريكون النصب و الجرداعطف دے په الرفع باندے باجار الياء موصوف الى بمعنى التى اسم موصول مفتوح اسم مفعول مضموم ونه قبلهامضاف مضاف اليه مفعول فيه دثبت دپاره فعل سره دفاعل اوسره دمفعول نه صله دموصول موصول باصله نائب فاعل مفتوح دامجموعه صله دالتى موصول سره دصفت د الياء موصوف سره دصفت نه مجرورجارجارسره دمجرورنه عطف شويه بالالف باندے يختص فعل فاعل باجار المثنى معطوف عليه كلاذو الحال مضاف اسم مفعول هو ضمير نائب فاعل الى مضمرمتعلق مضافادامجموعه حال ذو الحال سره دحال نه معطوف اثنان و اثنتان معطوف به المثنى.

**تشريح** : پينځم صنف داصناف تسعوداعراب نه اعراب لفظي بالحرف سره راځي چه الف به وي په حالت رفعي كښې اويابه وي په حالت نصبي اوجرى كښې اودامختص دے په مثنى اوملحقاتودد ے پورى تثنيه په درى قسمه ده ١ .تثنيه حقيقي ٢ .تثنيه صورى ٣- تثنيه معنوى.تثنيه حقيقي ديته وائي چه لفظامعناتثنيه وى شكل اوصورت دتثنيے وى معنى به اخركښې ئے الف ونون ياياونون ماقبل مفتوح وى اومعنايے هم دتثنيي وى چه ددغه مادے نه دده مفردهم په كلام دعربوكښې موجودوى مثال لكه رجلان رجلين نثنيه د رجل ده.

**٢- تثنيه صورى** ديته وائي چه صورت ئے دتثنيه وى اومعنائے هم دتثنيه وى لكن ددغه مادے نه مفردورله نوى مثال اثنان واثنتين. ٣- تثنيه معنوى ديته وائي چه معنى ئے دتثنيي وى اوصورت ئے دتثنيي نه وى اوددغه مادے نه مفردورلره هم نوى مثال كلا اوكلتا.

**سوال** : دكلااوكلتاسره قيدداضافت مضمرنه ولے ولگولو؟. **جواب** : دكلا اوكلتا دپاره دوه استعماله دى (١) اضافت الى المضمر (٢)اضافت الى اسم ظاهركله چه اضافت ددوى اوضمير ته نوداقسم اعراب مذكوره پكښې راځي اوكله چه ددوى اضافت اسم ظاهر ته نوبياپكښې اعراب بالحركت تقديرى راځي وجه ددے داده چه په كلا اوكلتاكښې دوه اعتبارونه دى. ١ .اعتبارلفظي ٢- **اعتبارمعنوى** په اعتبارلفظي سره دادواړه مفرددى ځكه دتثنيي اوجمع

علامات پکښې نشته دے اوپه اعتباردمعنی سره تثنیه ده نوداعتبارینولحاظ شوے دے اوپه استعمال ددوی هرکله چه اضافت ددوی اوشی اسم ظاهرته نواسم ظاهر اصل دے نوپدغه وخت کښې اعتباردلفظ شوے دے اوپه اعتباردلفظ سره دامفرددے اومفرداصل دے نواعراب بالحرکت پکښې راځی لکن تقدیری به وی اعراب پکښې ځکه چه په اخرکښې الف دے اوکله چه اضافت ددوی اوشی ضمیرته اوضمیر فرع داسم ظاهرده نوپدغه وخت اعتبار دمعنی شوے دے اودمعنی په اعتبارسره دوی تثنیه دی اوتثنیه فرع دمفردده نواعراب بالحرف پکښې راځی چه دا هم فرع داعراب بالحرکت ده. **سوال** : کلا مصنف ذکرکړونوکلتاورسره هم ذکرکول پکاروو چه دامونث دکلادے اواعراب کښې ورسره برابردے؟ **جواب** : کلااصل دے اوکلتافرع ده په ذکرداصل سره ئے اکتفاء کړے ده اوفرع داصل نه مخالفت نکوی.

**سوال** :اثنتان بیاولے ذکرکړودا هم فرع داثنان ده. **جواب** :. دلته ئے دواړه ذکرکړه اشاره ده دے خبرے ته چه دادواړه اسمین داسمائے اعدادنه پشان دنوروا سماؤ په تذکیراوتانیث بدے شان سره چه دمذکرد پاره اثنان راځی اودمؤنث دپاره اثنتان راځی دوی پشان دباقی اسماء اعداندی چه دثلاثه نه ترعشرپوری خلاف القیاس راځی. **دلیل**: داقسم داعراب نه مثنی اونه ملحقات دمثنی پوری مختص دے ځکه مثنی اوملحقات دمثنی دافرع دمفرددی اوپه اخرددوی کښې داسے حرف هم شته چه صلاحیت داعراب بالحرف لری ددے وجی نه دوی ته اعراب فرعی بالحرف ورکړے شو.

---

**السادس ان یکون الرفع بالواو المضموم ماقبلهاو النصب و الجربالیاء المکسورة ماقبلها الخ** صنف سادس دادے چه رفع به په واوسره وی ماقبل به ترینه مضموم وی اونصب اوجرپه یاسره چه ماقبل به ترینه مکسوروی.

**حل ترکیب** : السادس مبتداء ان مصدریه یکون فعل ناقص الرفع اسم با حرف جر الواوموصوف ال بمعنی التی اسم موصول المفهوم اسم مفعول ماقبلهاصله موصول دامجموعه نائب فاعل اسم مفعول دامجموعه بیاصله شوه دالف لام موصولی موصول سره دصله نه صفت دالواو الیاء المکسوره ماقبلهاترکیب دغه شان دے.

**تشریح** : سوال د جمع دپاره ئے ډیرامثله ذکرکړل وجه څه ده؟ **جواب** :. جمع مدکرسالم په

دری قسمه ده جمع حقیقی جمع صوری جمع معنوی جمع حقیقی دیته وائی چه شکل ئے هم دجمع وی او معنائے هم دجمع وی لکه مسلمون چه جمع دمسلم ده ۲ .جمع صوری دیته وائی چه صرف شکل ئے دجمعی وی او معنی ئے دجمع نوی او دهغه دجنس او مادے نه مفرد هم نوی لکه عشرون تاتسعون پوری.سوال:. عشرون جمع دعشرده. **جواب** :. عشرون جمع دعشرنده ځکه اقل دجمع دری وی دد ے عشر بیاثلاثون جوړیږی نو اطلاق دعشرون به اوشی په ثلاثون باند ے او دامعنی غلطه ده. ۳- **جمع معنوی** دیته وائی صرف معنی ئی دجمع وی او صورت ئے دجمع نه وی او مفردورله هم دده ده ماد ے نه نه وی لکه اولو شو.

سوال: ستاقاعده منقوضه شوه په سنون قلون ارضون ثبون دجمع مذکراسم اعراب پکښ راغے او مفرددوی مؤنث د ے سنة قلة ارضة ثبة **جواب**: مراد ځمونږه دجمع نه دلته هغه جمع مذکرسالم ده چه جمع شوی وی په واو نون سره برابره خبره ده چه مفردورله مذکروی لکه مسلمون او که مفردورله مونث وی لکه جموع مذکرشو ے یعنی مراددجمعے نه جمع اصطلاحی ده په د ے قیدسره جموع مذکوره داخل دی او خارج ندی. **دلیل** : داصنف داعراب پد ے اسم پوری ځکه مختص شو چه جمع فرع دمفردده الخ و الدلیل الاخر فی المطولات فانتظرالیهاولاتکن من التارکین للعلم الدینی فانه انفع لك فی الدنیا والآخرة.

**واعلم بانّ نون التثنية مكسورة ابداًونون الجمع** الخ .ترجمه: پوهـ چه یقینانون دتثنیه به همیشه مکسوروی او نون دجمع به مفتوح وی.

**حل ترکیب** : اعلم فعل فاعل باجاران حرف از حروف مشبه بالفعا نون مضاف التثنيه مضاف اليه داسم انّ مكسوره خبرابدا مفعول فيه دمكسوره واو عاطفه نون جمع السلامه عطف به نون تثنيه داهم اسم انّ اومفتوحه خبرد ے ابدا مفعول فيه دکلا هما مبتداء تسقطان فعل فاعل عند الاضافه مفعول فيه تسقطان فعل سره د فاعل اومفعول فيه نه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

**تشریح** : د ے عبارت سره فرق مصنف کوی بین نون التثنیه و نون الجمع السلامه او دواړو ترمینځه اشتراکی صورت بیانوی. نون د تثنیه په احوال ثلاثوکښ مفتوح به وی جمع السلامة سره جمع مکسرساقط شوه ځکه دهغے نون کله مرفوع کله مفتوح او کله

مجروروی اوپه اضافت سره کله کله نه ساقطيږی مثال شياطين جمع دشيطان ده.

**دليل:** نون دتثنيه قائم مقام دے دنون مفرداوتنوين ساكن وی اوقاعده داده چه الساكن اذا حرك حرك بالكسره ددے وجينه نون تثنيه به مكسوروی.اونون دجمع به مفتوح وی ځكه جمع په اعتباردمعنی سره ثقيل ده اوقاعده چه الثقيل يقتضى الخفة اواخف الحركات فتحه ده ددے وجی نه نون دجمع به مفتوح وی اوپه اضافت سره دواړه ساقطيږی ځكه اضافت سره اتفصال راځی اوپه نون سره انفصال راځی اودادواړه نه جمع كيږی نون به ساقطيږی.

**السابع ان يكون الرفع بتقدير الضمة و النصب و النصب بتقدير الفتحة و الجر بتقدير الكسرة الخ** . صنف سابع دادے چه رفع اونصب اوجربه په احوال ثلاثوكښ په تقديرسره وی. **حل تركيب**:. ددے عبارت تركيب دماسبق نه معلوميږی.

**تشريح** :هركله چه فارغ شو مصنف دبيان داعراب لفظی نه نوشروع ئے اوكړه په بيان داعراب تقديری كښ اوددے دری قسمونه دی:

(۱) احوال ثلاثه كښ په اسم مقصوركښ راځی.

(۲)حالتين كښ په اسم منقوص كښ راځی.

(۳)په حالت واحده جمع مذكرسالم كښ راځی چه مضاف وی يادمتكلم ته .

**سوال** : قسم سابع ته داقسم اعراب ولے وركړو چه تقديری به وی په احوال ثلاثوكښ.

**جواب** : داسم مقصوره په اخركښ الف وی ددے دوه صورتونه دی الف به باقی وی حذف شوے به نه وی نوپدے صورت كښ اعراب نه قبلوی مثال لكه عصی شو.۲-كه الف حذف شوے وی نومحل داعراب اخيرحرف وی اوهغه باقی ندے لكه عصاً شودارنگه داقسم داعراب په هغه اسم كښ راځی چه غيرجمع مذكرسالم وی مضاف وی ياء دمتكلم ته ځكه اخيرحرف باندے كسره دمناسبت دياء راغله نومحل داعراب باقی نه شونواعراب تقديری راغے.

**فائده** : عصاً په اصل كښ عصوٌ وو واو دفتحے دماقبل نه په ا لف بدل شوبيادالتقاء دساكنين نه بين التنوين و الالف الف ساقط شونوعصاً شو.

**الثامن ان يكون الرفع .. القاضی الی اخره.**

**حل تركيب** : الفتحه ذوالحال لفظابمعنى ملفوظاحال هو مبتداء ماموصوله فى اخره خبرمقدم ياموصوف ماموصوله قبلهامضاف مضاف اليه متعلق ثبت داصله شو دموصول موصول باصله مبتداء مكسورخبرمبتداء مبتداء باخبرصفت موصوف موصوف باصفت خبر موخر مبتداء موخره سره دخبرمقدم نه صله دموصول موصول باصله خبرهو مبتداء شو.

**تشريح** : دا قسم داعراب نه مختص دے په اسم منقوص پورے اسم منقوص هغه اسم ته وائى چه په اخركښ ئے ياماقبل مكسوروى برابره خبره ده چه داياء اصلى وى مثال لكه الراصى شو يامبدله وى دواونه مثال لكه الرامى شو چه اصل ددے داعِوُ وو. **دليل** : دا قسم داعراب چه تقديرى بالحركت يه حالتين كښ به وى دامختص دے په اسم منقوص پورى ځكه په اخيرددے كښ ياء ده اوپه ياء باندے ضمه اوكسره ثقيله ده لهذااعراب تقديرى به پكښ راځى په حالت رفعى اوجرى كښ اوهرچه حالت نصبى دے نوفتحه به راځى لفظى ځكه فتحه خفيفه ده په ياباندے.

التاسع ان يكون الرفع تاء ومررت بمسلمىّ .

**حل تركيب** : التاسع الخ اعراب مثل ماتقدم جمع المذكراسم ذوالحال مضافا اسم مفعول هوضميردرومستترنائب فاعل الى ياء متكلم جارمجرورظرف لغوه متعلق په مضافا دامجموعه حال شوذوالحال باقى تركيب واضح دے.

**تشريح** : هركله چه مصنف فارغ شوداعراب بالحركت تقديرى نه نوشروع ئے اوكړه په بيان داعراب بالحرف تقديرى كښ اوددے يوصورت دے. **دليل**: په حالت رفعى كښ اعراب تقديرى راځى اوحالت نصبى اوجرى كښ اعراب لفظى بالباء راځى په واوسره. ځكه په حالت رفعى كښ واوپه ياء سره بدل شوباقى پاتے نشو واو نوتقديرى به وى اوحالت نصبى اوجرى كښ ياء په ياء كښ مدغم شوه نوپاتے ده بعد الادغام نومجبورااعراب لفظى شوپه حالتين كښ.

## التمرين لاصناف الاعراب

**بين فى الامثلة الاتية اى قسم من اقسام الاسم المتمكن وما اعرابه .**

| | | |
|---|---|---|
| فاعتبروا يا اولى الابصار | قال انى اناا خوك | واذقال موسى لقومه |
| ودخل معه السجن فتيان | واضرب لهم مثلا الرجلين | وتوفنامسلمين |
| هذاصراطى مستقيما | فاقض ماانت قاض | قتل داودجالوت |
| وواعدنا موسى ثلاثين ليلة | واستشهدواشهيدين من رجالكم | يسالونك عن ذى القرنين |
| اذاجاءك المؤمنات يبايعنك | اريهٔ ايتنا | علمّ آدم الاسماء كلها |
| نحن مستهزؤن | هم اولو النهىٰ | ربىّ الله |
| تولىٰ فرعون فجمع كيده | ان جاء ہ الاعمى | قال المسيح انى عبدالله |
| هؤلاء بناتى | اولئك على هدى | اسمه يحى |
| ماكان ابوك امرأ سوء | وماكانت امك بغيا | |

**فصل الاسم المعرب على نوعين منصرف الخ**

: اسم معرب په دوه قسمه دے یو منصرف اوبل غیرمنصرف.

حل ترکیب: ترکیب واضح دے. **تشریح** : دادمقدمے څلورم فصل دی پدے کښې دابیان کوی چه اسم معرب په دوه قسمه دے (۱)منصرف (۲) اوغیرمنصرف دمنصرف تعریف دادے چه پدے کښې دنهه اسبابودمنع دصرف نه دوه سببونه وی یایوسبب چه قائم مقام ددوه سببو نووی.

دویم نوم دده متمکن دے په معنی دقوت سره ځکه دے تنوین اوحرکات ثلاثه قبلوی ددے وجینه منصرف قوی په نسبت سره غیرمنصرف ته ددے مناسبت په وجه ورته منصرف وائی.

غیرمنصرف دیته وائی چه په عکس دمنصرف وی اوتعریف دده مصنف ذکرکړے دے.

**سوال** : منصرف ولے په غیرمنصرف مخکښې کړے شوے دے؟. **جواب:** اصل په اسماء کښې انصراف دے لوجے داصالت دمنصرف نه په غیرمنصرف باندے نوځکه مخکښې کړے شو.

**سوال** تعریف دمنصرف په عدمی سره کړے دے اوتعریف په وجودی سره کیدے شی.

**جواب**:. كله تعريف دشي كيدے شي دپاره دتميز چه يوشي دبل شي نه جداكړي داپه وجودي اوعدمي دواړوسره كيدے شي. **سوال** : ضربت كښې سببين موجوددي ١ .وزن فعل٢ .تانيث اوغير منصرف ندے. **جواب** : مرادځمونږه اسم دے يعني بحث ځمونږه په اسم كښې دے اوضربت فعل دے. **سوال** : حضاراوتماركښې دوه سببين شته ١ .علميت٢ .تانيث حالانكه غيرمنصرف ندي. **جواب** : جواب مرادځمونږه داسم نه اسم معرب دے اودوی اسم مبني دي. سوال : قائمةكښې سببين موجوددي ١ . تانيث وصف اواسم معرب هم دے لكن منصرف دے. **جواب** : د سببين نه مراددلته موثران دي اودوی دلته موثران ندي.

**سوال** : په حكم دغيرمنصرف كښې وئيلي شوي دي چه تنوين اوكسره نه قبلوی ستاقاعده منقوضه شوه په نعمان باندے غيرمنصرف دے دوه سببين پكښې دي ١ .علميت٢ . الف نون مزيدتين.حالانكه تنوين اوكسرے پرے راځي.اوهمدارنګه سلاسل واغلالاسلاسلاصيغه دمنتهى الجموع دد غيرمنصرف تنوين پرے راغلے دے. **جواب**: كله دضرورت شعري اودتناسب دپاره په غير منصرف باندے كسره اوتنوين راځي په نعمان كښې تنوين لوجے دضرورت شعري نه راغلے دے شعر:

اعـدذكـرنـعـمـان لنـاان ذكـره هـو الـمسك مـاكـررتـه يتـضـوع

اوپه سلاسلاً كښې تنوين له وجے ددتناسب داغلالانه راغلے دے و التفصيل في الكافيه.

**فائده** : منصرف په دوه قسمه دے ١ . حقيقي ٢ .جعلي دمنصرف حقيقي تعريف مصنف ذكركړے دے اودمنصرف جعلي دپاره اسباب خمسه دي.

(١) ضرورت شعري مثال اعدذكرنعمان لنا. (٢) تناسب بين الكلمتين مثال سلاسلاً

(٣) تنكيربعد العلميه مثال لكل فرعون موسىٰ. (٤) بدخول الالف و اللام مثال وانتم عاكفون في المساجد. (٥) بالاضافه مثال ان الصفاو المروة من شعائرالله.

**اما العدل فهو تغير ا للفظ الخ.** : هرچه دے عدل نوپس تغيردلفظ اصلي دے.

**حل تركيب** : اما حرف تفصيل العدل مبتداء متضمن دے معنى دشرط لره هومبتداء تغير اللفظ مضاف مضاف اليه من صيغة الاصلية ظرف لغوه متعلق دتغيرسره من صيغة الاخرى داهم متعلق دے په تغيرپوری تحقيقاً اوتقديراً داپه تركبب ١ .يادفعل محذوف مفعول مطلق دے يعني حقق تحققياوقدر تقديرا ٢ .مضاف اليه دمضاف محذوفه دے يعني تغيرتحقق اوتقدير

مـضـاف حذف شـو اومـضـاف الیــه دهغــه قـائـم مقام شـواودمضاف اعـراب دمضاف الیـه شواویادمصدرمحذوفه صفت دے یعنی تغیرامحققاومقدراپدے صورت کښ تحقیقا اوتقدیرا مـصـدرپـه مـعـنـی داسـم مـفـعـول سره دی۴.یادامنصرف بنابر تمیز دے یعنی دتغیرادلفظ نه تمیزدے ۵.یادکان محذوفه خبردے یعنی تحقیقاکان اوتقدیرا.

**تشریح** : مـصـنـف داسبـابـودمـنـع دصرف نـه دهربوتفصیل کوی پس داجمال نه دلته دعدل تـعـریف کـوی اودهـغــے اقـسـام اواحـکـام بیـانـوی . سـوال:. عـدل پـه نورواسبـابـولـے مقدم کړو؟ **جواب** :. عـدل داسبـاب دمـنـع دصرف نــه یـوسبـب واقـع کیــږی یعنی بغیردڅـه شرط اونـوررواسبـابـوسره دشـرط نــه سبب واقع کیـږی. **سوال** :. مـصـنـف دعـدل تـعـریف ذکرکړے اودنـوروبـاقـی اسبابوتعریف ئـے ولـے نددے کړے.ددے څه وجه ده؟.**جواب** : دعدل تعریف ئـے څـکـه کـړے دے چـه دامعروف نه وو اونوراسباب معروف اومشـهوروو نو څکه دهغوی تعریف ترك کړے شو.معانی دعدل په لغت اوپه اصطلاح کښ. **معانی دعدل** په لغت کښ :

(۱) پـه معنی دمیلان سره کله چه په صله دده کښ الی راشی مثال فلان عدل الیه ا ے مال الیه.

(۲) پـه مـعـنـی داعـراض سره کله چه په صله دده کښ عن راشی مثال فلان عدل عنه ای اعرض عنه. (۳) پـه مـعـنـی دبـعـدسره کـلـه چـه پـه صله کښ من راشی مثال عدل الجمل من البـعـریـن ای بـعـد. (۴) په معنی داستواء برابرتیاسره کله چه په صله کښ بین راشی مثال عدل الامیربین فلان وفلان ای استویٰ. اوتعریف اصطلاحی مصنف ذکرکړے فی الکتاب.

**سوال** : تـعریف دعدل په اسماء مشتقه باندے صادقیږی لکه ضارب ومضروب ددے خپل اصـل شـکـل نـه چه ضرب دے تبدیل شوے دے حالانکه پدوی کښ عدل نشته. **جواب** : په عـدل کـښ صرف شـکـل اوصـورت بـدل شـوے وی اودلته په اسماء مشتقه کښ معنا تبدیلی راغلـے ده.

**سوال** : ستـاقـاعـده مـنـقـوضه شوه په ید اودم باندے دلته دشکل اوصورت تبدیلی راغلے اوعـدل پـکـښ معتبرندے.**جواب** : مـرادڅـمـونـږه دتـغـیـرنـه تغیردصورت دے نه دے مادے اودلته تغیرفی الماده دے.

**قـولـه تحقیـقا وتقدیرا.** عـدل پـه دوه قـسـمـه دے (۱)عدل تحقیقی(۲) عدل تقدیری عدل

تحقیقی دیته وائی چه مابو جدفیه دلیل علی وجود الاصل.سوادمنع دصرف نه مثال ثلاث ومثلث الخ.۲-عدل تقدیری دیته وائی چه مالم یوحدفیه دلیل علی وجود الاصل مثال عمرو زفر. مثال دعدل تحقیقی ثلاث ومثلث دایه کلام دعرب کښ غیرمنصرف لوستے کیږی پدے کښ یوسبب ووچه هغه وصف وو اودا داسے سبب وو چه قائم مقام سببین نه ګرځی اویه یوسبب سره منصرف یاغیرمنصرف نه ګرځی نولهذافرض کړے شو چه پدے کښ عدل دے.

اوعدل پکښ تحقیقی دے ځکه دده یه عدم انصراف باندے دلیل شته دے ځکه دامعدول دے اومعدول عنه دده موجوددے اوهغه دلیل دادے چه دثلاث اومثلث معنی دری دری نودالفظ یودے اویه معنی کښ ئے تکراردے اوتکراردمعنی دلالت کوی په تکرار دلفظ باندے نومعلومه شوه چه دثلاث اصلی شکل داندے بلکه ثلاثه ثلاثه دے دغه شان دمثلث اصلی شکل هم ثلاثه ثلاثه دے نوثلاثه اومثلث معدول دے اوثلاثه ثلاثه معدول عنه دے دوی دواړو خپل اصلی شکل پریخودے دے اویل شکل ئے اختیارکړے دے بغیرد قانون صرفی نه.

**مثال دعدل تقدیری** عمر اوزفر دا دواړه په کلام دعربو کښ غیرمنصرف لوستے شی ددوی کښ صرف یوسبب ووچه علمیت وو اویوسبب قائم مقام سببین هم نه وو اویدے سره غیرمنصرف هم نه جوړیدونوفرض کړے شو چه پدے کښ دریم سبب عدل دے.اوعدل تقدیری دے ځکه دلیل دده په عدم انصراف باندے بل نشته دے دوی معدول دی اومعدول عنه ددوی عامر اوزافردی اصلی شکل اوصورت ددوی عامراوزافردے داشکل اوصورت دوی پریخودواوبل شکل اوصورت ئے اختیارکړو چه عمرو اوزفردے بغیردقانون صرفی نه.

**ولایجتمع مع وزن الفعل اصلاویجتمع مع العلمیة الخ.**

: اونه جمع کیږی عدل دوزن فعل سره هیڅ کله اوجمع کیږی دعلمیت سره.

**حل ترکیب** : لایجتمع فعل هوفاعل مع وزن فعل مفعول فیه اصلامفعول مطلق فعل مقدراصلا بمنعی ابدامفعول فیه ولایجتمع واوعاطفه یجتمع فعل هوفاعل مع العلمیه معطوف علیه مع الوصف معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه مفعول فیه یجتمع عطف دے په لایجتمع باندے

**تشریح** : عدل دوزن فعل سره نه جمع کیږی داسے نشی وئیلی چه پدے اسم کښې یوسبب عدل دے اوبل وزن فعل دے ځکه اوزان دعدل شپږدی سماعی اوزان دفعل غیرداوزان دعدل نه دی قیاسی دا دواړه نه جمع کیږی. **اوزان د عدل.**

(۱) فُعَالِ ثُلاث. (۲) مفْعَل لکه مثلث. (۳) فُعَل لکه عمر .واخر

(٤) فَعْلِ لکه امس. (۵) فَعل لکه سحر (٦) فعال لکه قطام.

عدل اوعلمیت جمع کیږی لکه عمر اوزفرکښې یوعدل دے اوبل علمیت دے۔ عدل اووصف جمع کیږی لکه ثلاث ومثلث یوعدل دے اوبل وصف دے.

دریم مثال دعدل تحقیقی اُخَردے چه جمع ده اخری ده مونث دده اخردے آخرپه وزن دافعل اسم تفضیل دے.اواستعمال داسم تفضیل په دری طریقوسره کیږی:

(۱) په اضافت سره مثال زیدافضل القوم. (۲) په معرف باللام سره مثال زیدن الافضل.

(۳) په من حرف جرسره زیدافضل من عمردلته اخرپدے دری طریقوسره مستعمل نه وو نومعلومه شوه چه ددے دریوطریقونه په یوه طریقه به مستعمل وی اودهغے نه به معدول وی په اصل کښې اخریا اخر القوم وو۲ .یااخرمن وو.پدے دوه طریقومستعمل دے اوپه اضافت سره مستعمل نه ووځکه دهغے نه قرینه داله دلته نشته ځکه دلته مضاف الیه مذکورهم ندے اومحذوف هم ندے ځکه چه مضاف ذکروی اومضاف الیه محذوف وی نودهغے دری صورتونه دی په اخردمضاف کښې عوض دمضاف الیه نه تنوین راغلی وی مثال یومئذ حینئذ یامضاف مبنی برضمه وی مثال قبل وبعد۳ .داضافت تکراروی مثال تیم تیم عدی شواودلته داسے ندے نومعلومه شوه چه په اضافت سره دلته مستعمل ندے.لکن بعض وائی اخرپه اصل کښې الاخروو اوبعض وائی الاخرمن وو. اودعدل تحقیقی مثال دے ځکه چه په وجوداصل باندے دلیل شته چه استعمال داسم تفضیل دے په طرق ثلاثه سره.الخ.

څلورم مثال دعدل تحقیقی جُمَعَ دے داهم غیرمنصرف دے دوجه دسببین چه علمیت اووصف دے.اومثال دعدل تحقیقی دے ځکه دلیل په وجوداصل باندے بغیردمنع دصرف موجوددے هغه دلیل دادے چه جُمع جمع دجمعاء ده اوجمعاء وزن دفعلاء دے اوفعلاء په دوه قسمه دے۱ .فعلاء صفتی ۲ .فعلاء اسمی کله چه فعلاء صفتی وی نوجمع ددے راځی په وزن

دفُعُل باندے لکه دحمراء جمع حمر اوکله چه فعلاء اسمی وی نو جمع ددے راځی په وزن دفعَالی یافعلوات باندے.لکه دصحراء چه صحاری یاصحروات ده دلته دانه په وزن دفعُل دے اونه په وزن دفعالی دے یافعلوات دے نو معلومه شوه چه ددوی نه معدول دے.

**اما الوصف فلایجتمع مع العلمیة اصلاوشرطه ان یکون اصلافی اصل الوضع الخ.**

ترجمه: اوهرچه وصف دے نونه جمع کیږی دعلمیت سره همیشه اوشرط دده په سبب دمنع دصرف کښ چه وی به وضعی.

**حل ترکیب**: اماحرف تفصیل الوصف مبتداء متضمن معنی شرط فلایجتمع الخ خبراصلا بمعنی ابدامفعول فیه فعل شرط مبتداء ان مصدریه یکون فعل ناقص هواسم یکون وصفاموصوف فی اصل الوضع ظرف مستقرمتعلق په کائن پوری متعلق سره دمتعلق نه موصوف موصوف سره دصفت نه خبریکون یکون سره داسم اوخبرنه بتاویل المصدر خبر مبتداء،اسود وارقم مبتداء غیرمنصرف خبر داجمله اسمیه شوه واو زائده ان حرف شرط وصلیه صارفعل ناقص الف ضمیراسم صاراسمین موصوف للحیه ظرف مستقرمتعلق په کائنین پوری داصفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبرمبتداء لام جاره اصاله مضاف همامضاف الیه فاعل فی الوصفیه ظرف نومتعلق په اصاله پوری مصدرسره دمضاف الیه فاعل نه اومتعلق نه مجرورشودجارجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق صارفعل سره داسم اوخبرنه اومتعلق نه شرط جزاء محذوفه ده یافاسود وارقم غیرمنصرف دال برجزاء دی.

**تشریح**: دغیرمنصرف دنهه اسبابونه دویم سبب وصف دے.وصف په لغت کښ تعریف کولوته وائی اوپه اصطلاح کښ په دوه قسمه دے یعنی په دوه معنینوسره مستعمليږی.

وصف هغه تابع دے چه دلالت کوی په یوه معنی چه موجوده وی په متبوع کښ لکه جاء نی رجل عالم۲.وصف هغه اسم دے چه دلالت کوی په ذات مبهم باندے چه په هغه کښ دیو صفت لحاظ شوے وی مثال لکه احمرشو.

فرق دا دے اول قسم معرفه هم راځی مثال لکه زیدن العالم اونکره راځی مثال رجل عالم دویم قسم صرف نکره راځی دلته دویم قسم مراددے،

**سوال**: مصنف اووے فلایجتمع مع العلمیه ددے څه وجه ده؟ **جواب**: دوصف اوعلمیت

تـرمینـځـه تضاددے په معنی کښې وصف دلالت په ذات مبهم باندے کوی اوعلمیت دلالت په ذات معین باندے کوی اودابهام اوتعین په مینځ کښې منافات اوتضاددے.

**قوله وشرطه ان یکون وصفا** : ای شرطه فی سببیة منع الصرف لاشرط وجوده فی کلام العرب وصف چه سبب دغیرمنصرف گرځی دهغـے شرط دادے چه وصفیت اصلی وضعی به وی نـه عارضی. **جواب** : پـه اصـل کـښې وصف په دوه قسمه دے (۱)وصف عارضی(۲)وصف اصـلی وضـعی وصف عـارضی دیته وائی چه په استعمال سره پکښې دوصفیت معنی راغلے وی نه په وضع دواضع سره ددے مثال مصنف ذکرکوی لکه اربع شوپه ترکیب کښې لکه مررت بنسوة اربـع دلتـه.وصیت عارضی دے ځکه اصلا وضعااربع دمرتبه معینـے دپاره وضع دے چه هغـه ددریـهـنـه بـره مـرتبـے دپاره اودپینځونه لاندے لکن اوس چه صفت د نسوة واقع شوپه تـرکیـب نـودلالـت کـوی په معنی وصفی باندے اومنصرف دے. اووصف وضعی اصلی دیته وائی چه واضع وضع کړے وی دپاره دوصفیت دادومره قوی وی چه په علمیت سره چه دچادپاره اوگـرځـی نـوزائـله کیږی هم نه دهغـے مثال اسودارقم شودا قسم دوصف نه سبب دمنع دصرف گرځی ځکه مصنف وائی وشرطه ان یکون وصفافی اصل الوضع.

**اما التانیث بالتاء فشرطه ان یکون علما کطلحة و کذالك المعنوی**

تـرجـمـه : بـل سبب تـانیث چه حاصل بالتاء وی شرط دده په سببیت دمنع دصرف کښې چه علم به وی مثال لکه طلحه اوتانیث معنوی پشان دتانیث لفظی دے.

**حل ترکیب** : امـاحرف تفصیـل التانیث موصوف بالتاء جارمجرورظرف لغوه متعلق په ا لـکائن پوری صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مبتداء متضمن معنی شرط فاء جزائیه شرطیـه مبتداء ان یکون علمابتاویل المصدرخبرمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه کذالك خبرمقدم المعنوی مبتداء مؤخره.

**تشریح** : دریم سبب داسبابودمنع دصرف نه تانیث دے دتانیث څلوراقسام دی:

(۱) تانیث بالتاء چه دیته تانیث لفظی هم وائی لکه طلحه. (۲) تانیث معنوی. زینب.

(۳) تانیث بالف مقصوره مثل حبلیٰ. (۴) تانیث بالف ممدوده لکه حمراء.

پـدے څـلـوروافسـاموکښې اول بیان دتانیث لفظی دے داهم سبب دمنع دصرف واقع کیږی

چه علم اوگرځی لکه چه مصنف وائی وشرطه ان یکون علما.

**سوال** : ظلمة کښې تانیث لفظی شته اوغیر منصرف ندے. **جواب** : شرط دتانیث لفظی دپاره علم په سبب دمنع دصرف کښې دے نودپاره دوجوددتانیث اوداقاعده په باقی اسبابو کښې هم ملحوظه ده فلایردمایرد. سوال : علمیت دتانیث لفظی دپاره ولے شرط دے؟ **جواب** : ځکه علمیت دتانیث لفظی دپاره په سبب دمنع دصرف کښې شرط دے. تانیث عارضی دے اوعارضی شی په محل دزوال کښې وی نوضعیف وی نودعلمیت په وجه تانیث لازم شی دکلمے سره ځکه قانون دادے الاعلام لاتتغیر بقدر الامکان نوتانیث سبب اوګرځی دمنع دصرف مثلا طلحه شوغیرمنصرف دے یوسبب پکښې تانیث دے اوبل سبب پکښې علمیت دے.

دویم تانیث معنوی دے داقسامودتانیث نه.داچه سبب دمنع دصرف ګرځی نوشرطین به پکښې وی (۱) علمیت (۲) احد الامور الثلاثه : (۱)ثلاثی متحرك الاوسط مثل سقر.(۲) زائدعلی الثلاثه مثل زینب. (۳) عجمه. داتول مثالونه غیرمنصرف دی ځکه دواړه شرطونه پکښې موجوددی. **سوال** : دتانیث معنوی دپاره شرطین ولے مقررشو؟ **جواب** : دعلمیت وجه مخکښې ذکرکړے شوے ده اوهرچه امورثلاثه دی داځکه شرط دی کوم اسم چه مونث سماعی وی اوداشرط پکښې نه وی نوخفت پکښې حاصلیږی ځکه چه ساکن الاوسط په نسبت سره متحرك الاوسط ته خفیف دے اوثلاثی په نسبت د زائدعلی الثلاثی باندے خفیف دے اوعربی په نسبت سره عجمی باندے خفیف دے نوسبب دمنع دصرف نه واقع کیږی ځکه دمنع دصرف دپاره ثقل اوقوت پکاردے اوپدے امورثلاثه سره ثقل اوقوت حاصلیږی ددے وجینه شرطین دتانیث معنوی دپاره مقررشو.

دریم اوڅلورم قسم دتانیث داقسامونه تانیث په الف مقصوره اوتانیث په الف ممدوده دے ددوی دپاره په سبب دمنع دصرف کښې څه شرط نشته دے داهمیشه غیرمنصرف وی البته په دوی کښې یوسبب همیشه قائم مقام دسببینو وی الف مقصوره او الف ممدوده همیشه دکلمے سره یو ځائے وی برابره خبره ده که وقفی حالت وی اوکه غیروقفی حالت وی په خلاف دتاء التانیث چه په حالت دوقف کښې په هاء سره بدلیږی لکه ضاربة نه ضاربه جوړیږی مثال لکه حمراء اوحبلیٰ.

اما المعرفة فلایعتبر فی منع الصرف منها الا العلمیة و یجتمع مع غیر الوصف

**ترجمه** . بل سبب معرفه ده پس معتبر به منع دصرف کښې داقسامو دمعرفې نه علمیت دے دټولو اسبابو سره داجمع کیږی ماسوی دوصف نه

**حل ترکیب** : اما حرف تفصیل المعرفه مبتداء متضمن معنی الشرط فاء جزائیه لایعتبر فعل مجهول فی منع الصرف جار مجرور ظرف لغو متعلق فعل لایعتبر دے منها متعلق ثانی فعل الا حرف استثنی العلمیه مستثنی مفرغ نائب فاعل دده ضمیر هو فعل سره دفاعل او شره دمتعلقاتو نه خبر دمبتداء قائم مقام جزاء تجتمع فعل ماضی هی ضمیر فاعل مع غیر (الوصف) مفعول فیه. **تشریح** : خلورم سبب داسبابو دمنع دصرف نه معرفه ده.دلته مراد دمعرفې نه تعریف دے نه هغه معرفه چه مقابل دنکرے وی ځکه هغه دلالت کوی په ذات معین باندے او اسباب دمنع دصرف دقبیل داوصاف نه دی لهذا دمعرفې نه مراد تعریف دے چه معنی مصدری ده **سوال** : دمعرفې ډیر اقسام دی مصنف هغه پریخوده صرف علمیت ئے ترینه مختاره کړودا ولے . **جواب** : ددے دلیل دادے چه دمعرفې بعضی اقسام مبنی دی لکه مضمرات اشارات موصولات داده دغیر منصرف دپاره سبب نه ګرځی ځکه غیر منصرف معرب وی او مبنی ضد دمعرب دے شی دحیل ضد دپاره سبب نه ګرځی. او بعضی داقسامو دمعرفه نه غیر منصرف منع صرف یاپه حکم دمنصرف سره ګرځوی لکه معرفه په الف لام او معرفه بالاضافت لهذا هغه هم دمعرفه دپاره شرط نه ګرځی په سبب دمنع دصرف کښې.او هو چه معرفه بالنداده داپه حکم دمعرف باللام کښې داخله ده نو صرف یو قسم پاتے شو چه معرفه بالعلمیه ده.وقوله وتجتمع مع غیر الوصف دوصف سره معرفه نه جمع کیږی ځکه معرفه یعنی علم دلالت کوی په ذات معین باندے او وصف دلالت کوی په ذات مبهم باندے او ددواړو ترمینځه تضاد او منافات دے لهذا معرفه او وصف په یو قسم کښې نه جمع کیږی

والعجمة فشرطها ان تکون علما الخ.ونوح منصرف لسکون الاوسط.

**حل ترکیب** : اما حرف تفصیل العجمه مبتداء متضمن معنی شرط شرطها مبتدا ان مصدریه تکون فعل ناقص هی اسم علما موصوف فی العجمه ظرف مستقر متعلق

كائـناصفت موصوف موصوف باصفت معطوف عليه زائده على ثلاثه احرف معطوف عليه اوعاطفه ثلاثيامعطوف متحرك الاوسط صفت موصوف باصفت معطوف معطوف عليه سره دمعطوف نه معطوف شوعلمامعطوف عليه سره دمعطوف نه خبرتكون فلجام مبتدا منصرف خبرلعدم العلميه متعلق بمنصرف نوح مبتداء منصرف خبرلسكون الاوسط متعلق منصرف. **تشريح** : پينځم سبب داسبابو تسعودمنع دصرف نه عجمه ده. عجمه په لغت كښې ګوګناه كيدل اوپـه اصطلاح كښې هغه الفاظوته وائي چه وضع شوي وي دپاره دمعنى بغيردوضع دعربو نه.دعجمے دپاره په سبب دمنع دصرف كښې شرطين دي (۱)علميت(۲)احد الامرين ۱ – زائدعلى الثلاثه لكه ابراهيم ۲ .ثلاثي متحرك الاوسط لكه شَتَر. **سوال**: دعجمے دپاره علميت شرط ولے دے. **جواب** : دعربوداقانون دے چه په كوم لفظ باندے تلفظ كړي وي نوپه هغے كښې تغيرتصرفُ كوي لهذادعجمے نه كه يولفظ عربي ته نقل شي نوخفت به پكښې راشي نولهذاعلميت به ورسره شرط ولګوو چه ثقل ددى باقي پاتے شي نوددے وجے نه غيرمنصرف به اولوستے شي. **سوال** : قالون په رومي ژبه كښې هرعمده شي ته وائي لكن چه عربيْ ته نقل شي نونوم به شي ديوقوي قاري ځكه دده په قرأت كښې هم عمده والے وي نولغت عجمي كښې علم ندے پكارده چه منصرف وي حالانكه بيا هم غيرمنصرف دے.

جواب علميت عام دے حقيقتاوي اوكه حكماوي مثال دعلم حقيقي لكه ابراهيم شواومثال دعلم حكمي لكه قالون شوداځكه حكمي علم دے چه دعجمي نه عربيت ته نقل شو نو ځه تغير اوتصرف پكښې اونشواوعلم اوګرځيدو اوثقل دده باقي دے.په لغت كښې عجمي كښې چه علم وي ددے درے صورتونه دي : (۱)په عجمي كښې هم علم وي اوبعد الانتقال الى العربيت هم علم وي مثال ابراهيم (۲) په عجمي كښې علم نه وي لكن بعد الانتقال الى العربيت علم وي ځه تغير اوتصرف پكښې اونشي مثال قالون ددے دوه صورتونو حكم عدم انصراف دے. (۳)نه په عجمي كښې علم وي اونه بعد الانتقال الى العربيت علم وي بلكه سره دتغيراوتصرف نه بعدعلم اوګرځي ددے حكم دانصراف دے. **فائده**: دتمام ملائك نومونه منصرف دي بعض نحات فرق كوي دعربي اوعجمي نقشه كښې ددے تفصيل اودانبياء په اسماء كښې ۷ منصرف دي باقي غيرمنصرف دي دارنګه اسماء الشهور ځه منصرف اوځه غيرمنصرف دي اودارنګه اسماء الشياطين.

اسماء

اسماء الملائكة — اسماء انبياء — اسماء الشهور — اسم الشيطٰن

**اسماء الملائكة**

عربی — عجمی

عجمی: غیرمنصرف — جبرئیل، عزرائیل، میکائیل

عربی: رضوان. مالك، منکر، نکیر

رضوان: غیرمنصرف بوجه علم، والف ونون مزیدتان

مالك، منکر، نکیر: منصرف

**اسماء انبياء**

غیر منصرف — منصرف

غیر منصرف ← باقی

(۱) محمدؐ (۲) هودؑ (۳) شعیبؑ (٤) صالحؑ — عربی — منصرف

(۱) لوطؑ (۲) نوحؑ (۳) شیثؑ — عجمی — منصرف

(۳) عزیر — احتمالین

عجمی: غیرمنصرف

عربی: منصرف من التعزیر بمعنی التعظیم.

غیر منصرف

**اسماء الشهور**

غیرمنصرف — منصرف

(۱) شعبان (۲) رمضان — بوجه علم والف ونون

(۳) جمادی الاولی (٤) جمادی الاخر (۵) صفر — بوجه الف مقصوره

(٦) رجب — بوجه علم وعدل معدول از الصفر و الرجب.

منصرف: باقی ۱. ربیع الاول ۲. ربیع الثانی ۳. محرم ٤. شوال ذی القعد ذی الحجة

**اسم الشيطٰن**

۱ بلیس — عزازیل

عزازیل ← غیرمنصرف بوجه علم وعجمه

ابلیس — احتمالین

عجمی: غیرمنصرف بوجه علم وعجمه

عربی ← غیرمنصرف بوجه شبه العجمه، من الابلاس هو الابعاد:


کماقال الشاعر:

گرهمی خواهی که یابی نام هر پیغمبرے — تاگدام است نزدنحوی منصرف لامنصرف

صالح هود محمد باشعیب نوح و لوط — این همه دان منصرف دیگرهمه لامنصرف

اماعزیر فهوبروزن شعیب وشیث فهوبروزن نوحؑ. دامنصرف دی. (الماخوذمن شروح النحو)

**فائده : د مواضع اوقبيلونومونه اوددے تفصيل.**

كه په مواضعو اوقبيلو كښ دوه سببه داسبابو دمنع دصرف ماسوا دتانيث معنوى نه موجود وو نو غير منصرف به وى هميشه لكه تغلب وغيره. اوكه تانيث معنوى يكښ وواوسببين نه وو او مسموع من العرب يابه منصرف وى يابه غير منصرف وى كه غير منصرف وو نو هميشه به غير منصرف لوستے شى مثلا هود. محوس. دمشق اوكه منصرف من العرب مسموع وو نو منصرف به وى هميشه مثلا بنوثقيف حسنين بنوكلب ددے صورتلانه بوته علاوه منصرف اوغير منصرف دواړه لوستل جائز دى.

**اما الجمع فشرطه ان يكون على صيغة منتهى الجموع الخ :** بل داسبابو دمنع دصرف نه جمعيت دجمع دے شرط ددے په سببيت دمنع دصرف چه وى به صيغه دمنتهى الجموع. **حل تركيب :** اما حرف تفصيل الجمع مبتداء متضمن معنى شرط فاء جزائيه شرط مبتداء ان يكون على صيغه منتهى الجموع خبر مبتداء باخبر قائم مقام جزاء هو مبتداء ان مصدريه يكون فعل ناقص بعدالف الجع خبر مقدم حرفان معطوف عليه اوعاطفه حرف مشدد موصوف سره دصفت نه معطوف اوعاطفه ثلاثه احرف مضاف اليه مجموعه موصوف اوسطها مبتداء ساكن خبر مبتداء مبتداء سره دخبرنه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه معطوف دمعطوف عليه معطوف سره معطوف عليه نه اسم يكون خبر مؤخر غير قابل لهذا حل دے دضمير ديكون نه يكون سره داسم اوخبرنه په تاويل دمصدر سره خبر دمبتداء يافلت معطوف عليه فرازنه معطوف دامبتداء منصرف خبر بقولهما الهاء جار مجرور ظرف لغوه متعلق منصرف

**تشريح :** بل داسباب دمنع دصرف نه جمعيت دجمع دے. جمع په لغت كښ [illegible] او په اصطلاح كښ مادل على احاد مقصوده بالفاظ مفردة. **سوال :** دجمع معنى لغوى اخلے وكه معنى اصطلاحى كه معنى اصطلاحى اخلے نو انضمام صفت دمتكلم دے او متكلم ذات مع [illegible] دے او اسباب دمنع دصرف اعراض دى او كجرى معنى اصطلاحى اخلے [illegible] على [illegible] دے او اسباب دمنع دصرف الفاظ ندى بلكه اعراض دى. **جواب :** [illegible] اصطلاحى مرده [illegible]

[illegible] **سوال** [illegible] **جواب** [illegible]

دهاء سره په وخت دادائیگی دوقف کښې.

**وهو ایضاقائم مقام السببین الجمعیة ولزومهاتاء فکانه جمع مرتین.** اوداجمع قـ مقام دسببیـن نـه دے چـه جمعیت دے اوبل لزوم دجمعیت دے لکه دا چه دوه ځل جمع شوی وی.

**حل ترکیب** : هـو مبتـداء ایـضا مفعول مطلق فعل مقدرچه آض دے داجمله معترضه ده قائم مقام السببیـن خبر الـجـمـعیه خبرمبتداء محذوف چه احد هادے لزومها معطوف علیه امتـنـاع مـضاف ان مـصـدریـه یـجـمـع فعل مجهول هونائب فاعل مرة اخری موصوف صفت مـفـعـول فیه جمع التکسیرمفعول مطلق یجمع فعل سره دفاعل اوسره دمفعول فیه اومفعول مطلق نـه پـه تـاویـل دمـصـدرسره مضاف الیه دامتناع مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف دمـعـطـوف عـلـیـه مـعـطـوف سره دمعطوف علیه نه خبردمبتداء محذوفے چه ثانیهمدے کان حرف ازحروف مشبه بالفعل ه ضمیراسم دکان جمع مرتین خبرکاَنّ.

**تشریح** : جـمـع پشـان دتـانیـث دالف مـمـدوده ده اوالف مـقـصـوره قـائم مقام دسببین ده ۱.جمعیت۲.لزوم دجمعیت دے.

**: اما التر کیب فشر طه ان یکون علمابالاضافة ولااسناد کبعلبك الخ**

تـرجـمـه: بل سبب داسبابودمنع دصرف نه ترکیب دے شرط دده په سبب دمنع دصرف کښې چه علم به وی بغیرداضافت اواسنادنه لکه بعلبك.

**حل ترکیب** : اما حرف تفصیل الترکیب مبتداء متضمن معنی شرط فاء جزائیه شرطیه مبتـداء ان مـصـدریـه یـکـون فـعـل نـاقـص هـو ضـمـیـراسـم یـکـون علماموصـف باجارلا بمعنی غیـرمـضاف اضاف مـضـاف الیـه واوعاطفه لازائده اسنادعطف دے په اضاف باندے جارسره دمـجرورنه ظرف مستقرمتعلق په کائناپوری دامجموعه صفت شودعلماموصوف سره دصفت نـه خـبـردیـکـون یـکـون سـره داسم اوخبرنه په تاویل دمصدرسره خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جزاء عبدالله مبتداء منصرف خبرمعدیکرب مبتداء غیرمنصرف خبرشاب قرناهاجمله بتاویل هذاالترکیب مبتداء مبنی خبر.

**تشریح** : تـرکـیـب په لغت کښې ضم ته وائی اوپه اصطلاح کښې جعل الکلمتین اواکثر کلمة

واحـدۃ من غیرحرفیة جزء. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په النجم دامرکب دے اوعلمیت پـکښې هم شته اومصرف دے اوغیرمنصرف ندے. **جواب** :مونږه داقیدپکښں لګولے دے چه من غیرحرفیه جزء اوپدے کښں یوجزء حرف دے چه الف لام دے.

فشرطه ان یکون علما داشرط دپاره دلزوم دترکیب دے ددے کلمے سره څکه اعلام محفوظ ندی دتغیرنه بقدرالامکان داشرط شرط وجودی دے.اوشرط عدمی دوه دی اولنے عدمی شرط بلااضافه څکه اضافت منافی دے دمنع دصرف سره څکه دے غیرمنصرف لره منصرف کوی.

**سوال** : دا قید مصنف لره هم پکارووچه بلا وصف نوولے ترک کړو؟ **جواب** :. دا قیدئے ترک کړے دے دوجے داکتفاء نه په مرکب اضافی سره څکه دادواړه اقسام دمرکب تقیدی دی.اومرکب تقیدی هغه ته وائی چه جزء ثانی قیددپاره دجزء اول وی پس که ددے دواړوجزئینوپه مابین کښں نسبت داضافت وو نو مرکب اضافی به وی لکه غلام زیداوکه نسبت دصفت وونو مرکب توصیفی به وی.ولااسناد دادویم شرط عدمی دے څکه اعلام مشتمله په اسنادباندے دادقبیلے دمبنیاتونه دی اوانصراف اوعدم انصراف داداقسامودمعرب نه دی.

**سوال** : دمرکب صوتی اومرکب تعدادی قیدلګول هم پکاروو په شرط عدمی کښں څکه دوی هم دمبنیاتونه دی. **جواب** : مصنف اکتفاء کړے ده په مرکب اسنادی باندے اومرکب صوتی اوتعدادی ئے ذکرنکړل څکه دوی دمبنیاتونه دی.

پس زده کړه داخبره چه مرکب په شپږ قسمه دے:

(۱) مرکب توصیفی. (۲) مرکب اضافی. (۳) مرکب اسنادی.(۴) مرکب صوتی.
(۵) مرکب تعدادی. (٦) مرکب امتزاجی.

معتبرپه دوی کښں په منع صرف کښں مرکب امتزاجی دے اودانورندی هرچه مرکب اضافی دے هغه غیرمنصرف منصرف ګرځوی او هرچه مرکب توصیفی هغه داخل دے په اضافی کښں او هرچه مرکب اسنادی دے هغه دقبیلی دمبنیاتونه دے او هرچه مرکب تعدادی اومرکب صوتی دی هودوی داخل دی په مرکب اسنادی کښں.

مثال لکه بعلبك بعل نوم دبت اوبك صاحب دبت ویس دهغے نه علم اوګرځیدودپاره

دبلد مخصوص په شام کښې نو پدے کښې سببين دی.

(١)علميت .(٢) ترکيب.نو حکم پرے دغير منصرف جاری شو .ترکيب بعلبك په بحث دمرکباتو کښې راځی ان شاء الله.




نوټ:. مطلق ترکيب په لس قسمه دے ددے تفصيل به په باب مبنی کښې په فصل دمرکبات کښې راشی. هلته مراجعه اوکړئ.

**اماالالف و النون الزائدتان ان کانتافی اسم فشرطه ان يکون علما الخ.**

ترجمه: بل داسبابو دمنع دصرف نه الف نون مزيدتين دی کچرے دادواړه په اسم جامد کښې وی نو شرط داد ے چه علم به وی.

**حل ترکيب** : اما حرف تفصيل الالف و النون معطوف عليه ومعطوف موصوف الزائدتان صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مبتداء متضمن معنی شرط ان شرطيه کانتافی اسم جمله شرطيه فشرطه ان يکون علماجزاء شرط شرط سره دجزانه جمله شرطيه خبرقائم مقام جزاء فسعدان اسم نسب موصوف صفت مبتداء منصرف خبرلعدم العلميه ظرف لغومتعلق منصرف ان کانتافی صفه جمع شرطيه الخ جزاء ددے جملے شرطيه عطف دے په سابق جملے شرطيه باندے فندمان مبتداء منصرف خبرلوجودندمانه ظرف متعلق منصرف.

**تشريح** : سل داسباب دمنع دصرف الف اونون زائدتان دی چه زيات شوی وی په اخرداسم کښې ددوی

نتسه راعلے وی دالفس دنست سره په عدم قبول دتاء نانث کښ. **سوال** : اسباب دمنع دصرف ټول فروع دی الف اونون زائدتين د څه فرعه ده. **جواب** : په فرعيت ددے کښ اختلاف دے دوه مذهبه دی (۱) بعض وائی چه دافرعه دمزيدعليه ده (۲) اوبعض ددے مشابهت دالفس دتانيث سره راعلے دے په عدم قبول دتاء کښ نوشودوی مشبه اومشبه فرعه دمشبه به وی. **سوال** : اسباب دمنع دصرف اوصاف دی او الف اونون ذات دی نوشمارل ددوی داسبابو دمنع دصرف نه صحيح ندی. **جواب** : دادوجے دريادت اومشابهت نه شمارکړے شوی دی اودامعنی وصفی ده. **سوال** : مقابله داسم دصفت سره نه صحيح کېږی ځکه اسم مادل علی معنی ته وائی اوصفت هم مادل علی معنی ته وائی. **جواب** : داسم دوه معنی دی ۱. معنی عامه ۲- معنی خاصه معنی عامه چه مقابل دفعل اوحرف دے اومعنی خاصه چه مقابل دصفت دے نو چه کله اسم په مقابله دصفت کښ راشی نو معنی خاصه به ترے مرادوی. نودلته مراداسم نه اسم ذاتی غيرصفتی دی اودصفت نه مراداسم صفتی دے اسم په مقابله دځلورواشياوکښ راځی: (۱) مقابل فعل وحرف. (۲) مقابل لقب وکنيت. (۳) مقابل مهمل. (۴) مقابل صفت. **فشرطه ان يكون علما** دپاره دے چه الف او نون زائدتان لازم دکلمے سره اوګرځی الخ **سوال** : مخکښ الف اونون ذکردی دوه۲ اوفشرطه کښ ورته ضميرمفردراجع دے مطابقت نه راځی په مابين راجع اودمرجع کښ. **جواب ۱**: داضميرراجع دے اسم ته چه مشتمل دے په الف اونون باندے. **جواب ۲** - داضميرراجع دے سبب ته ځکه دادواړه يوسبب واقع کيږی. **سوال** : په كانتاكښ دے هم ضميرمفرد راجع شی په ځاے دكانتادے كان شی حاصل دسوال دادے چه بايدپه دواړه ځايونوکښ ضميرد تثنيه شی نوعبارت به دارنګه شی ان كانتافشرطهما الخ يابه په دواړه ځايونوکښ ضميرد مفردشی نوعبارت به دارنګه شی ان كان فی اسم فشرطه الخ. **جواب** : الف اونون مزيدتين لره اعتبارين دی (۱) اعتبار ذات (۲) اعتبارسبب نوپه اعتبارذات سره تثنيه دی اوپه اعتبار دصفت سره مفرددی نو مصنف داعتبارينو لحاظ ساتلے دے مثال لکه عمران دامثال دهغه اسم ذاتی دے چه الف اونون مزيدتين پکښ وی عمران ابدئ نه ونيلے شی بياعلم شودوالد دموسی اودوالد دحضرت مريم لکه په قرآن کريم کښ راغلی دی: **اذقالت امرأة عمران رب انی نذرت لك مافی بطنی محررا**.

---

(۱) ان كانتافی صفة فشرطه ان **لايكون مونثه** علی فعلانه كسكران

ترجمه : اوکچرے وو الف اونون مزیدتان په اسم صفتی کښې نوشرط ددوی به داوی چه مونث ددوی به په وزن دفعلانه نه راځی لکه سکران.

**تشریح** :کچرے الف اونون مزیدتین په اسم صفتی کښې راغلی وو نو شرط دمنع دصرف ورلره دادے چه مونث دده به په وزن دفعلانه نه وی. مراددفعلانه نه دادے چه مونث دده به قابل د تاء نه وی ځکه هرکله چه مشابهت ددوی راغے دالفینو دتانیث سره په عدم قبول دتاء کښې نو په مونث ددوی کښې به تاء دتانیث نه راځی. **سوال** : فعلانه به په فتحے فاسره وانی یه به ضمے دفاسره که په فتحے دفاسره وانی نو عریانادے غیرمنصرف شی ځکه مونث دده عریه دے په ضمه دفاسره نه په فتحے دفاسره اوکه په ضمه دفاسره وائی نوندمان دے غیرمنصرف شی ځکه مونث دده ندمانه دے په فتحه دفاسره نه په ضمے دفاسره. **جواب** : مراددفعلانه دادے چه په مونث کښې به تادتانیث نه وی برابره خبره ده که په فتحے دفاسره وی اوکه په ضمے دفاسره وی.

---

قوله فندمان منصرف لوجود ندمانة

**تشریح** : زده کړه داخبره چه دندمانه دوه معنے دی دمنادمت نه دے چه معنی ئے ندیم دہ اودے خاص دشراب ملګری اودوست ته وانی پدے معنی سره منصرف دے ځکه مونث دده په تاء سره راځی چه ندمانه دے.۲ – ندمان دندم نه دے په معنی دپخیمانئ سره اومونث دده په الف سره راځی چه ندمی دے نوپدے معنی سره غیرمنصرف دے اودے فرق ته شاعرهم اشاره کړے ده.شعر:

ندمان منصرف که بوداز منادمت تانیث او بتابودو معنیش ندیم
وراز ندم بود بالف دان مونثش قابل بہ انصراف شدن غیر مستقیم

---

**اماوزن الفعل فشرطه ان یختص بالفعل و لایوجدفی الاسم الامنقولاعن الفعل کشمر وضرب الخ** ترجمه: بل سبب داسبابودمنع دصرف نه وزن فعل دے شرط دده دادے چه دابه مختص وی په فعل پورے اواسم کښې به منقولاموجودوی دفعل نه.

**حل ترکیب** : اماحرف تفصیل وزن الفعل مبتدا متضمن معنی شرط شرطه ان یختص بالفعل خبرفانه مقام جزاء واوعاطفه لایوجدفعل مجهول هوضمیردرومستترراجع وزن الفعل ته نائب فاعل فی الاسم ظرف لغوه متعلق لایوجدالاحرف استثناء فی حال من احوال مستثنی منه محذوف

مـنـفـولاصبـغـه اسـم مفعول ضميردده نائب فاعل عن الفعل ظرف لغوه متعلق په اسم مفعول پوزی دامـجـمـوعـه مستثنی مفرغه دامجموعه حال شودهوضميرفاعل ته واوعاطفه ان لم يختص به شرط فـيـجـب ان يـكـون فـى اولـه احـدى حروف المضارعه جزاء لايدخله الهاء داعطف دے په يجب باندے فيعمل په تاويل دهذااللفظ سره مبتداء منصرف خبر لقبولها الهاء ظرف لغو متعلق منصرف.

**تشريح** :**سوال** : شـمـارل دوزن فـعـل داسبـابـودمـنـع دصـرف نـه صـحيح ندى ځكـه منصرف اوغيـر منـصرف داقساموددمعرب نه دى اومعرب قسم داسم دے نو څرنګه به وزن فعل موثرشى پـه اسم كښې. **جواب** : مـرادپـه وزن فـعـل سـره كـبدل داسم دى موزون په هغه وزن چه شميرلے كيـږى داوزانـودفعل نه **سوال** په وزن فـعـل كښـى اضافت لامى دے اوداندہ كوى اختصاص نـوبيـاروستـويـخـتـص ذكـركـول بـے فائدے دى؟ . **جواب** : دلتـه اضـافـت دوزن فـعـل تـه دپاره دمجردنسبت اوتعلق دے.

**سوال** : وزن فـعـل بـه پـه اسـم كـښې مـوجـودوانى اويابه نه وائى نودخواصودفعل نه څرنګه شـو؟ځـكـه خـاصـه وائـى مـايـوجـدفيـه ولايـوجـدفـى غـيـره اودلته خوپه غيركښې چه اسم دے موجودشواوكچرے موجودنه وائى نوشمارل داسبابودمنع دصرف نه صحيح ندى.

**جواب** : داوزن فـعـل به په اسم كښې موجودوى ابتداً يابه نقل شوے وى دفعليه نه اسميه ته سـوال بقم اوشلم دا اوزان دفعل دى اودابتداء نه په اسم كښې موجوددى اونقل شوى دفعل نه اسم تـه ندى. **جواب** : دلتـه مـراددااختـصـاص نـه اخـتـصـاص دے پـه وزن عربى په لغت عربى كښې اودااسـمـاء دلـغت عجمى دى مثال شمراوضرب چه علمين اوګرځى دچادپاره شمر نوم دے داس دحجاج بن يوسف دغه شان ضرب علم اوګرځى .داقسم اول دوزن فعل شو.

اودويـم قسم دوزن فعل **وان لـم يـختـص فـيـجـب ان يـكـون فى اوله احدى حروف المضارعة الخ** اوكـچـرى اختـصـاص دده دوزن فـعـل سـره نه ووراغلـے نوبيالازم ده چه وى دى په اول دمايكون عـلـى وزن الـفـعـل كـښې زيـادت ديـو حرف وى دحروف مضارعت نه اوتابه نه قبلوى ليكن دتانه تـعبيـرپـه هـاسـره شـوے دے ځـكه داتائـے تانيث مدوره په حالت دوقف كښې ګرځى په هاء سره ځـكه تاء متحركه دخواصوداسم نه ده اودا چه پكښې راشى نودافوى كوى جهت دمشابهت داسـم اوضـعـف كوى جهت دمشابهت دفعل اونقصان رسوى سبب دوزن فعل ته.

**سوال** : سنف فقد : مسفوحہ سوه به ربع باندے حه : عمه سی سو غیر منصرف دے او . نکبں راځی حه اربعة دے. **جواب** : مراد رمورہ دنانه باء قیاسی دہ اودانا غیرقیاسی دہ.

**سوال** : اسوده غیر منصرف دے دوجه دسببین نه ۱ .وزن فعل ۲ .وصفیت اوتاقبلوی. **جواب** : تاء اصلی خموبره مرادده اوداتاء عارضی ده اسود دجهت دوصفیت به اصلی نه غیرمنصرف دے وبه وصفیت اصلی کښ پدے باندے تاء نښتہ ځکه موښ دده سود بزخی بغیر تنوین.

**فائده**: بعضی اوزان مشترک دی بین الفعل والاسم :

(۱) ماضی ثلاثی مجردواحدمذکرغائب.مثال فعلً:دده په وزن اسم دے سحرٌ وحجرٌ.

(۲) مضارع ثلاثی مجردواحدمذکرغائب.مثال .بربدُ:اسم هم دے اومضارع هم ده.

(۳) دباب افعال په وزن اسم مثال اکرم فعل احمد اسم.(۴) درباعی مجردماضی په وزن داسم مثال دحرج فعل جعفراسم. **واعلم ان کل ماشرط فیه العلمیة الخ** : پوهه شه هرهغه اسم چه علمیت پکښ شرط شوے دے. **تشریح** : هرکله چه مصنف فارغ شودبیان داسبابودمنع صرف نه نوشروع ئے اوکړه پدے خبره باندے چه غیرمنصرف به څنګه منصرف کیږی نودارنګه ئے اووئیل واعلم الخ.**قاعده** هغه اسم یاهغه غیرمنصرف چه هغے کښ علمیت شرط وی دتاثیردسبب اخردپاره لکه تانیث وغیره یاپکښ علمیت حمع شوے وی دبل سبب سره لکه عدل اووزن فعل.سو چه کله علمیت دهغه زائل شی په وخت دتنکیرکښ نودامنصرف کیږی او تنکیرداعلاموبه خلورطریقوسره راځی.(۱)ذکردعلم اوشی مرادنرینه صرف مسمی وی.یامرادترینه جماعه وی لکه جاء نی زیدوزیدآخرکښ الکه لفظ دفلان حه دجماعت به هرفرد دده اطلاق کیږی.

(۲) ذکردعلم اوشی اومرادترینه وصف مشهوردعلم وی لکه لکل فرعون موسی دلته ذکردفرعون اوموسی دے چه اعلام دی لکن مرادترینه هغه اوصاف مشهوره ددوی دی حه فرعون په صفت دابطال دحق مشهوروو اوموسی به صفت داحقاق دحق مشهوروو نو مطلب ددے داشو چه لکل مبطل محق. (۳) چه دعلم تثنیه یاجمعه راشی لکه جاء نی زیدان جاءنی زیدون. (۴) چه په معرفه الف لام داخل شی الزیدُ.

کما مالاینصرف اذااضیف اودخله الّلام ...د حلة الکسر ...ت ب حدکم

ب لاحمد : هرهغه اسم چه غیرمنصرف وی کله حه مضاف شی یاداخل شی په ده ...

نو راخي نه پرے كسره لكه مررت باحدكم الخ

**حل تركيب** : كل متصف سره موصوله لا ينصرف فعل د فعل د اسمه د موصوف ...
د صفه سره شته ... مسند ... مسند اليه شرطيه ينصرف فعل فاعل مفعول ... مسند
د جمله ... د جمله الكسر د جر ... شرط سره د جز ته جمله شرطيه خبر د مبتدا، مبتدا سره د دے
جمله اسميه خبريه. **تشريح** : دا دويمه وجه ذكركوى چه غير منصرف به منصرف گرزى نه
اضافت سره او په دخول د الف لام تعريفي سره. **سوال** : قاعده دے منقوضه شوه په غلام
لاحمد باندے يا غمان لاحمد داخو اوس هم غير منصرف دے سره ددينه چه لام پرے داخل دے
**جواب** : مراد په لام سره لام تعريفي دے نه لام جاره او په لام لاحمد كښې لام جاره دے. **سوال** :
قاعده دے منقوضه شوه په غلام لاحمد باندے دلته احمد مضاف اليه دے او مكسور نه دے.
**جواب** : مراد په اضافت سره اضافت دغير منصرف دے غير ته نه اضافت دغير ده ته.
**سوال** : قاعده دے منقوضه شوه په مررت بالحبلى باندے او په مررت بحبلكم باندے.دلته
كسره نده راغلے په غير منصرف كښې. **جواب** : كسره عامه ده برابره خبره ده چه لفظاوى كه
تقديرا وى دلته كسره تقديرا ده اوس پيدے كښې اختلاف دے چه داغير منصرف پس
دراتلو دكسرے نه منصرف دے او كنه غير منصرف دے بيا هم نو پدے كښې
**درى مذاهب دى**:(١) بعضى نحات وائى چه منصرف به وى برابره خبره ده چه سببين باقى
وى پس ددخول دلام او اضافت نه او كه نه وى.كه سببين نه وى باقى نو ظاهره ده او كه باقى وى
نو نو لام او اضافت دخو اصو معظمه او مكبرد داسم نه دى نو قوى كيږى پدے سره جهت
داسميت او ضعيف كيږى مشابهت دفعل سره.(٢) مذهب دادے چه غير منصرف به وى
مطلقا كه سببين باقى وى نو ظاهره ده او كه نه وى باقى نو زوال عارضى لره اعتبار نشته.
(٣) دريم مذهب دادے چه په وخت دبقاء دسببينو كښې غير منصرف دے او په وخت دعدم بقاء
كښې منصرف دے. **سوال** : هر كله چه غير منصرف شو نو څرنگه چه تنوين پرے نه راځى
نو كسره دے پرے هم رانشى. **جواب** : ممتنع په غير منصرف باندے تنوين اصالةً دے او كسره
په په تبعه دتنوين ممتنعه ده پس هر كله چهْ ضعيف شو مشابهت دده دفعل سره به سبب
ددخول دلام او اضافت سره نو اثرئے او كړو په سقوط دتنوين كښې چه متبوع دے نه په تابع كښې

چه كسره ده.

**بعضي قواعد** فائده: اسم په اعتبار دانصراف اوعدم انصراف سره په دوه قسمه دے.
١-منصرف ٢-غير منصرف. **فائده: عدل په دوه قسمه دے** ١. عدل تحقيقي ٢. عدل تقديري.

**قاعده (١)** د تانيث معنوي څلورم حرف قائم مقام دتاء تانيث گرځي اودا په حکم دنسبت لفظي مثال لکه زينب عقرب کله چه علم اوگرځي.

**قاعده(٢)** که تانيث معنوي ثلاثي ساكن الاوسط غير عجمه وه نو انصراف اوعدم انصراف دواړه جائز دي مثال هند.

**قاعده(٣)** دصيغي دمنتهى الجموع دپاره دوه وزنه دي ١. الف جمع نه روستو دوه حرف وي مشدد لکه دوَاب يا مخفف لکه مساجد. ٢. الف جمع نه حرفونه داسے وي چه اول حرف مكسور دويم ساكن اودريم تابع عامل مثال مصابيح غرابيب كماقال الله تعالى وغرابيب سود.

**قاعده(٤)** لفظ حضاجر په وزن دمساجد دے اواطلاق دده په جمع اومفرد دواړو کيږي نکه په اصل کښې جمع دحضجر ده لهذا غير منصرف دے.

**قاعده(٥)** جمع مذكر ومونث سالم کښې اگرچه تنوين غائبٌ لكن عند الاكثر منصرف دے لكه عرفات فاذاافضتم من عرفات(الايه)

**قاعده(٦)** كچرے څه الفاظ ياأوزان دغير منصرف دالفاظو اواوزانو سره متفق شونو دے لره څه اعتبار نشته دے منصرف به مثلااسحاق اسماء انبياء امثله اوزان: جالوت. طالوت. قارون غير منصرف دي ددے هم وزن جاموس. طاووس. راقود منصرف دي.

**قاعده (٧)** دكوم اسم په اخركښې چه الف مقصوره وونو دضرورت شعري دوجه نه منصرف نه گرځي لکه حبلى. **قاعده(٨)**: منصرف په دوه قسمه دے ١. حقيقي ٢. جعلي. منصرف حقيقي كمامر. اودمنصرف جعلي پينځه اسباب دي: (١) ضرورت شعري. (٢) تناسب سره الكلمتين. (٣) تنكير بعد العلميه لكل فرعون موسى. (٤) په دخول دالف سره وانتم عاكفون في المساجد. (٥) دغير منصرف په اضافت سره ان الصفاو المروه من شعائرالله(الايه)

نقشه وخلاصه د ماسبق:

اسباب دمنع صرف نه ۹ دی کماذکره ابن ابی سعید الانباری (شعر)

موانع الصرف تسع کلما اجتمعت ثنتان منها فما للصرف تصویب

عدل ووصف وتانیث ومعرفة وعجمة ثم جمع ثم ترکیب

و النون زائدة من قبلها الف ووزن الفعل وهذا القول تقریب.

(۱)عدل . (۲)وصف . (۳)تانیث. (۴)معرفه. (۵)عجمه.

(٦)جمع . (۷)ترکیب. (۸) وزن فعل.(۹) الف نون مزیدتین.




امثله:اُخر، جُمع ، ثُلاث. معدول: زفر، مضرهبل، زحل، قزح.

معدول عنه: زافر،ماضر،هابل،زاحل، قازح.

## اوزان عدل

اوزان عدل رابتمامے توشش شمیر مَفعل فُعل مثالهما مَثلث عُمر

فعل است همچون امس فُعال است چون ثُلاث دیگرفَعَال دان چون قطام فَعلُ سَحَرُ.




## علامات التانیث

[۱] الف مقصوره :لیلیٰ.حبلیٰ. [۲] الف ممدوده حمراء.

[۳]تاء لفظیه:مسلمة. [٤]تاء مقدره:ارض.

## تمرين لشرط العلمية مع سبب اخر

اباعطشان — اللّهم بارك في علم تلامذتي

اهل البيت ادرى بمافيه — جاء ت زينب الى المدرسة

هل اتاك حديث الجنود فرعون وثمود — سافرت الى حمص

زنت عدنان في المدرسة

دعاء:

اللهم اغفرلي ولجميع المؤمنين والمؤمنات و المسلمين و المسلمات

وبارك اللهم في عمري وولدي وعافنامن الامراض والاسقام. آمين يارب العلمين

## تمرين لبحث غيرمنصرف

فَحَيُّوْاباحْسَنٍ مِنْهَا — فانْكِحُوْاماطاب لكُمْ منَ النِّساء مثْنى وثلاث ورُبع

إِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِىْ بِبَكَة — فضل عائشة على النساء( الحديث)

انما المسيح عيسى بن مريم — يحشر الناس يوم القيامةعلى ارض بيضاء

فرعون وثمود — شهررمضان الذى انزل فيه القران

واذكرفي الكتاب ادريس — انا ارسلنانوحاالى قومه

من كان عدوالجبرئيل — من منع مساجدالله

قال اني عبدالله،ونبئهم عن ضيف ابراهيم — فبشرناه باسحاق نبيامن الصالحين.

اعدذكرنعمان لناان ذكره — هو المسك ماكررته يتضوع.

صبت على مصائب لوانها — صبت على الايام صرن لياليا

سلام على خير الانام وسيد — حبيب اله العلمين محمد

بشيرنذيرهاشمي مكرم — عطوف رؤف من يسمى باحمد

تمت بحث غيرمنصرف بعون الملك الوهاب اللهم وفقالماتحب وترضى

## المقصدالاول فی المرفوعات

**الاسماء المرفوعات ثمانیة اقسام** : مقصوداول په بیان دمرفوعاتو کښې دے.

**حل ترکیب** : المقصدالاول مبتداء فی المرفوعات ظرف مستقرمتعلق کائن خبردمبتد.
الاسماء المرفوعات صفت موصوف مبتداء ثمانیه اقسام مضاف الیه خبردمبت.
الفاعل ومفعول مالم یسم فاعله الخ بدل دے دثمانیه اقسام نه یاخبردمبتداء محذوفے دے چه
احدهادے وثانیهادے وثالثهادے یامفعول به داعنی مقدره ده.

**تشریح** : هرکله چه مصنف فارغ شودمقدمے نه نوشروع ئے اوکړه په بیان مدقاصدوکښې
نووے وئیل دارنګه المقصدالاول الخ.

مقصد: مصدرمیمی دے یاصیغه دظرف ده په معنی داسم مفعول چه مقصوددے.

**سوال** : مرفوعات ئے ولے مقدم کړوپه منصوباتواومجروراتوباندے؟ **جواب** : مرفوعات
عمده دی ځکه په کلام کښې اکثرمسندالیه واقع کیږی اومسندالیه عمده وی اومنصوبات
اومجرورات فضله دی عمده مقدم وی په فضله باندے. **سوال** : مرفوعات جمع دمرفوع نه
اومرفوع مذکردے اودمذکرجمع سالمه په واونون سره راځی نودلته مرفوعون پکاروو نه
مرفوعات په الف اوتاء سره. **جواب** : مرفوع اسم مذکرلایعقل دے اوقانون قاعده داده چه
صفت دمذکرلایعقل جمع کیږی په الف اوتاء سره مثلا یوم مذکرغیرعاقل دے ددے صفت
دے خالی نوداخالی جمع کیږی په خالیات سره نوئیلے کیږی الایام الخالیات دارنګه
الکوکب مذکرغیرعاقل دے دده صفت طالع دے جمع شوید ے په طالعات سره نوئیلے
کیږی الکواکب الطالعات.نودغه شان اسم مذکرغیرعاقل دے دده صفت چه مرفوع دے جمع
شوے دے په مرفوعات سره. **سوال** : المرفوعات مجرور دفی دے اوفی ظرفیه دے مدخول
خپل دماقبل کرځوی اوهغه به ورلره مظروف وی لکه زیدفی الداراودلته مرفوع دے ظرف
المقصدالاول نه صحیح کیږی اوظرف یازمان وی یامکان وی ځکه ظرف مرفوعات نه ظرف
زمان دے اونه ظرف مکان دے. **جواب** : داظرف اعتباری دے اوپه ظرف اعتباری کښې دالازمه
نده چه مدخول دفی دے ظرف زمان وی اویاظرف مکان وی لکه زیدفی العلم زیدفی

لشجاعه زیدفی ا لنعمه زیدمظروف فی ظرفیه العلم ظرف اعتباری یاحکمی الخ.

اسمـاء مرفوعات اته ۸ دی وجه دحصرپه اتوکښ داده چه عامل داسم مرفوع به خالی نه وی یابه لفظی وی یابه معنوی وی که معنوی وونوبیابه خالی نه وی یابه معمول مسند الیه وی یابه مسـندوی کـه مسـنـد الیـه وونـو مبتـداء اوکـه مسندبه وونوبیابه خالی نه وی یابه رافع وی اسم ظاهرلره یابه نه وی که وی نوقسم ثانی دمبتداء اوکه نه وی نو خبردمبتداء اوکه لفظی وونوبیابه خالی نه وی یابه فعل اوشبه فعل وی اویابه حرف وی که فعل اوشبه فعل وونوبیابه خالی نه وی یابـه قـائـم وی په اسم پوری یابه واقع وی په اسم باندے که اول وونوفاعل اوکه ثانی وونومفعول مـالـم یسـم فـاعـلـه اوکـه حـرف وونومعمول به خالی نه وی یابه مسنداليه وی یابه مسندوی که مسنداليه وی بیابه خالی نه وی یابه په کلام موجب کښ وی اویابه په کلام غیرموجب کښ وی که په کلام موجب کښ وونواسم دافعال ناقصه وونه سوادلیس نه اوکه په کلام غیرموجب کښ وونـواسـم دلیس اودماولا مشبهتـین بلیس اوکچرته مسندومعمول نوبیابه خالی نه وی یابه په کـلام مـوجـب کـښ وی اویـابـه پـه کـلام غیـرمـوجـب کـښ وی کـه پـه کلام موجب کـښ وونوخبردحروف مشبه بالفعل اوکه په غیرموجب کښ وی نوخبردلالنفی الجنس شوپس داتول اته اقسام شو.نقشه




(نوټ) افعال ناقصه ئے په حروفو کښې شمارکړل په اعتباردمعنی سره افعال ناقصه حروف دی اوپه اعتبارلفظ سره افعال دی دلته لحاظ دمعنی شوے دے.

**فصل الفاعل کل اسم قبله فعل اوصفة اسنداليه علی معنی الخ.**

ترجمه : فاعل هرهغه اسم دے چه مخکښې ترینه فعل اوشبه فعل وی اواسنادورته شوے وی الخ.دصفت نه مراد اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه اسم تفضيل اسم مصدردی دصفت نه مراد اسم فاعل ،اسم مفعول،اوصفت مشبه،اسم تفضيل اواسم مصدردی.

**حل ترکیب** : الفاعل مبتداء کل مضاف اسم موصوف قبله مضاف اليه مفعول

فیه دمتعلق چه ثبت دے فعل معطوف علیه اوصفت معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه موصوف اسندفعل مجهول ونائب فاعله ضمیراسنداليه ظرف لغوه متعلق اسندعلی جارمعنی مضاف ان حرف از حروف مشبه بالفعل ه اسم انّ قام به معطوف علیه لاعاطفه وقع علیه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه خبرداںٔ دامجموعه بتاویل المفردمضاف الیه دمعنی مضاف مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق اسندفعل سره دفاعل اوسره دمتعلقین نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه فاعل ثبت فعل سره دفاعل اومفعول فیه نه داصفت شودموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف الیه دکل مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتداء چه الفاعل دے.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنفؒ دبیان داجمال نه شروع ئے اوکړه په تفصیل دمرفوعاتو باندے . **سوال** : فاعل ولے مقدم کړوپه باقی مرفوعات باندے. **جواب** : دجمهورپه مذهب باندے اصل په مرفوعاتوکښې فاعل دے ددے وجے نه فاعل مخکښې شوپه باقی مرفوعاتو باندے. ... پس زده کړه داخبره چه اصل په مرفوعاتوکښې فاعل دے اوکه مبتداء پدے کښې دوه مذهبین دی: ۱ .جمهورنحات۲-بعض نحات . محققین **جمهورنحات** وائی چه اصل په مرفوعاتوکښې فاعل هٔ دے په ادله اربعوسره ،(۱) دلیل داجزء واقع کیږی دجملے فعلیه اوجمله فعلیه اصل ده په نسبت سره نوروجملوته ځکه دادغرض دمتکلم سره په اخبارا واستخبارکښې موافق ده پس جزدجملے فعلیه اصل شوه اوجزاء داصل اصل وی. **۲-دلیل** : فاعل حاصل دعامل لفظی دے اوعامل دمبتداء معنوی دے اوعامل لفظی اقوی دے دعامل معنوی نه پس معمول دده هم اصل شو. **۳-دلیل** فاعل عام دے په مرکب اوناقص دواړوکښې راځی په خلاف دمبتداء په مرکب تام کښې راځی اوپه ناقص کښې نه راځی. ۴- عامل دفاعل محسوس دئے اوعامل دمبتداء غیرمحسوس دے اومحسوس اولی اواقوی وی دغیر محسوس نه.

(۲)- **محققین نحات** وائی چه مبتداء اصل ده په مرفوعاتوکښې په دلیلین سره (۱) دلیل مبتداء باقی اوقائمه ده په ماهو الاصل باندے چه هغه تقدیم دے ځکه چه اصل په محکوم علیه کښې تقدیم دے په خلاف دفاعل نه چه هغه مؤخردے.

**۲-دلیل** مبتداء محکوم علیه ده په حکم عامه سره ځکه داده جامد اومشتقی دواړونه

محکوم علیه واقع کیږی په خلاف دفاعل نه چه هغه صرف دمشتقی نه واقع کیږی.
جمهورنحات محققینوته جواب ورکوی چه فاعل هم باقی په ما هو الاصل دے ځکه چه اصل په فاعل کښې تاخیر دے دفعل نه لکه صاحب کافیه وائی والاصل فی الفاعل ان یلی الفعل ، تاخیردفاعل له وجے دعارض نه راغلے دے و العوارض لاتعتبر. اوددویم دلیل نه جواب داد ے چه فاعل هم محکوم علیه دے په حکم عامه سره پشان دمبتداء .لکه فاعل دافعال مدح اوذم جامددی بیاترے هم فاعل واقع کیږی. پس مذهب دجمهورونحاتو مثبت دخپلے مدعی اوګرځیدواوپه مذهب دمحققینوسره صرف اولویت دتقدیم دمبتداء معلومیږی. **سوال** : په تعریف دفاعل کښې فعل داخل شو چه ذکر دے پدے ترکیب کښې اعجبنی ان ضربت زیدادلته ان ضربت فاعل داعجبنی دپاره سره ددے نه چه فعل دے نه اسم. **جواب** : فاعل به اسم وی اواسم عام دے صریحی وی اوکه تاویلی وی دلته تاویلی دے ځکه ان ضربت په تاویل دمصدرفاعل دے تقدیردعبارت داسے اعجبنی ضربك زیدا. **سوال** : په تعریف دفاعل کښې معطوف داخل شو چه جاء زیدوعمردلته عمرو فاعل دے اومعطوف دے. **جواب** : مرادپه اسنادسره اسنادبالاصاله دے اودلته په عمروکښې اسنادبالتبع دے. **سوال** : اسنادمطلق ذکردے په تعریف کښې اوتا مقیده کړوبالاصاله سره داخو مجازتامختارکړواوارتکاب دمجازپه تعریفاتوکښې ممنوع دے.

**جواب** : ارتکاب دمجازپه تعریفاتوکښې هله ناجائزدے چه قرینه داله نه وی په مجازباندے اودلته قرینه داله شته دے چه روستوذکردتوابع راغلے دے. **سوال** : راوړل دلفظ اوپه تعریف کښې صحیح ندی ځکه اوراځی دتشکیك دپاره اوتعریف راځی دایضاح دپاره اودامنافی دے دتشکیك سره. **جواب** : دلته اودپاره دتنویع اوتقسیم دے.

:قوله نحوقام زیدٌ ضارب ابوه عمرٌوماضرب زیدعمراً :اولنے مثال دهغه دے چه نسبت دفعل راغلے وی فاعل ته دویم مثال دهغه دے چه نسبت دصفت شوے وی فاعل ته دادواړه مثالونه په طریقه دایجاب دی اودریم مثال په طریقه دسلب دے.

**سوال** : مثال مطابق ندے دممثل سره ځکه فاعل مفردوی اومثالونوکښې جمع ذکرده.
**جواب** : دلته تقدیردعبارت دے چه نحوزیدفی قام زیدٌ الخ.

**فوائدقيود** : په تعريف دفاعل كښ ذكرداسم په منزله دجنس دے قبله فعل اوصفت په منزله دفصل اول دے پدے سره خارج شو هغه اسم چه مخكښ ترينه فعل اوصفت نه وى لكه زيداخوك دلته زيدمبتداء ده اخوك خبردے مسند اليه دافصل ثانى دے پدے قيدسره توابع خارج شوځكه مسند اليه بالاصاله دلته مراددے اوتوابع بالتبع وى لكه ضرب زيدزيدٌعلى معنى انه قام به لاوقع عليه فصل ثالث دے پدے سره مفعول مالم يسم فاعله خارج شودتعريف دفاعل نه

**فائده** اسم په درى قسمه دے۱ .اسم حقيقى۲ .اسم حكمى۳ .اسم تاويلى .اسم حقيقى لس ۱۰دى : (۱)اسم جامد.(۲)اسم مصدر.(۳)اسم فاعل.(۴)اسم مفعول (۵)صفت مشبه (٦)اسم تفضيل.(۷)اسم اله.(۸)اسم ظرف.(۹)اسم مبالغه.(۱۰)اسم منسوب.

**اسم حكمى** ديته وائى چه په فعل باندے دحروف مصدريه نه يوداخل وى اودغه جملے ته اسم تاويلى وائى حروف مصدريه:(۱)ما.(۲)ان.(۳)انّ. (۴)كى.(۵)لو (٦) همزه تسويه مثال ان تصوموا خيرلكم ودوالوتد هنوافيد هنونْ . واعلم ان اللهَ على كل شىء قدير.

**اسم تاويلى** هغه فعل اوحرف ته وائى چه مراددهغے نه لفظ وى اومعنى نه وى په هغے كښ بتاويل هذا اللفظ اوبتاويل هذا التركيب تاويل كيدے شى.مثال ضرب فعل من حرف زيدقائم جمله.اومثال كښ فعل مبتداء واقع ده اودويم مثال كښ حرف اودريم مثال كښ جمله مبتداء واقع دى اومبتداء خو هميشه اسم وى.

**قاعده** : دفاعل په تعريف كښ دا قيد چه انه قام به ددے مطلب دادے چه دافعل به په صيغے معلومے سره وى يادديے په حكم كښ به وى۱ .قال الله تعالى ۲ .ولولادفع الله الناس بعضهم ببعض **قاعده** كله چه دمصدراضافت فاعل ته اوشى نوفاعل به په لفظ كښ مجروروى مثال ضرب زيدعمرا پدے مثال كښ زيدمضاف اليه دے اوفاعلً دے.

**قاعده** : دويم صورت دجردفاعل چه كله پرے من زائده داخل شى مثال ماجاء نامن بشيرولانذير. **قاعده** : دريم صورت دجردفاعل چه كله پرے باء داخل شى مثال كفى بالله شهيدا

**قاعده** : څلورم صورت دجردفاعل چه كله پرے لام داخل شى مثال هيهات هيهات

لماتوعدون. **قاعده**: په کوم فاعل چه من زائده یاباء زائده داخل شی نودهغه په تابع کښې دوه وجه جائزدی د اعراب۱- رفع۲.جر مثال هل من خالق غیرالله دلته لفظامجروراومعنی مرفوع لوستل جائزدی. **قاعده**:کله چه دفاعل مجرورتابع معرفه وی نودغه تابع به صرف مرفوع لوستلے شی ماجاء نی من عبدٍ ولازیدٌ .

**قاعده**:کله چه دشرط نه وروستواسم واقع شی نودغه اسم دفعل مقدردپاره فاعل وی مثال اذا الشمس کورت ای اذاکورت الشمس.

**قاعده** کله چه داسم موصول نه وروستو ظرف واقع شی نودغه به ظرف مستقردفعل مقدروی اوفاعل به وی ضمیرمستتردفعل مثال الذی فی السماء اله ای هو الذی ثبت فی السماء اله. **قاعده** دنداء اوندبه په وخت کښې فعل اوفاعل دواړه حذف وی مثال یاالله ای ادعوالله وازیداه.

**قاعده**(۱) فاعل اسم ظاهرراځی مثال جاء نی زیدجاء ربك جاء الحق قال الله.

(۲) ضمیرمتصل راځی مثال انعمت علیهم امنت بالله قاموا الی الصلات

(۳) اسم تاویلی راځی مثال اولم یکفهم انا انزلناالیك الکتاب.

**قاعده**: په افعال کښې دماضی اومضارع ددولسوصیغوفاعل متعین دے اوهغه به ضمیر متصل وی اوددووصیغوواحدمذکرغائب اوواحدمونث غائب فاعل ضمیرمستتراواسم ظاهردواړه راځی مثلا صیغے دماضی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| (۱) | ضربا | الف | ضمیرفاعل دے | زیدضرب فاعل فعل ضمیرمستترای هو |
| (۲) | ضربوا | واو | // | هند ضربت // // // // ای هی |
| (۳) | ضربتا | الف | // | ضرب زیدفاعل اسم ظاهرچه زیددے. |
| (۴) | ضربن | نون | // | ضربت هندفاعل اسم ظاهرچه هنددے. |
| (۵) | ضربتَ | تَ | // | |
| (٦) | ضربتما | تما | // | |
| (۷) | ضربتم | تم | // | |
| (۸) | ضربتِ | تِ | // | **نوټ** |
| (۹) | ضربتن | تن | // | پدغه طریقه مشق دمضارع دصیغو هم شاګردانوته |
| (۱۰) | ضربتُ | تُ | // | پکاردے. بارك الله فی علمکم. |
| (۱۱) | ضربنا | نا | // | |

**قاعده** فاعل به همیشه اسم وی۱ . حقیقی۲ .تاویلی۳ .حکمی.
**قاعده** دافـعـال تـعـجـب پـه دویـمـه صیـغـه بـانـدے بـاحـرف جرداخلیږی لازماو التفصل فی المطولات.

**و کل فعل لابدله من فاعل مرفوع مظهر کذهب زیدٌ الخ**

دهرفاعل دپاره فعل ضروری وی یابه مرفوع مظهریه وی لکه ذهب زیدشو.

**حل ترکیب** :کـل مـضـاف فـعـل مـضـاف الیـه دامبـتـداء شوه لالنفی الجنس بداسم لاله جارمـجـرورمـتـعلق بدٌ من جارفاعل موصوف مرفوع صفت اول مظهرمعطوف علیه اوعاطفه مـضـمـرمـوصـوف بـارزمـعـطـوف عـلـیـه اوعـاطـفـه مستترمعطوف علیه معطوف علیه سره دمـوصـوف نـه صـفـت ثـانی فاعل موصوف سره دصفت نه مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف مستـقـرنـه خبـرلالاسره دخبرنه خبردکل فعل مبتداء ان حرف شرط کان فعل ناقص الفعل اسم کـان مـتـعـدیـاخبـرکـان جـمـلـه فعلیه شرط کان فعل ناقص له جارمجرورظرف مستقرخبرمقدم مـفـعـول صیـغـه داسـم مـفـعـول به جارمجرورنائب فاعل صیغه صفت سره دنائب فاعل نه شبه جـمـلـه اسم کـان ان کان مضمراشرط وحدللواحدمعطوف علیه ثنی للمثنی معطوف اول جمع بلجمع معطوف ثانی معطوف علیه سره دمعطوفات نه جزاء دشرط.

**تشریح:** پدے عبارت سره مصنفؒ توطیه اوتمهیدبیانوی دپاره داحکامودفاعل نومصنف وائـی دهـرفـعـل لابدی ده دفاعل نه ځکه فعل یوحدث دے اوعرض دے نوددے دپاره لابدی ده دمـحـدث نـه اودهـغـه شی نـه چـه دافـعـل وریـوری قـائـم شی. **فعل** پـه دوه قـسـمـه دے ۱ .لازمـی۲ .مـتـعـدی.فـعـل مـتـعـدی دیته وائی چه تعقل دهغه موقوف وی دفاعل نه بغیردبل مـتـعـلـق پـوری چـه هـغـے تـه مفعول وائی لکه ضربت زیداوعمرواً.فعل متعدی په دری قسمه دے:

(مفعول)(۱) متعدی یومفعول ته وی لکه ضرب زیدٌعمرواً

(مفعولین)(۲) متعدی دوه۲ مفعولو ته وی لکه علمت زیدافاضلا.

(۳) متعدی دریو۳ مفعولو ته وی لکه اعلمت زیداعمروافاضلا.

فـعـل لازمـی دیتـه وائـی چـه تـعـقـل ئی موقوف نه وی بغیردفاعل دبل متعلق پوری لکه

ذهب زيدٌخرج زيدٌ.

**قوله فان كان الفاعل مظهرا وُحِّدَ الفعل ابدا** : كه فاعل مظهروو نوفعل به همیشه مفرد وی. **تشریح** : دا توحید دفعل په وخت دظاهرتوب دفاعل کښ ضروری دے.

**دلیل(۱)** تشنیه توب اوجمع توب دفعل ددے دپاره دے چه خبردارے اوکړی په احوالو دفاعل باندے اوهرکله چه فاعل ظاهروونواحوال دهغه به هم ظاهروی نوتشنیه توب اوجمع توب دفعل ته ضرورت نشته دے.

**دلیل(۲)** فعل کچرے پدے حالت کښ تشنیه یاجمع شی نوپدے فعل کښ به ضمیرراشی هغه به هم فاعل شی اوروستواسم ظاهرهم فاعل دے نولازم به شی تکرارمثلاضربا الزیدان اوضربوا الزیدون بشی اودامتنع دی.

**دلیل۳)** که پدے حالت کښ فعل تشنیه یاجمع شی نولازم به شی اضمارقبل الذکرځکه دضرباداضمیربه راجع شی روستوالزیدان ته اودضربوداضمیرچه واودے راجع بشی روستو الزیدون ته اواضمارقبل الذکرجائزندے.... اوچه کله فاعل دفعل ضمیروی نومطابقت ضروری دے دفعل دفاعل سره. (۱) **دلیل** دادے که دافعل که واحدکړے شی پدے حالت کښ اوضمیرورله فاعل وی نودابه هم واحدوی دپاره دمطابقت بین الضمیرومرجعه اوکه ددے ضمیرمرجع تشنیه وی یاجمع وی نومطابقت نه راځی دضمیر اومرجع کښ نو هرکله چه فعل تشنیه اوجمع شی نوضمیربه ورسره هم تشنیه اوجمع وی نومطابقت به راشی.

**دلیل(۲)** فاعل چه مضمروی نواحوال خفی وی دانه معلومیږی چه ضمیردواحد دے اوکه تشنیه ده اوکه جمع ده نوددے دپاره به تشنیه اوجمع کولے شی چه دلالت اوکړی په احوال دفاعل باندے.

**سوال** : ستاقاعده منقوضه ده پدے قول دالله تعالی باندے واسروا النجوی الذین ظلموا. الذین فاعل داسروا دے اواسم ظاهردے اوحالانکه فعل واحدندے اوجمع ده دارنګه قاعده دے منقوضه ده په اکلونی البراغیث اکلوافعل او البراغیث فاعل اسم ظاهردے اوفعل چه اکلونی دے جمع ده مفردندے. **جواب** : دلته فاعل اسم ظاهرندے بلکه ضمیردے په دوارو کښ چه واو دے اواسم ظاهر چه الذین او البراغیث دے دابدل دے دفاعل نه.

**سوال** :زيد معرفه ده په علميت سره نو الف لام پرے په الزيدان او الزيدون كښ داخلول باطل دى ځكه الف لام په علم نه داخليږى. **جواب** : مرادد زيد نه په الزيدان او الزيدون كښ معنى علمى نده بلكه مراد ددينه مسمى بزيد دے اومسمى بزيد نكره ده ځكه قانون دادے چه كله علم تثنيه اوجمع شى نو تاويل پكښ كولے شى په مسمى بذلك اللفظ سره.

وان كان الفاعل مونثا حقيقيا وهو الخ : اوكه فاعل مونث حقيقى وو.

**حل تركيب** : وان كان الفاعل مونثا حقيقيا شرط انث الفعل ابداجزاء مقدم انث الفعل ابدا خبرمقدم ان لم تفصل بين الفعل و الفاعل شرط موخر شرط سره دجزانه شرط اول شو په درميان كښ هو مابازاء الخ جمله معترضه ده هو مبتداء ماموصوله بازاء ظرف مستقرخبرمقدم ذكرموصوف من الحيوان ظرف مستقرمتعلق كائن صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مبتداء موخره متداء سره دخبرنه صله دموصول موصول سره دصله نه خبردهو شوداجمله معترضه ان فصلت شرط فلك الخيارجزاء فى التذكيروا لتانيث شرط قلت ضربت اليوم هندجزاء كذالك خبرمقدم الخيارمبتداء محذوف موخرفى المونث الغير الحقيقى جارمجرورظرف متعلق محذوف دپاره ان شئت شرط قلت طلع الشمس جزاء هذامبتداء اذاظرف مضاف كان فعل ناقص الفعل اسم كان مسنداخبر الى المظهرظرف لغو متعلق مسنداكان سره داسم اوخبرنه په تاويل دهذا التركيب سره مضاف اليه اذامضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه دثابت محذوف دپاره داخبرشو دهذادپاره ان كان مسنداالى المضمرشرط انث ابداجزاء جمع التكثيرمبتداء كا المونث الغير الحقيقى ظرف مستقركائن پورى متعلق دے داخبرشوان شئت شرط قلت الخ جزاء يجوزفعل فيه ظرف لغوه متعلق ديجوز الرجال قاموابتاويل هذا التركيب فاعل ديجوز.

**تشريح** : فعل په اعتباردتذكيراو د تانيث دفاعل سره په درى قسمه دے : (۱) فاعل مونث حقيقى. (۲) فاعل مونث غيرحقيقى. (۳)فاعل جمع مكسر. مونث حقيقى ديته وائى چه مايكون بازائه الخ مثال :امراة ناقة. مونث غير حقيقى ديته وائى چه مالايكون بازاء الخ مثال :شمس ظلمة. دوان كان الفاعل نه ترقلت ضربت اليوم هنددفاعل مونث حقيقى بيان دے.اودكذالك فى المونث الغير الحقيقى نه تر الشمس طلعت پورے دمونث غيرحقيقى

بیان دے.اود وجمع التکثیرنه ترالرجال مواپورے دجمع مکسربیان دے.

**احکام لکل واحد** کله چه فاعل دفعل مونث حقیقی ووبلافصل وونوتانیث دفعل واجب دے.

... اوکله چه فاعل دفعل مونث حقیقی مع الفصل وونواختیاردے په تانیث اوتذکیرکښں دلیل داول تانیث دفعل واجب دے ځکه تانیث حقیقی قوی دے نوداسرایت کوی فعل ته دلیل دثانی تانیث دفعل ضروری ندے په صورت دفعل کښں بلکه تذکیر اوتانیث دفعل دواړه جائز دی هرچه تانیث دفعل جائزدے دوجے دسرایت دتانیث نه فعل ته اوهرچه تذکیرلوجے دوقوع دفعل نه په مابین دفعل اوفاعل کښں.مثال داول ضربت هندمثال دثانی ضربت الیوم هندبالتانیث اوضرب الیوم هندبالتذکیراوکله چه فاعل مونث غیرحقیقی وی نوتذکیراوتانیث دفعل دواړه جائزدی پشان دمونث حقیقی مع الفصل لکه طلع الشمس بالتذکیراوطلعت الشمس بالتانیث.دلیل ځکه داتانیث قوی هم ندے اودفاعل شدت امتزاج هم دفعل سره نوی ځکه ځمونږه کلام په فاعل اسم ظاهرکښں دے اوشدت امتزاج دهغه فاعل دفعل سره وی چه ضمیرفاعل وی.اوتانیث غیرحقیقی ځکه ضعیف دے چه پدے مونث غیرحقیقی کښں من وجه تانیث موجودوی اومن وجه پکښں نه وی په اعتباردلفظ سره پکښں تانیث وی اوپه أعتبارمعنی سره پکښں تانیث نوی.اوهرکله چه فصل راشی دفاعل مونث غیرحقیقی کښں اوپه فعل دده کښں نوپه طریقه اولی سره تانیث اوتذکیردواړه جائزدی په فعل کښں بلکه تذکیراولی دے دتانیث نه.اوجمع مکسرکښں تانیث دفعل اوتذکیردواړه جائزدی ځکه په جمع مکسرکښں دوه اعتباره دی اول اعتباردلفظ چه دالفظ مذکردے نوفعل مذکرراوړل جائزدی اودویم اعتبارپکښں دجماعت دے خومفردمونث دے نوفعل مونث راوړل هم جائزدی مثال قام الرجال قامت الرجال،قال الرجال وقالت الرجال.**سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په نعم هندباندے فاعل پدے مثال کښں فاعل مونث حقیقی دے چه هند دے بلافصل اوفعل ئے مذکردے. **جواب** : مرادفعل نه فعل متصرف دے اونعم فعل غیرمتصرف دے.

**سوال** ستاقاعده منقوضه شوه په اتی النعجه باندے پدے کښں فاعل مونث حقیقی دے بلافصل اوفعل پکښں متصرف دے. **جواب** : مرادځمونږه دلته دفاعل نه فاعل دانسانانو دے دفاعل مونث حقیقی دپاره به فعل مونث کولے شي وجوبالکن په شرائطوثلاثوسره: (۱) شرط

فصل به نوى بين الفعل و الفاعل احتراز ضرب اليوم هندٌ. (٢) شرط فصل به متصرف وى احتراز نعم هندٌ. (٣) شرط فاعل به دانسانانو نه وى.احتراز اتى النعجه.




**ويجب تقديم الفاعل الخ** : اوواجب دے تقديم دفاعل په مفعول باندے .

**حل تركيب** : واوعاطفه يجب فعل تقديم الفاعل على المفعول ظرف لغومتعلق تقديم دابياجمله فعليه جزاء مقدم يادال برجزاء اذاشرطيه كان فعل ناقص الف ضميراسم كان مقصورين خبركان دامجموعه معطوف عليه خفت ابلس معطوف معطوف سره دمعطوف عليه نه شرط شرط سره دجزاء مقدم نه جمله شرطيه يجوزتقديم المفعول على الفاعل جزاء مقدم ان لم يخف ابلس شرط موخر.

**تشريح** : د فاعل تقديم په څلوروصوتونوكښ واجب دے اوپه څلوروصورتونوكښ جائزدے په تمامومعمولاتودفعل باندے ځكه فاعل جزاء دفعل دے لفظااومعناً .

**صورتونه دوجوب دفاعل په مفعول باندے** . (١) قرينه اواعراب دواړه منتفى په فاعليت دفاعل اوپه مفعوليت دمفعول باندے ميثال ضرب موسى عيسى. (٢)يافاعل ضمير متصل

ومثـال ضـربتك ضـربت زيـدا.(۳) واقع وّومفعول دفعل پس دالانهماضربت الاایاك ماضرب زيـد الاعـمـرا. (۴) مـفـعـول واقـع وپس دانمانه مثال انماضرب زيدعمرا. **دليل داول صورت** دپاره ددے چـه الـتباس رانشـی پـه مـابيـن دفاعل اومفعول به کښې. **دليل** ددويـم صورت: ځکه داتـصـال اوانفصال په مابين کښې منافات دے. **ددريم اوخلورم** صـورت دلیـل ځکه فوت نشی هغه حصرمطلوبه اومنقلب اونه گرځی هغه حصرمقصوده.

**صورتونه د جواز دتقديم دفاعل په مفعول باندے.**

(۱) چـه صـورت قـريـنـه وی پـه فـاعليت دفاعل اوپه مفعوليت دمفعول باندے لکه ضربت حبلیٰ موسیٰ. (۲) صورت چه قرينه داله وی په فاعليت دفاعل اوپه مفعوليت دمفعول باندے لکه ضرب زيدٌعمرواً. ۳)، چه قرينه اواعراب دواړه وی په فاعليت دفاعل اوپه مفعوليت دمفعول باندے لکه ضربت هندٌزيداً

**صورتونه دوجوب دتقديم دمفعول په فاعل باندے .**

(۱) کله چه متصل شی په فاعلت پوری ضميردمفعول مثال واذابتلی ابراهيم ربه.

(۲) واقع شی فاعل پس دالانه ماضرب عمرواً الازيدٌ

(۳) چه واقع شی فاعل پس دمعنی دالانه چه انمادے لکه انماضرب عمروازيدٌ.

(۴) متصل شی دفعل سره مفعول دفعل اوفاعل متصل نوی دفعل سره لکه ضربك زيدٌ.

---

**ويجوزحذف الفعل حيث كانت قرينةنحوزيدفی جواب من قال من ضرب الخ.**

اوجـائـزدے حـذف دعامل رافعه کوم ځاے کښې چه قرينه وی لکه زيدپه جواب دمن قال ضرب کښې. **حل ترکيب** : يـجـوزفـعـل حذف الفاعل فاعل حيث ظرف مضاف كانت فعل تام قرينه فـاعـل فـعـل سره دفاعـل نـه مـضـاف الـيـه دمـضـاف مـضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه ديجوزكذاجارمجرورظرف لغوه متعلق يجوزفعل حذف مضاف الفعل والفاعل معطوف عليه مـعـطـوف سره دمعطوف عليه نه ذوالحال معاً بمعنى مجتمعين حال حال سره دذوالحال نه مضاف اليـه دحذف مضاف سره دمضاف اليه نه فاعل فعل چه يجوزدے قديحذف الفاعل معطوف عليه يـقـام الـمـفـعـول مـقـامـه مـعـطـوف مـعـطـوف سره دمعطوف عليـه نـه جزا مقدم اذاكـان الفعل مـجهـولاشرط موخرهومبتداء القسم موصوف الثانی صفت اول المرفوعات ظرف مستقرمتعلق

په الکائن پورې داصفت ثاني شودموصوف موصوف سره دصفتینونه خبردمبداء.

**تشریح** : ددې عبارت نه روستو مصنف بیان ددریو مسائلو کوي: (١) حذف الفعل. (٢) حذف الفعل والفاعل. (٣) حذف الفاعل بشرط اقامه المفعول مقامه.

**اوله مسئله** حذف دعامل رافعه کیدې شي چه قرینه موجوده وي لکن دا حذف جائز دې قرینه دلته دوه قسمه ده:١ .قرینه محققه٢ .قرینه مقدره لکن حذف درافع دفاعل قلیل دې ددې وجې نه ابن حاجب دقاعده ذکر کوي په قد داخله سره په مضارع باندې وقد یحذف الفعل الخ.

**سوال** :څرنګه چه فعل حذف کولې شي نو دارنګه حذف دشبه فعل هم کولې شي دلته ذکرفعل اوشو اودشبه فعل ندې شوې. **جواب** : دلته مراددفعل نه عامل رافعه دې دفاعل برابره خبره ده چه فعل وي اوکه شبه فعل وي. **سوال** : فعل بیاولې ذکرشو؟ **جواب**: فعل اصل دې په عمل کښې څکه ئې دده ذکراوکړو. **سوال** : بحث څمونږه په فاعل کښې دې اوتادفعل بحث شروع کړوداندې مګرخروج دبحث نه دې. **جواب** :. بحث دمنعلقاتو دشي نه داخروج دبحث نه ندې څکه فعل عامل رافعه دفاعل دې مثال لکه زیدپه جواب دهغه چاکښې چه هغه وائي چه من ضرب نوضرب فعل دې اوزیدفاعل دې جواب ددې به داوي ضرب زیددلته حذف جوازي دې اوقرینه په حذف باندې شته چه سوال دسائل دې اوپه سوال کښې فعل مذکوردې و المذکورفی السوال کالمعادفی الجواب ددې قاعدې دلاندې حذف دفعل راغلې دې.

**اوس دلته اختلاف** دې په مابین دشیخ رضي اوابن حاجب کښې داکوم زید چه په جواب دسوال کښې راغلې دې دامبتداء ده اوکه فاعل دې شیخ رضي وائي دامبتداء ده اوخبردده محذوف دې دده دپاره دوه دلائل دي ١ .دلیل عقلي٢ .دلیل نقلي .دلیل عقلي دادې چه من ضرب داسوالیه جمله اسمیه ده پکارداده چه ددې په جواب کښې هم جمله اسمیه راشي اودلیل نقلي دادې په قران کریم کښې په جمله اسمیه سره سوال شوې دې لکه قل من ینجیکم من ظلمات البرو البحرددې جواب هم په جملې اسمیه سره راغلې دې قل اللهٔ ینجیکم نودجواب مطابقت دسوال سره راغلې دې. ابن حاجب وائي دافاعل دې دده دپاره څلوردلائل دي ٢ عقلي

۲ نقلی ۱ .دلیل عقلی داد ے چه دفاعل شك په ضرب کښ ند ے بلکه شك په فاعل کښ د ے نو پکارداده چه زیدفاعل شی مبتداء نشی.۲ .عقلی داد ے دحذف دخبرپه صورت کښ تکثیرپه حذف کښ لازمیږی یوبه فعل حذف شی اوبل به ضمیرحذف شی اوچه زیدفاعل شی نو حذف به صرف دفاعل راشی اوتقلیل دحذف اولی د ے دتکثیرد حذف نه.

**۱-دلیل نقلی** داد ے په قران کریم کښ چه جمله اسمیه راغلے ده اوپه جواب کښ جمله فعلیه راغلے ده لکه من یحی العظام کښ جمله اسمیه ده نوپه جواب کښ من یحیها الذی انشأ هاجمله فعلیه راغلے ده.

**۲-دلیل نقلی** من خلق السمٰوات والارض جمله اسمیه ده اودد ے په جواب خلقها العزیز العیلم جمله فعلیه راغلے ده.غوره مذهب دابن حاجب د ے جواب شیخ رضی ته ددلیل عقلی نه داد ے دلته اگرکه په سوال کښ جمله اسمیه ده لکن په حقیقت کښ جمله فعلیه ده ځکه اصل کښ من ضرب هل ضرب زیدوهل ضرب بکروهل ضرب عمرودد ے ټولونه تعبیرپه من ضرب سره اوشو. **جواب** : ددلیل نقلی نه داد ے الله ینجیکم منهادا هم بظاهرجمله اسمیه ده لکن په اصل کښ جمله فعلیه ده ځکه داسے وو ینجیکم الله لکن تقدیم دالله په فعل باند ے راغلے د ے دپاره دد ے چه تقدیم دماحقه التاخیر یوجب الحصروالاختصاص اواعتباراصل لره وی اوپه اصل کښ داجمله فعلیه ده.

**دویمه مسئله** : ویجوز حذف الفعل و الفاعل داهم په سبیله دقلت سره نه سبیله دکثرت سره اودامسئله هم دجوازده نه ده وجوب ځکه سدمسدنشته دلته ، دد ے دپاره به هم قرینه وی مثال لکه نعم شودلته فعل اوفاعل دواړه حذف دی یعنی نعم قام زیدٌ د ے په اصل کښ.نوقام اوزیدٌ دواړه فعل اوفاعل حذف شوی دی قرینه دلته سوال دسائل د ے چه اقام زیدفعل اوفاعل دواړه دلته په سوال کښ مذکوردی او و المذکورفی السوال کالمعاد فی الجواب. **سوال** : دلته د ے حذف وجوبی شی اونعم د ے قائم مقام دفعل اوفاعل شی. **جواب** : نعم حرف د ے اوغیرمستقل د ے اوفعل اوفاعل دواړه مستقل دی اوغیرمستقل قائم مقام دمستقل نشی کید ے. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په یازیدباند ے ځکه یاحرف د ے اوقائم مقام دفعل ادعواد ے نو اوامن دغیرمستقل راغلے د ے په ځائ ے دمستقل باند ے. **جواب** : داقاعده

سماعی ده اوپه سماعی باندے یوشی نشی قیاس کیدے.

**دریـــمـــه مســئله حذف الفاعل واقامة المفعول مقامه** ددے مسـئـلـے تفصـیل ـه مابعدکښ په مستقل فصل کښ راځی.

### تمرین لبحث الفاعل

| | |
|---|---|
| لولادفع الله الناس بعضهم ببعض | ختم الله علی قلوبهم ، |
| واذقال موسی لقومه | قالوا الاعلم لنا ، |
| قال قائل منهم | قال نسوة فی المدینة ، |
| قالت هیت لك | ،اقترب الوعد الحق |
| اذااصابتهم مصیبة | جعلنا اللیل لباسا ، |
| واذقال لقمان لابنه | یرید الله بکم الیسر ، |
| تغرب الشمس | قالت الیهود لیست النصاری |
| قالت الاعراب امنا | فمن جاء ه موعظة ، |
| قالت امرأة العزیز | وذا الارض مدت والقت مافیهاوتخلت |
| ،اذا الشمس کورت | جاء ربك ، |
| ماجاء نامن بشیر ، | فقدجاء کم بشیر ونذیر |
| واذاقاموا الی الصلواة قاموا کسالیٰ. | یراؤن الناس ولایذکرون الله الاقلیلا |
| وخلقناکم ازواجا | یوم یفر المرأ من اخیه. |

**فصل** اذاتـنـازع الـفـعـلان فـی اسم ظاهربعدهمااي ارادالخ الی عـکسـه نحو ضربت واکرمنی زیدٌ .

هرکله چه تنازع دعاملانوراشی په اسم ظاهرکښ چه واقع وی وروستو ددے عاملانونه.

**حل ترکیب** : اذاشرط تـنـازع فـعـل الفعلان فاعل فی جار اسم موصوف ظاهرصفت اول بـعـد هـمـامـضـاف سره دمضاف الیه ته مفعول فیه دفعل محذوف چه واقع دے.داصفت ثانی شوموصوف سره دصفتینونه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق.تنازع فعل سره دفاعل اومتـعـلـق نـه شـرط فـاء جزائیـه هـذامبتـداء انـمـابـرائـے حصریکون علی اربعه اقسام

خبرمبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه جزاء دادفعل كل مضاف واحدموصوف من الفعلين ظرف مستقرمتعلق كائن داشوصفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف اليه دمضاف دابيافاعل فعل ان يعمل په تاويل دمصدرسره مفعول به دارادفي ذالك الاسم جارمجرورظرف لغو متعلق يعمل.الاول مبتداء ان يتنازعافي الفاعليه بتاويل المصدر خبرفقط فافصيحيه قط اسم فعل بمعنى انته فعل سره دفاعل نه جزاء كيږي دشرط محذوف تقديردعبارت دارنگه دے اذاوجدتنازعهمافي الفاعليه فانته عن التنازع في المفعوليه فقط دغه شان داثالث الرابع مبتداء عكسه خبر.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو منصنف دبيان دهغه فاعل نه چه تنازع دفعلينوپكښ نه وه نوشروع ئے اوكړه په هغه فاعل كښ چه تنازع دفعلينوپكښ وي.اودامشهوره مسئله دنحاتوده چه ديته تنازع دفعلينوائي. **سوال** : تنازع څنگه چه په دوه فعلينوكښ راځي نودارنگه په شبه فعلينوكښ هم راځي نولے تنازع خاص شوه په ذكردفعلينوپورے؟ **جواب**: دلته ذكردفعلين دے اومرادترينه عاملين دي . **سوال**: بيابه ئے عاملين ذكركړي وو؟ **جواب**: ذكردفعلين ئے دوجه داصالت نه كړيدے ځكه اصل اوقوى په عواملوكښ فعل دے. **سوال** لكه څنگه چه تنازع په دوه فعلينوكښ راځي نودارنگه په ډيرو فعلينوكښ هم راځي مثال كماصليت سلمت وباركت ورحمت وترحمت على ابراهيم نودلته ولے تخصيص ددوفعلينواوشو؟ **جواب**: دوه فعلين دحصرذپاره ندي بلكهٔ اقله مرتبه دتنازع ذكركړے ده چه كم ازكم دوه عاملين به وي اوزيات لره څه حدنشته دے. **سوال** : نسبت دتنازع فعلينوته صحيح ندے ځكه چه تنازع په ذوي الروح كښ راځي اوفعلين غيرذوي الروح دي. **جواب**: د تنازع دپاره دوه معنے دي ١ .لغوي٢ .اصطلاحي لغوي معنى بايك ديگرنزاع ساختن ته وائي اواصطلاحي معنى داده چه په شدت اوسختئ سره تقاضي كول دي ددوه عاملينودمعموليت داسم چه پس ددوي نه وي اوداسم هم صلاحيت دد ے خبرے لري چه ددواړودپاره معمول واقع شي په طريقے دبدليت سره .دلته معنى اصطلاحي مراده ده ديته ئے اشاره كړے ده پدے قول سره اي ارادكل واحدالخ.

في اسم ظاهر. پدے قيدسره احترازراغے دضميرنه برابره خبره ده چه متصل وي اوكه

مـنـفـصـل وی کـه ضـمـیـرمـتـصـل وی نو معمول به دفعل ثاني وی ځکه دهغه جزء دے اوجانز
نـدے چـه فـعـل اول پـده کـبنې عـمـل اوکـړی ځکه جائزندی یوددفعلینولره چه عمل اوکړی په
جزدفعل اخرکښې لکه ضربت واکرمته کښې مفعول داکرمت دے اوهغه پکښې عمل کړے دے
اول فعل چه ضربت دے دهغه معمول اومفعول نشی جوړیدے.

اوکه ضمیرمنفصل لکه ماضرب واکرم الاناپدے کښې اگرچه تناز ع شته دے لکن صورت
دقـطـع دتـنازع پکښې ممکن ندے چه اعمال دفعل ثاني لره دے په نزدبصرینو اواضمار دے په
اول کـښې ځـکـه بیـالازمیږی اضـمـاردحرف اوبیاضمیر متصل قیاس دے په متصل باندے په
متـصـل کـبنې تـنـازع نشـی راتـلـے نـوپـه مـنفصل کښې هم نشی راتلے .بعد همادپے قیدسره
احترازاوکړوداول اوسط نه ځکه بیاتنازع نشته دے ځکه پدغه وخت کښې به متعین وی اول.

فهذاانمایکون علی اربعه اقسام داتنازع په څلورقسمه ده:

(۱) فی الفاعلیه. (۲) فی المفعولیت.

(۳) فی الفاعلیه والمفعولیت. (۴) فی المفعولیه و الفاعلیه.

---

**واعلم ان فی جمیع هذه الاقسام الخ.** : پوهـ شه یقینا پدے تولو اقسامو کښې.

**تشریح** : پـدے څـلـورواقـسـامـوکښې داول فصل عمل هم جائز دے اودفعل ثاني عمل هم
جائزدے.عند البصرین و الکوفین .صرف امام فراء وائي. چه په اول صورت اوثالث صورت کښې
چـه عـمـل دفـعـل ثـانـي جائز ندے دلیل دادے که عمل فعل ثاني ته ورکړے شي نوداول فعل
فـاعـل بـه یـامـحـذوف وی یـابه ضمیرپکښې وی او هغه به روستواسم ظاهرته راجع وی اودادواړه
احتـمـاله صحیح ندی. هرچه حذف دفاعل دے نولازمیږی حذف دعمده اوداجائزندے اوهر چه
ضـمـیـردے نـولازمیـږی اضـمـارقبل الذکراوداهم ممنوع دے لهذاپه دوه صورتونو کښې اعمال
دفعل اول دپاره به وی.

لـیـکـن غـوره مـذهب دجمهورونحاتودے چه بصرین اوکوفین دی جواب فراته ورکوی چه
حذف دفـاعـل مـمـنـوع اونـاجـائـزدے چـه کـلـه سـدمسدپـه مـابعدکـښې نوی اودلـتـه شتـه
دے.اواضمارقبل الذکرممنوع دے په مابعدکښې چه تفسیرنوی شوے اودلته تفسیرشته دے

په مابعد کښې.

**وهذافي الجوازوالاختيار... ..الى الاستحقاق.**

**حل ترکيب** : هذامبتداء في الجواز ظرف مستقر متعلق په ثابت پوری دابيا خبر دے دمبتداء اما حرف تفصيل الالاختيار مبتداء متضمن دے معنى دشرط لره فاء جزائيه فيه خبر مقدم خلاف البصرين مبتداء موخر مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبرقائم مقام جزاء ان حرف از حروف مشبه بالفعل هواسم ان يختارون اعمال الفعل الثانی خبرااعتبارامفعول له للقرب والجوار متعلق په اعتبارا پورے الكوفين مبتداء يختارون الخ خبرمراعات مفعول له للتقديم والاستحقاق ظرف لغوه متعلق په مراعات مصدر پورے.

**تشریح** : دهذامشاراليه اختلاف فراء دے يعنى اختلاف دفراء دجمهوروسره په جواز اوعدم جواز کښې دے اوس دجمهورونحاتوترمينځه اختلاف په اولويت کښې بيانوی اوهرچه په جواز کښې نودوی بيانوی اتفاق دے په څلورواقسامودتنازع کښې اعمال فعل اول لره هم جائزوائی اواعمال فعل ثانی لره هم جائزوائی. **بصريان** عمل فعل ثانی لره اولی وائی په اعتبارددليلنوسره اول دليل فعل ثانی اسم ظاهرته قريب دے اوقرب داسبابودترجيح نه دے.

۲. کچرے فعل اول لره عمل ورکړے شی اواسم ظاهردده معمول شی نودعامل اودمعمول ترمينځه به فصل لازم شی چه دانامناسب دے. **كوفيان** عمل فعل اول لره اولی وائی په اعتبارددليلنوسره ۱. چه فعل اول مقدم دے په ثانی باندے اومقدم زيات مستحق وی ځکه فعل اول په طلب کښې مقدم دے په فعل ثانی باندے. ۲. که فعل ثانی ته عمل ورکړے شی نولازم به شی اضمارقبل الذکراودانامناسب دے اوس تفصيل کوی.

**فان اعملت الثانی فانظران کان الفعل الاول الخ. اکرمت الذين.**

**حل ترکيب** : فاء تفريعيه ان حرف شرط اعملت فعل فاعل الثانی مفعول به دامجموعه شرط اومابعدورله جزاء.

**تشریح** : مصنف مذهب دبصريانومقدم کړوپه مذهب دکوفيانوباندے ځکه دمصنف په نزدمذهب دبصريانوراجح دے نوددے وجے نه ئے په اجمال اوتفصيل کښې مقدم کړومتن مذکورکښې قسم اول دتنازع دے چه فعل اول اوفعل ثانی دواړه داسم ظاهردفاعليت تقاضى کوی

لـکـه مـصـنف ورتـه متوافقین وئیلی دی پد ے صورت کښې اعمال دفعل اول او اعمال دفعل ثاني دواړه جائزدي لیـکـن مـخـتـارعـنـد البصرین اعمال دفعل ثاني اولی دے چه اسم ظاهردفعل ثاني فاعـل دے. اوهـرچـه فـعـل اول دے دهغـې دپاره به فاعل ضمیروی راجع به وی دغه اسم ظاهرته حذف روانـدے ځـکـه حذف دفاعـل عـمـده بـه راشـي اوذکرنـې روانده ځکه تکراربه راشي نو بالضروره اضـمـاربـه کـولـې شي په فعل اول کښې. **سوال** : اضـمـارقبل الذکربه راشي اوداناجائزدے. **جواب** : اضمارقبل الذکرفي العمده بشرط التفسیرجائزدے.مثال دمتوافقینو:

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربني واکرمني زید | ضرباني واکرمني الزیدان | ضربوني واکرمني الزیدون |

مثال دمتخالفین اول فعل تقاضي دفاعل کوی اوثاني دمفعول.

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربني واکرمتُ زیداً | ضرباني واکرمت الزیدین | ضربوني واکرمت الزیدین |

وان کان الفعل الاول یقتضي المفعول الخ.

ترجمه : کـچـرے فـعـل اول تـقاضي دمفعول کوله اوفعلین دافعال قلوب نه نه وونودد ے هم دوه صورتونه دي:۱ .متوافقین۲ .متخالفین.په متوافقین کښې دواړه تقاضي دمفعول کوی اوپه متـخـالـفـیـن کښې اول فـعـل تـقاضي دمفعول کوی اوثاني تقاضي دفاعل کوی.نودد ے طریقه دقـطـعـې داده چه عـمـل بـه فعل ثاني لره ورکړے شي اودفعل اول نه به حذف شي ذکرکیدے نشـي ځـکـه تـکـرار بـه لازم شي اواضمارهم نشي کیدے ځکه اضمارقبل الذکربه لازم شي په فضله کښې اودامنع دے نولهذا حذف متعین شو.

**مثال المتوافقین علی وفق مذهب البصرین.**

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربتُ واکرمتُ زیداً | ضربت واکرمت الزیدین | ضربوني واکرمت الزیدین |

مثال دمتخالفین .

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربتُ واکرمني زیدٌ | ضربت واکرمني الزیدان | ضربت واکرمني الزیدون |

**واماان اعملت الفعل الاول علی مذهب الکوفین الخ.**

ترجمه: کچرے دکوفین دمذهب مطابق عمل فعل اول دپاره ورکړے شونوفعل ثانی به خالی نوی یابه تقاضی دفاعل کوی یابه تقاضی دمفعول کوی کچرے دفاعل تقاضی نے کوله نو اضماردفاعل به کولے شی په فعل ثانی کښ برابره خبره ده چه فعل اول تقاضی دفاعل کوی اوکه دمفعول کوی نوذکرکیږی به نه ځکه تکراربه لازم شی اوحذف کیږی به نه ځکه حذف دعمده راځی لهذا اضمیردفاعل به راوړے شی. **سوال**: دلته اضمارقبل الذکرلازم شو. جواب: اضمارقبل الذکرلفظادے اورتبتاً ندے اوداجائزدے اواضمارقبل الذکرلفظا اورتبتاً ناجائزدے

**مثال دمتوافقین علی مذهب الکوفین.**

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربنی واکرمنی زیدٌ | ضربنی واکرمانی الزیدان | ضربنی واکرمونی الزیدون |

مثال دمتخالفین.

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربتُ واکرمنی زیداً | ضربت واکرمانی الزیدین | ضربت واکرمونی الزیدین |

**وان کان فعل الثانی یقتضی المفعول الخ.** ترجمه: کچرے فعل ثانی تقاضی دمفعول کوله اوفعلین دافعال قلوب نه نۀ وو نوفعل اول دپاره به عمل ورکولے شی اودثانی فعل سره مفعول ذکرکولے هم شی په صورت دضمیرباندے اوحذف دمفعول ترینه هم کولے شی لکن ضمیرراوړل په نسبت دحذف اولی دی.

**مثال دمتوافقین بصورت حذف مفعول فعل الثانی.**

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربتُ واکرمت زیداً | ضربت واکرمت الزیدَین | ضربت واکرمت الزیدِین |

مثال دمتخالفین.

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربنی واکرمت زیدٌ | ضربنی واکرمت الزیدان | ضربنی واکرمت الزیدون |

**مثال دمتوافقین بصورت اضمار.**

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربتُ واکرمته زیدٌ | ضربت واکرمتهما الزیدَین | ضربت واکرمتهم الزیدین |

مثال دمتخالفین بصورت اضمار.

| اسم ظاهرمفرد | اسم ظاهرتثنیه | اسم ظاهرجمع |
|---|---|---|
| ضربنی واکرمته زیداً | ضربنی واکرمتهما الزیدان | ضربنی واکرمتهم الزیدون |

و التمرین فی المطولات

**تمرین لبحث التنازع**

اتونی افرغ علیهم قطرا — هؤمقرؤا کتابیه

زیدمعطٍ ومکرمٌ عمراً — بکرٌکریمٌ وشریفٌ ابوه

ضربت واکرمت زیداً — اناناصروضاربٌ زیداً.

**فصل مفعول مالم یسم فاعله وهوکل مفعول حذف فاعله** ترجمه: مفعول دهغه فاعل چه نوی ذکرشوے فاعل دده اوداهرهغه مفعول دے چه حذف شوے وی فاعل دده.

**حل ترکیب**: مفعول مرفوع بنابرابتدائیت. ماموصوله یسم فاعله صله موصول موصول سره دصله نه مضاف الیه دمفعول شومبتداء کل مفعول حذف فاعله خبر.

**تشریح:** دویم قسم دمرفوعاتو مفعول مالم یسم فاعله دے. **سوال**: دائے دفاعل سره ولے متصل ذکرکړو اوپه نورومرفوعاتو ئے مقدم کړو؟ **جواب**: دده شدت اتصال دفاعل سره دے ځکه په وخت دعدم ذکردفاعل کښ مفعول مالم یسم فاعله قائم وی په ځاے دفاعل باندے.

**سوال**: په تعریف کښ راوړل لفظ دکل صحیح ندی ځکه کل راځی دپاره داحاطے دکل افرادودشیء نودلالت په افرادوکوی اوتعریف خودجنس اودحقیقت دپاره کولے شی.اوپه جنس اوحقیقت کولے شی نه افرادوسره ځکه افرادغیرمتناهی وی نوشومجهول اوتعریف په مجهول سره باطل دے. **جواب**: په تعریف کښ کل دتعریف نه خارج دے اوتعریف دمفعول مالم یسم فاعله دمدخول دکل نه دے چه مفعول حذف فاعله الخ دے. **سوال**: هرکله چه کل په تعریف کښ داخل ندے نوبیاولے ذکرکړے شوے دے. **جواب**: کل ذکرکړے دے چه صدق دتعریف اوشی په ټولوافرادودمعرف باندے. **سوال**: دمصنف په عبارت کښ تناقض

دے پدے شان سره چه دمفعول مالم سم فاعله نه معلومیږی چه فاعل دده به بلکل نوی اودحُذف فاعله نه دامعلومیږی چه فاعل دده مسمی دے لکن محذوف دے. **جواب** : لم یسمی په خپله معنی سره ندے چه دااعتراض واردشی بلکه په معنی دلم یذکرسره دے اوعدم ذکرنه معلومیږی معدومیت دفاعل. **سوال** : داعبارت چه حُذِف فاعله دے داهم صحیح ندے ځکه چه حذف تقاضی دسبق ذکرکوی ځکه حذف اسقاط الشیء بعدالوجودته وائی اوپدے صورت کښ اول فاعل ندے موجود چه نسبت ورته دحذف اوشی. **جواب** : مراددحذف نه معنی مذکوره نده بلکه معنی دحذف دلته ترك دے چه فاعل ترك کړے شوے دے اودے اعتراض اوجواب ته ناکت اشاره کړے ده. سوال : حذف دفاعل ممنوع دے ځکه عمده دے.**جواب** : حذف دفاعل په هغه ځاے کښ ممنوع دے چه قائم مقام دده نه وی اودلته مفعول قائم مقام دفاعل دے.

**سوال** :مفعول به څنګه قائم مقام دفاعل شی دفاعل نه فعل صادریږی اوپه مفعول واقع کیږی فاعل عمده اومفعول فضله دے فی الکلام نوفضله به څنګه قائم مقام دعمده شیَ؟

جواب:. دلته مفعول قائم مقام دفاعل ګرځی په اسناددفعل کښ مفعول ته.

پس زده کړه داخبره چه په بعضی مواضعوکښ فاعل حذف کولے شی اواقامت دمفعول په ځاے دفاعل وی : (۱) دوجے دعدم علم نه په فاعل باندے مثال سُرِقَ المتاعُ.

(۲) دوجے دخساست دفاعل نه.مثال شُتِمَ الخلیفة. (۳) دوجے دتعظیم دفاعل نه. قُطِعُ اللصُّ.

(۴) دوجے داختیاردغرض اومقصود دمتکلم نه مثال قُتِلَ عدوُكَ.

(۵) دوجے داختصار نه په کلام کښ.مثال اقیمت الصلاة.

(٦) دوجے دشهرت نه.مثال قُتل الخراصون.کوم مفاعیل په ځاے دفاعل واقع کیږی.

(۱) مفعول به.(۲)مفعول فیه زماناومکانا.(۳)مفعول مطلق.

(۴) جارمجرور چه دیته مفعول به غیرصریحی وائی.

**قاعده** : هرکله چه یوددے مذکوره نه په ځاے دفاعل باندے قائم شو نو(۱)دیته به رفع ورکولے شی (۲)مفعول مالم یسم فاعله به ورته وئیلے شی (۳)دنائب فاعل اطلاق پرے هم کیدے شی **قاعده**: هرکله چه په ترکیب کښ داټول موجودشونو اولی داده چه مفعول به قائم

شي په ځـاے دفـاعـل بـانـدے اونه دانور ځکه مفعول به شدت مناسبت دے دفاعل سره ځکه تـصوردفعل چه څنگه موقوف وی په فاعل پورے نودغه شان تصوردفعل په مفعول به پورے هم موقوف وی کله چه فعل متعدی وی.

**قاعده** : اوکـلـه چـه پـه تـركيب كښې مفعول به نه وی اودانور مفاعیل وی نوبیاهریو په ځاے دفاعل قائم كيدے شی ځکه ولامرجع لاحد هماعلى الاخر .

**داولے قاعدے مثال** :ضُـرِبَ زيـدٌ يـوم الـجـمـعـة امـام الاميـر ضـربـاشـديـدافـي داره.

(مـفـعـول به قائم مقام فاعل) (مفعول فيه زماني) (مفعول فيه مكاني) (مفعول مطلق)(جارمجرور)

. د دويمے قاعدے مثال:ضُرِبَ يومُ ا لجمعة امام الاميرضرباشديدا في داره. مفعول اول اوثاني دباب داعطيت دواړه پـه ځـاے دفـاعل واقع كيږی.لكن اولی پكښې مفعول اول دے دمفعول ثاني نه مثال اعطيت زيدادرهما.

څلورمفاعيـل په ځاے دفاعل نه واقع كيږی : (۱) مـفـعـول ثـانـی بـاب علمت. (۲) مفعول ثالث باب اعلمت. (۳) مفعول معه. (۴) مفعول له بدون اللام.

مثال علمت زيدا فاضلا .اعلمت زيداعمروافاضلا .ضربت زيداتاديبا.

**دليل** دادے چـه پـه مـفـعـول ثـانـی بانـدے دباب علمت نه دامسنددے مفعول اول ته اومفعول ثالث داعـلـمـت دامسنددے مفعول ثاني ته اول اوثاني ورته مسنداليه دی نوكچرے داپه ځاے دفـاعل قائم شي نومسنداليه به شي اوداباطل ده ځكه دادواړه صفات متضاده دي يوشي مسند اومسـنـداليـه پـه يـووخـت كښې نه واقع كيږی په خلاف دمفعول اودباب علمت اومفعول ثاني د باب اعلمت دوی واقع كيږی په ځاے دفاعل باندے.

**دليل** : دمفعول معه ځکه په ځاے دفاعل نه واقع كيږی چه مفعول معه روستودواونه واقع وی نـويـابـه پـه ځـاے دفـاعـل بـغيـردواونه واقع كيږی نوبيانه معلوميږی چه مفعول معه دے اوكـچرے سره دواونه واقع شی نولازم به شی فصل په مابين دفعل اونائب فاعل كښې په واوسره اودافصل باطل دے ځکه فاعل كالجزء من الفعل وی.

**دليل مفعول له**: ځكه په ځاے دفاعل نه واقع كيږی ځكه دمفعول له نصب مشعردے په علـت توب دده باندے دپاره دفعل سابق هركله چه په ځاے دفاعل واقع شی نونصب به په رفع

باندے بدل شئ نوفوت بشی اشعارپه علت توب باندے اوداباطل ده. لکن که مفعول له سره دلام نه وو نوبیاواقع کیږی په ځاے دفاعل باندے مثال ضربت زیداللتادیب ځکه دلته مشعرلام دے په علت توب باندے نوپه قیام باندے مثال ضربت زیداللتادیب ځکه دلته مشعرلام دے په علت توب باندے نوپه قیام سره دااشعارنه فوت کیږی.

**وحکمه فی توحیدفعله الخ.**

مصنف قیاس داحکامودمفعول مالم یسم فاعله په احکام دفاعل کړے دے په اسناددفعل کنبں الخ.



## تمرین لبحث نائب الفعل

☆واذاحییتم بتحیة فحیو اباحسن منها اوردوها. ☆فاذانفخ فی الصور

☆واذاقیل لهم لاتفسدوافی الارض. ☆کتب علیکم القصاص.

☆احل لکم لیلة الصیام الرفث ☆ضُرب ابن مریم مثلا.

☆یردون الی اشد العذاب. ☆وجمع الشمس وا لقمر

☆وغیض الماء. ☆اذافتحت یاجو وماجو ج.

☆فمن عفی له، ☆کتب علیکم الصیام.

☆افعل ماتؤمر. ☆قضی الامر الذی.

☆واذا المؤدة سئلت بای ذنب قتلت.

☆واذا: الواوحسب ماقبلها اذا ظرفیه شرطیه متعلق بالجواب.

☆الموؤدة: نائب فاعل لفعل محذوف مبنی للمجهول یفسره ا لمذکور.

☆سئلت: فعل ماضی مبنی للمجهول والتاء للتانیث ونائب فاعل ضمیرمستترتقدیره هی.

☆بای : جارمجرورمتعلق به قتلت.

☆ذنب: مضاف الیه مجرور

☆قتلت: فعل ماضی مبنی للمجهول والتاء للتانیث ونائب فاعل ضمیرمستترتقدیره هی.

تمت بحث مفعول مالم یسم فاعله.

**فصل** المبتداء و الخبرهمااسمان مجردان عن العوامل اللفظیة احدهما مسندالیه. الخ مبتداء اوخبردواړه اسمان دی چه خالی وی دعوامل لفظیونه یوددوی نه مسندالیه وی اوبل مسند.

**حل ترکیب** : المبتداء والخبرمعطوف معطوف علیه مبتداء همااسمان مجردان عن العوامل اللفظیه خبرډے احدهمامبتداء مسندالیه الخ خبر.

**تشریح** : هرکله چه مصنف فارغ شودقسم ثانی دمرفوعات نه چه مفعول مالم یسم فاعله دے نوشروع ئے اوکړه په قسم ثالث اورابع باندے چه مبتداء اوخبردی. **سوا ل** : مبتداء اوخبردواړه په یوقسم کښ ولے ذکرکړل سره دهٔ نه چه دادواړه قسمین علیحدتین دی. **جواب** :

دمبتداء اوخبرپه مابين كښې تلازم دے په اصل كښې پدے شان سره چه په يو تركيب كښې احدهماذكروى نواخربه ورسره هم ذكروى اوكوم ځائے كښې چه احدهما حذف وى نو هغه به خلاف داصل نه وى. **جواب۲**: دواړه په عامل معنوى كښې شريك دى په نز دبصريانو باندے. **سوال** : په تعريف كښې ئے ولے يو ځائے ذكر كړل؟ **جواب** : دمخكښو وجهينو دوجى نه. **سوال** : مبتداء ولے مقدم شوه په خبرباندے. **جواب** : مبتداء ذات اوخبروصف وى ذات مقدم وى په وصف باندے خبرسره بيان داحوال دخبركيدے شى.

**مبتداء په دوه قسمه ده** (۱) قسم اول دمبتداء۲)قسم ثانى دمبتداء اوخبريوقسم دے چه مسندبه وى ابدااودمبتداء قسم اول مسنداليه وى اوقسم ثانى مسندوى. په تعريف دمبتداء اوخبركښې يوجنس دے اونورقيودات فصل دى داقيد چه همااسمان داجنس دے شامل دے مقصودته چه مبتداء اوخبردى اوهم غيرمقصودته چه باقى اسماء دى لكه اسم دكان سره داخوات دكان اوخبردان سره داخوات نه الخ اوداقيد چه المجردان عن العوامل اللفظيه فصل دے پدے سره خارج شوباقى اسماء بغيردمبتداء اوخبرنه. **سوال** : مبتداء به اسم وى ستاقاعده منقوضه شوه پدے قول دالله‌تعالى باندے چه فعل مبتداء واقع ده لكه "ان تصوموا خيرلكم "ان تصوموامبتداء ده اوخيرلكم خبر دے. **جواب** : جواب اسم عام دى حقيقى وى اوكه تاويلى وى دلته ان تصوموااسم تاويلى دے ځكه ان مصدريه ورنه مصدرجوړ كړے دے چه هغه صيامكم دے بل مثال ان تصدقوا خيرلكم . **سوال** : ستاقاعده منقوضه په تسمع باندے چه راغلے دے پدے قول دشاعركښې :

تسمع بالمعيدخير من ان تراه ستعرف قدره ان فتح فاه

**جواب**: داهم اسم تاويلى دى په تقديردان سره اى سماعك الخ. **سوال** : تقديردان پس دمواضع ستة نه كيږى اودلته دهغه مواضعونه نه دے **جواب** : **هغه مواضع ستة مشهوردى** اوداد غيرمشهورمواضعونه دے **پس داخبره** چه خبربه اسم وى اوكه فعل هم واقع كيږى نوپدے كښې **دنحويانواختلاف** دے (۱)اول مذهب دابن حاجب اومصنف هدايت النحو.(۲)مذهب محققين. په مذهب دابن حاجب اودمصنف دهدايت النحو باندے خبربه لازمااسم وى اوچرته چه جمله واقع وى نوهلته به تاويل داسم كيدے شى. په مذهب

دمحققینوباندے خبرداسم هم واقع کیږی اوجمله هم واقع کیږی بغیردتاویل نه په اسم سره.

**قوله و العامل فیهامعنوی وهو الابتداء.**

ترجمه: اوعامل په مبتداء اوخبرکښ معنوی دے چه ابتداء ده.

**تشریح**: اختلاف فی عامل الخبرو المبتداء په دے مسئله کښ دری مذاهب دی: (۱) بصریان وائی په مبتداء اوخبرکښ عامل معنوی دے چه هغه ابتداء ده او هغه عبارت دے د تجرد اوخالی والی دمبتداء اوخبردعواملولفظیونه مصنفؒ اوابن حاجب دامذهب غوره کړے دے. (۲) دسیویه مذهب دادے چه په مبتداء کښ عامل معنوی دے اوپه خبرکښ عامل لفظی دے پدے شان سره چه په مبتداء کښ عمل درفع ابتداء کړے دے اوپه خبرکښ عامل مبتداء ده اومبتداء امر لفظی دے. (۳) دریم مذهب دفراء اوکسائی دے په مبتداء اوخبردواړوکښ عامل لفظی دے پدے شان سره چه مبتداء عامل فی الخبردے اوخبرعامل فی المبتداء دے.

لکن پدے مذهب ثالث باندے **اعتراض** واردیږی چه بناء پدے بابدے دلته دور اوتقدم دشی په خپل نفس باندے هرچه دورځکه چه مبتداء محتاجه ده خبرته په عمل اوخبر محتاجه دے مبتداء ته په عمل کښ نو هریو موقوف په عمل کښ تراخره پورے اوداندے مگردوردے.
اوهرچه تقدم دے ځکه چه هرکله چه مبتداء عامل شی په خبرکښ نو مبتداء به مقدم وی په خبرباندے ځکه عامل مقدم وی په معمول باندے دارنگه خبرهم به هم داسے وی نو هرکله چه خبرمقدم شوپه مبتداء باندے نوددینه لازمیږی تقدیم دخبرپه خپل نفس باندے په دوه مرتبوسره مرتبه واحده تقدیم دخبرپه خپل نفس باندے اوپه دویمه مرتبه کښ تقدم دده په هغه شی باندے چه معمول دده وی چه مبتداء ده اوتقدم دشی په خپل نفس باندے محال دے.

**جواب**: ددورنه دادے چه دورنه لازمیږی دارنگه تقدم دشی په خپل نفس نه راځی جهت د تقدم اوجهت دتوقف په مبتداء اوخبرکښ جدا جد ادے پدے شان سره چه مبتداء عامله ده په خبرکښ نوپدے جهت باندے چه دامنسوب الیه ده اوتقدم دمبتداء هم ددے وجهی نه دے ځکه منسوب الیه مقدم وی په منسوب باندے اوخبرچه ددے مبتداء معمول دے اوموخردے نوپدے جهت چه منسوب اوفرعه دمبتداء ده اوداخبرچه عامل دے په مبتداء

كښې نـو ددے وجې نـه چـه مـقـصـودوى پـه كـلام كـښې اومبتـداء خوسيله اوزريعه وى خبرته نـوپدے جهت مقدم وى په مبتداء باندے نودورنه لازميږى ځكه چه جهت جداجدادے اوتقدم دشى پـه خپـل نـفـس نـه راځـى ځـكـه جهت دتقدم دخبرپه خپل نفس باندے جدادے اوجهت دتاخردخبردخپل نفس جدادے.

**سوال** : تـجـردتـقـاضـادسبـق وجـودكـوى ددينه دامعلوميږى چه مبتداء اوخبركښې به يوځل عامل لفظى موجودشوى وى اوروستوبه بياتجرد اوخالى والے شوے وى دعواملونه اوحالانكه داول نه په مبتداء اوخبركښې لفظيه ندى موجود. **جواب** : دلته دتجردخپله معنى نده مراد بلكه مرادينه خلوه ده يعنى په مبتداء اوخبركښې دواړه اسمان دى چه خالى به وى دعوامل لفظيونه.

**سوال:** ستاتعريف منقوض دے پدے قول چه بحسبك درهم دے حسب مبتداء ده درهم ورله خبـردے اوحـال دادے چـه حسـب مـجـردنـدے دعـامـل لـفظى نـه باء پرے داخلـه ده. **جواب:** مـراددعـامـل لفظى نه هغه دے چه موثرفى المعنى وى اودلته باء زائده ده. **سوال** : ستاتعريف منقوض دے پدے قول چه مازيدٌقائم دلته مبتداء كښې عامل موثرفى المعنى دے اوابتدائيت صحيح دے.

**جواب** : مـرادځـمـونـږه داثردعامل نه په اعتباردمعنى سره دادے چه ددے عامل سره به بل مـعارض نوى موجوداوپه ماعلمت زيدقائم دعلمت سره بل معارض موجوددے چه هغه علمت منع كوى دنصب وركولونه مبتداء اوخبرته چه هغه مانافيه دے.

**سوال** : العوامل جمع ده اوموصوف دے او اللفظيه ورله صفت دے اودموصوف اوصفت پـه مـابـيـن كـښې مـطـابـقـت ضرورى وى په وحدت اوجمعيت اوتثنيه توب كښې اودلته مطابقت نشته دے. **جواب** : دلته جمع په تاويل دجماعت سره ده تاويلى مفرددے جمع مطابقت راغلے دے. **سوا ل** : الـعـوامـل جـمـع دعـامـل ده نـوپـدے تـعـريـف كـښې اسم دكـان اواسم دان داخل شو. **جواب:** دادے الـعـوامـل كـښې الف لام جـنـسـى دى پـدے سره جمعيت دجمعى باطليږى اومرادترينه معنى جنسى وى يعنى مبتداء هغه اسم دے چه خالى وى دجنس عامل لفظى نه.

تعبیرات مثال زیدٌ قائمٌ

| | |
|---|---|
| (۱)مبتداء. | (۱)خبر. |
| (۲)مسندالیه. | (۲)مسند. |
| (۳)محکوم علیه. | (۳)محکوم به. |
| (۴)مخبرعنه. | (۴)مخبربه. |
| (۵)موضوع. | (۵)محمول. |

**فائده** : عموماً مبتداء مفرد وی دارنګه امورمذکوره مبتداء واقع کیږی.

(۱)اسم جامد مثال : الشمس تجری. (۲)اسم مشتقی مثال : الرحمٰن علم القرآن.

(۳)ضمیرمثال هوخیر. (۴) علم،محمدٌ رسول الله.

(۵)اسم اشاره:ذالك الکتاب لاریب فیه.(٦)مرکب اضافی.ثواب الله خیر.

(۷)مرکب توصیفی :ولعبدمومن خیرمن مشرك.

(۸)جمع بتاویل المصدر:ان تصوموا خیرلکم.

(۹)فعل مؤل بالمصدر : تسمع بالمعیدخیر.(۱۰)مرکب تعدادی : اثناعشرعددٌعظیمٌ.

(۱۱)مرکب صوتی: سیبویه رجل صالحٌ.(۱۲)مرکب امتزاج :حضرموت قریة عظیمة.

**واصل المبتداء ان یکون معرفةواصل الخبران یکون نکرة .**

: اوراجح په مبتداء کښی کون دده دے معرفه اورراجح په خبرکښی کون دده دے نکره.

**حل ترکیب** : اصل المبتداء مضاف مضاف الیه مبتداء ان ناصبه مصدریه یکون فعل ناقص ضمیراسم یکون معرفت خبریکون سره داسم اوخبرنه خبردمبتداء بتاویل المصدر،دارنګه ترکیب دمابعدجملے دے.

**تشریح** : اصل په مبتداء کښی ترکیب دے ځکه اصح داموروںه په کلام دعربو کښی هغه حکم دے په امورمعلومه معینه باندے.

**دلیل ۱** - اواصل په خبرکښی دادے چه نکره به وی یوددے وجے نه چه خبرمحکوم به دے اوپه محکوم به کښی دمعرفه صلاحیت هم شته اوداصلاحیت پکښی هم شته چه نکره وی لکن نکره اصل ده دمعرفے نه ځکه وضع دالفاظوثابته ده په تنکیراوتعریف پکښی

روستو حاصلیږی په عوارضو سره.نو هرکله چه غرض اومقصودپه اصل باندے پوره کیږی چه هغه نکره ده نو حاجت پاتے نشو معرفے ته. ۲- **دلیل** دادے .چه خبرکه معرفه شی نو مبتداء به معرفه وی نو لازم به التباس دخبردصفت سره په خلاف دنکرے باندے چه پدے کښ التباس نه راځی دخبردصفت سره. **سوال :** اصل په معنی دوجوب سره وی نو ددینه دامعلومه شوه چه تنکیردمبتداء به قطعاجائزنه وی بلکه باطل به وی نو ستاقاعده منقوضه شوه پدے ترکیب چه فی الدارړجل. جواب:. دلته رجل مبتداء ده اونکره ده. **۲جواب:** اصل دلته په معنی داولی اودراجح سره دے اوداترجیح مصنف په مابعدعبارت سره هم دفع کړے دے و النکرة اذاتخصصت الخ. نو حاصل داشو چه نکره مخصصه مبتداء هم واقع کیږی دامسئله وجوبی نده چه اصل په مبتداء کښ تعریف دے. .... دارنګه معرفه کله کله خبرهم واقع کیږی لکه زیدن المنطلق الله الهنا،ادم ابونا محمدنبینا. السماء فوقنا،و الارض تحتنا.

**و النکرة اذاوصفت جازان تقع مبتداء الخ.** اودنکرے چه کله تخصیص اوشی په توصیف سره نو جائزده چه مبتداء واقع شی.

**حل ترکیب :** النکره مبتداء اذاشرطیه وصفت فعل فاعل جمله شرطیه جازفعل ان ناصبه مصدریه تقع فعل فاعل متبداء مفول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه به جمله فعلیه په تاویل دمصدرسره فاعل دجازفعل سره دفاعل نه جمله فعلیه جزادشرط شرط سره دجزانه خبردمبتداء.

**تشریح :** پدے عبارت سره هغه مواضع بیانوی چه هغه نکره وی اومبتداء واقع شوی وی لکن په شرط دتخصیص سره په یوه وجه دوجو هودتخصیص نه ځکه په تخصبص سره نکره ګرځی قریبه معرفے ته اوحکم دقرب دشی لره حکم دعین شی وی.

**وجوه تخصیص:**

(۱)تخصیص بالصفت: مثال ولعبدمومن خیرمن مشرک پدے مثال کښ عبدنکره ده اوتخصیص راغلے دے په صفت سره ځکه عبدمطلق غلام ته وائی مومن وی اوکه کافروی لکن چه کله توصیف دده راغے به مومن سره نو تخصیص پکښ پیداشویعنی قلت دشرکاپکښ راغے نوداقریبه شوه معرفے ته نودده حکم دعین معرفے دے نو ابتداء یت دده صحیح

دے.لعبدٌ موصوف مومن صفت دامبتداء خیراسم تفضیل من جارمشرك مجروردامتعلق دخیرمتعلق سره دمتعلق نه خبر.

(۲) تخصیص بعلم من المتکلم. مثال ارجل فی الدارام امرأة پدے مثال کښې رجل مبتداء اونکره ده دغه امرأه تخصیص خوددوی راغلے دے په علم دمتکلم پدے شان سره چه متکلم عالم دے پدے خبره باندے چه دارکښې احد هماموجوددے چه رجل یامرأه ده لکن تپوس دتعین کوی.

**سوال** : مبتداء یو امرلفظی دے اوعلم دمتکلم امرذهنی دے نوتخصیص به څنګه دامرلفظی په امرمعنوی سره کیږي. ۲دویم داچه داپه نسبت سره متکلم ته نکره مخصصه شوه اومخاطب ته خونه شوه. **جواب** : ددواړه سوالونونه دادے چه دلته امرذهنی موول دے په امرلفظی سره تقدیردعبارت دارنګه شوای من الامرین المعلومین الذین فی الدار.

(۳) التخصیص بوقع النکرة فی سیاق النفی مثال وما احدٌ خیرمنك. پدے مثال کښې احدمبتداء ده اونکره ده تخصیص شوے دے پدے باندے چه واقع ده په سیاق دنفی کښې نوفائده کړے دے عموم اونکره من حیث نکره وضع شوے ده دپاره دفردمبهم اودپاره دفردمنتشرمعین نودلته تخصیص په تعمیم سره شوے دے. **سوال** : په مابین دتخصیص اوتعمیم کښې منافات دے نوپه تعمیم سره څرنګه تخصیص راغلے دے؟ **جواب** : دتخصیص دپاره دوه معنے دی۱. قلت شرکاء ۲.رفع الابهام دلته تخصیص په معنی ثانی سره دے اوپه معنی درفع دابهام تعمیم کښې منافات نشته دے.

(۴) تخصیص بالصفة المقدرة مثال شراهرذاناب پدے مثال کښې شرمبتداء ده اونکره ده اوتخصیص راغلے دے په صفت مقدره سره چه هغه مستفاددے دتنوین نه دلته تنوین دتعظیم دپاره دے څنګه چه دتنکیردپاره داسے دتعظیم دپاره هم راځی.مثال کتاب انزلنا یعنی کتاب عظیم.تنوین په کتاب کښې برائے تعظیم دے.دلته په شرٌ کښې هم تنوین برائے تعظیم دے تقدیردعبارت شرًّا هرٌّ ذاناب. ۲دویمه وجه: دتخصیص په شرٌ کښې شرٌ فاعل معنوی دے ځکه دے بدل دے دضمیرداهرّنه چه هغه فاعل معنوی دے پس داترکیب چه شرٌّ اهرذاناب داپه ځائے دماهرّذاناب الاشرٌ دے.

**سوال** : پـه مـاهـرذانـاب کـښې ادوات دحـصـراوتـخصیص موجوددی اوپه شراهرذاناب کښې ادوات دحصر اوتخصیص نشته دے نودلته تخصیص دکوم ځائے نه حاصل دے؟

**جواب** : دلتـه تـقدیم دماحقه التاخیرراغلے دے اودافائده کوی حصر اواختصاص لره ځکه شـراهرذانـاب پـه اصـل کـښې اهـرذانـاب شرٌ وو شرٌمـواخـرووخـو مـخکښې شـونـوتخصیص ئے پیداکړو.

**سوال** : شرٌ بدل اوفاعل معنوی دے نوفاعل ورته فقط ولے نه وائی. **جواب** : بیالازمیږی تقدیم دفاعـل پـه فعل باندے اوداناجزئزدے. **سوال**: تـقدیم دبـدل پـه مبدل منه باندے هم جائزندے اوبل نـقـصان دلته داهم دے چه تقدیم دبدل په عامل مبدل منه راغلے دے. **جواب**: دلتـه بدل دبدلیت نه قـطع شـوے دے نـواوس دابدل اومبدل منه پاتے نشو. **سوال** : شرٌ دے فـاعـل شی اوقطع دے شی دفاعلیت نه. **جواب** : بیابه فعل راشی بغیردفاعل نه اوهرچه مبدل منه بغیردبدل نه راتلے شی.

پس زده کـړه داخبـره چـه اهراردکلب کله په نباح معتادسره وی اوکله په نباح غیرمتعادسره وی بیـا نبـاح معتادپه دوه قسمه دے ۱ .نباح بالخیر۲ .نباح بالشر اونباح غیرمعتادصرف یوقسم دے چه هغه نباح شردے.

**سوال**: تـخـصیص دلته په نباح معتادکښې صحیح دے ځکه هغه په دوه قسمه دے پس چه یوقسم په دوه ووقسمونوکښې خاص شی داصحیح ده لکن تخصیص په نباح غیرمعتادکښې صحیح ندے ځکه هلته صرف یوقسم دے نوپه یوقسم کښې تخصیص څنگه راځی؟

**جواب** : دلتـه تـخصیص په نباح غیرمعتادکښې هم صحیح دے ځکه شرپه دوه قسمه دے ۱ .حـقیر۲ .عظیم نودشرتخصیص راغلے دے په شرعظیم کښې نه په حقیرکښې نوعبارت داسے شو شرٌعظیم لاحقیرًا اهرّذاناب.

**(۵) تخصیص بتقدیم ماحقه التاخیر.** مثـال فـی الـداررجـلٌ دلتـه رجل مبتداء ده اونکره ده اوتـخـصیص راغـلے دے په ماحقه التاخیرسره دافائده کوی حصراواختصاص.پس هرکله چه فـی الداراووئیلے شی نوددینه دامعلومه شوه چه ددینه پس به هغه شے ذکرکیږی چه صحیح وی کـون دهـغـه محکوم علیه اوصحیح وی استقرارد هغه په دارکښې گویادارجل موصوف دے په صـحـت دحـکـم یـه ده بـانـدے پـه استـقـرارپه دارکښې. خارج شوترینه هغه رجل مجنون چه

استقرار په دارکښې نه لري.

(٦) تـخـصـيـص بـالـنـسبـة و الاسـنـاد الى المتكلم مثال سلامٌ عليك : دلتـه سـلام مبتداء اونکره ده تـخـصـيـص راغـلـے دے پـه نسبت اواسنـادسـره متـكـلـم تـه داترکیب اصل کښې وو سلمت سلاماعليك سلاما مفعول مطلق دے اوتاكيددے دپاره دسلمت يعنى دسلاما اول اوموكد دے اومـوكـد يـو حـكـم وى پس فاعل حذف شو نوسلاماعليك پاتـے شو بیاعدول دنصب نه رفع ته اوکړے شودپاره دقصددوام اواستمرارنوسلامٌعليك شو. **سوال** : جـمـلـه اسميه به وى اودلالت بـه پـه دوام اواستمرارنكوى لكه زيدقائم. **جواب** : مـطـلـقه جمله اسميه مرادځمونږه نده بلکه هـغـه جـمـلـه اسـمیه چه معدوله وى دجملے فعليه نه. ددے ځاے پورے کتاب کښې مصنف بطورنمونه ذکرکړى دى ددينه علاوه نورامثله اومواضع هم دى چه نکره مخصصه مبتداء واقع وى مثلا .

(٧) تـخـصـيـص بالاضافت مثـال طالب احسان واقف دلته طالب مبتداء ده نکره تخصيص شوے دے په اضافت سره احسانٍ تـه نـوګرځيدلے دے طالب معرفه ابتدائيت صحيح شوے دے معنى ئے داده چه صرف داحسان طالب دے نه دبل شى.

(٨) تخصيص بالعمل فيمابعد. مثال: رغبةٌ فى الخير خيرٌ دلته رغبةٌ متعلق دے اوعمل کړے دے فـى الـخـيـر كـښې چه متعلق دے نوابتدائيت صحيح دے تخصيص پکښې راغلے دے په اعتباردعمل سره. (٩) تخصيص استعمال النكرةفى الدعاء :مثال سلام على الياسين.

دلتـه سـلام مبتـداء ده اونـكـره ده تـخـصـيـص شوے دے چه داصرف ددعاء دپاره مستعمل دے ددے وجينه ابتدائيت صحيح دے.

(١٠) تـخـصـيـص بان تكون النكرة مصغرا.مثال :رجيل عندى دلته درجيل نه مرادعام رجل ندے بلكه وركوټے سړے مراددے ددے تخصيص په وجه باندے ابتدائيت صحيح دے.

(١١) تخصيص وقوع النكرةبعد لولا. مثال لولا اصطبارٌ.دلته اصطبار مبتداء ده نکره پس دلولانه واقع ده ابتدائيت صحيح دے ځكه ددے معنى داده كچرے صبرنه وے نو هيڅ څوك به كامياب نه وو.

**وان اكـان احـد الاسـمـيـن مـعـرفة و الاخـر نكرة فاجعل المعرفة مبتداء و النكرة خبراالخ.** پـس كـچـرے يـو داسـمـينـونه معرفه وه اوبل نکره وه نو معرفه مبتداء وګرځوه اونکره

خبروګرځوه. **حل ترکیب** : ان شرطیه کان فعل ناقص احد الاسمین معرفه معطوف علیه واو عاطفه الاخرنکره معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه فعل شرط فاء جزائیه اجعل فعل فاعل المعرفه مفعول اول مبتداء مفعول ثانی دامجموعه معطوف علیه و النکره خبرادامجموعه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعولین دفعل فعل سره دفاعل اومفعولینو نه جزاکیږی دشرط.

**تشریح** : زده کړه داخبره چه مصنف دلته دوه قاعدے بیانوی .۱. اوله قاعده دوه اسمین یوځاے کښ راغلل یواسم معرفه وه اوبل نکره وه نومعرفه به مبتداء وی اونکره به خبروی ځکه داجائزنده چه نکره مبتداء شی سره دوجوددمعرفه نه داقاعده مطلقه ده په هرمقام کښ جاری کیږی. ۲-**دویمه قاعده**: داده کچرے دوه اسمین راشی دواړه معرفے وی نو احدهمابه مبتداء اوثانی به خبرګرځولے شی لکن داقاعده مقیده ده په قیودوثلاثو سره:

(۱) دایوه معرفه به مفسره نه وی په صیغه داسم مفعول سره دویمه معرفه به مفسِره نه وی په صیغه داسم فاعل سره ورنه بیااداختیارنشته دے بلکه مفسره معرفه به مبتداء وی اومفسِره معرفه به خبروی. (۲) داسے به نه وی چه یواُسم جامدوی اوبل اسم مشتقی وی بلکه جامد به مبتداء اومشتقی به خبرمثال ددے قاعدے زیدن المنطلق زیدمعرفه بالعلم جامدمبتداء المنطلق معرفه باللام مشتقی خبر.

(۳) دواړه به اسمین متساویین وی په اعتباردابتدائیت سره لکن یوددوی نه به اعرف دمعارفو نه وی کچرے یواعرف وومثلایو ضمیروونودابتدائیت ذپاره ضمیرمتعین دے ځکه دااعرف دمعارفودے مثال:




**قاعده** :که دوه اسمین معرفه وو یواسم مبتداشو اوبل اسم خبرشو نو که په مبتداء قرینه وه اوپه خبرقرینه وه نوتقدیم دمبتداء په خبرواجب ندے بلکه مستحسن دے مثال بنونابنوابنائنابنو خبردے اوبنوابنائنامبتداء ده پدے مثال کښ تقدیم دخبراوتاخیردمبتداء هم جائزدے قرینه وریاندے شته دے چه کله بنوابنائنامبتداء شی اوبنوناخبرشی نومعنی صحیح

کیـږی ځـکـه ابـنـاء الابـنـاء نـازولـے شي پـه منزلـه دابـنـاء بـانـدے اوکچے بنونـامبتداء شي اوبنوابنائناخبرشي نو معنی نه صحیح کیږی ځکه معنی به داشي چه ابناء نازولے دی په منزله دابـنـاء الابـنـاء اوحـال دادے چه داسـے نده ځکه ابن ته څوك ابن الابن نه وائی اوابن الابن ته ابن وئـیـلـی شي اوددے قبیـلـے نـه داقول هم دے ابو حنیفه ابویوسف ابویوسف مبتداء ابو حنیفه خبر دے قـریـنـه داده چـه ابـو حنیفـه مشبـه بـه دے اومشبـه بـه خبروی اوابویوسف مبتداء ده اودامشبـه دے اومشبـه پـه کـلام کـښ مبتـداء وی.اوکـچـرے قرینه په تقدیم دمبتداء نه وه اوپه تـاخیـردخبربـانـدے نـوتـقـدیـم دمبتـداء واجـب مـثـال الله الهـناالله مبتداء مقدم وجوبا الهنا خبر موخروجوبا اوبالعکس.

**وقد یکون الخبر جملة اسمیة نحوزیدٌ ابوہ قائمٌ الخ.**

اوکله خبرجمله اسمیه وی لکه زیدابوه قائم.

**حل ترکیب** : واو عـاطـفـه قد حرف تحقیق برائـے تقلیل یکون فعل ناقص ا لخبراسم جمله مـوصـوف اسـمیـه مـعـطـوف عـلیـه فـعـلیـه شـرط ظـرفیه معطوف سره دمعطوفاتو نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبریکون.

**تشریح** : خبرمفردهم واقع کیږی اودابه اصل وی ځکه اصل په خبرکښ افراددے اوکله کله جمع هـم واقـع کیـږی اودابـه پـه بـعض اوقات کښ وی. اومفرد چه واقع کیږی دابه یاخالص مفردوی لکه قائم شـویـامـرکـب اضـافـی هـذاغـلام رجل اویامرکب توصیفی وی مثال الانسان حیوان ناطقٌ. اوخبرچه جمـلـه واقـع کیـږی دابیـاعامه ده یابه جمله اسمیه وی مثال زیدٌ ابوه قائم. زیدمبتداء اول ابوه مضاف ه مـضـاف الیـه مـضـاف سره دمـضـاف الیـه نـه مبتـداء ثـانـی قـائـم خبرمبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریـه.بیـاداجـمله خبردمبتداء اولـے. اویابه داجمله فعلیه وی مثال زیدقام ابوه زید مبتداء قام فعل ابوه مـضـاف مـضـاف الیه فاعل دفعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه خبردمبتداء.اویاجمله شرطیه وی مثال زیدٌ ان جاء نی فاکرمته زیدمبتداء ان جاء نی فاکرمته خبر.اویابه داجمله ظرفیه وی دابه بیاخالی نـه وی یـابـه ظـرف زمـان وی اویـابـه ظـرف مـکـان وی اویـابـه قـائـم مـقـام ظرف وی مثال زید خلفك په اعتباردمتعلق سره چه ثبت یااستقر دے جمله ظرفیه خبردمبتداء.

پـس زده کـړه چـه مـصـنف ذکـردجملـے خبریه اوکړواودجملـے انشائیه ذکرئـے اونکړوپدے

مسئـلـه کـښې دوه مذهبه دي: (١) بعض نحات وائي چه جمله انشائيه خبرنه واقع کيږي بلکه تاويل به ترينه په خبرسره کيدے شي. (٢)- بعض نحات وائي چه جمله انشائيه بدون التاويل خبـر واقـع کـيـږي مثال داقول دالله‌تعالي شوبل انتم لامرحبابکم دلتـه انتم مبتداء ده اومرحبا اسم دلالـنـفي الجنس دے بلکه په اعتبارد متعلق سره خبردلا دے اوداجمله انشائيه ده ځکه دادعاده اودعـادقبيلـے دانشـاء نه وي.بل مثال نعم الرجل زيدٌپه يوترکيب سره چه نعم الرجل خبرمقدم اوزيـدمبتـداء موخره ده اونعم الرجل انشاء ده دمصنف په نزدباندے هم دامذهب غوره دے چه جـمـلـه انشـائيـه خبـرواقع کيږي بدون التاويل. **لکن مذهب اول** عـلامـه ابـن الانباري اوبعض کـوفيـان پـدے کـښې تاويل کوي اي بل انتم مقول في حقکم لامرحبا بکم.اومقول في حقه نعم الرجل زيدٌ.اوپه جمله شرطيه کښې اختلاف دے په مابين دمذاهب ثلاثوکښې : (١) مـذهـب دمـصـنـف چـه جـمـلـه انشـائيـه عبـارت د شـرط نـه فـقـط دا خبردے دمبتداء اوجزاء لره دخل په خبرکښې نشته.

(٢) مذهب دبعضي نحاتودے چه دامجوعه شرط اوجزاء خبردے دمبتداء.

(٣) مذهب دبعضي نحاتودے چه جزاء فقط خبردمبتداء دے( الهاميه)

(٤) مـذهـب دبـعـضـي نـحاتودے چه لکه صاحب درايه چه جمله شرطيه قطعاخبرنه واقع کيـږي د مبتـداء لـکـه امـر اونهي چه خبرنه واقع کيږي. **سوال** : تـقـسيـم دجـمـلـے اقسام اربعوته صحيح ندے : (١)جمله اسميه. (٢) جمله فعليه. (٣) جمله ظرفيه. (٤) جمله شرطيه. ځـکـه جـمـلـه ظـرفيه اوجمله شرطيه داخل دي په جمله فعليه کښې . **جواب** : اګـرچـه پـه جمله فـعـلـيه کښې دوي داخل دي حقيقتا لـکـن ددوي تـرمينځه تغايردے اعتباري تغايردجملـے شرطيه دفـعـلـيـه نـه دادے چـه جـمـلـه شـرطيـه باندے حرف شرط داخل وي اوجمله فعليه داسے نده. اوتغايردظرفيه دجملـے فعليه نه دادے چه داجوړه وي دظرف نه نوداخلو راقسام ځکه جوړيږي.

و الظرف متعلق بجملة عند الاکثروهي استقرالخ. اوظرف چه خبرواقع شي نودهغه تعلق وي دفعل سره په نزدداکثرنحاتو چه هغه استقردے مثلا .

**حل ترکيب** : الـظـرف مبتـداء متعلق اسم فاعل ضميرمستتربجمله ظرف لغومتعلق په متعلق پورے عند الاکثرمفعول فيه داجمله خبردمبتداء هي مبتداء چه استقردے بتاويل هذا

اللفظ خبرلالنفی الجنس بداسم لافی الجمله ظرف لغومتعلق بدمن جارمجرورموصوف یعود الی المبتداء جمله فعلیه صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مجرورجارسره دمجرورنه ظرف مستقرخبرلالنفی الجنس کاف مثلیه جارالهاء موصوف فی جارمامرموصول صله مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق الکائن دالهاء صفت شوموصوف سره دصفت نه مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق ثابت خبرمبتداء محذوف چه مثاله دے.

**تشریح** : ظرف هم خبرواقع کیږی برابره خبره ده چه ظرف زمان وی اوظرف مکان وی اوکه جارمجروروی مخکښې ذکردهغه خبر ووچه مفرداویاجمله یقیناوی اوس هغه خبریانوی چه مبهم وی چه مفرد دے اوکه جمله ده پس پدے کښې مذهبین دی:(۱).بصریان(۲). کوفیان.په مذهب د **بصریانو**بانده دابه متعلق وی په فعل پوری اودامذهب داکثرنحاتودے .اوپه مذهب د **کوفیانو**بانده دابه متعلق وی په اسم پوری ظرف به په فعل پوری متعلق وی ددی دپاره وجوه ثلاثه دی :(۱)یودلیل نقلی دے. (۲) بل دلیل عقلی دے.

**دلیل نقلی** دادے چه فعل وضع شوے دے دپاره دعمل نواصل په عمل کښې اوګرځیدو دلیل عقلی دادے چه فعل ډیرمحتاج دے اوکوم شے چه ډیرمحتاج وی نو هغه ډیرموثروی نوفعل ډیرموثرشونواصل شوپه عمل کښې. (۳) **دلیل عقلی** دادے چه فعل کښې نسبت دے اونسبت فاعل غواړی اوفاعل محتاج دے علامی ته اوعلامه دده عمل دفعل دے.

کوفیان وائی چه متعلق دظرف به اسم وی ځکه جارمجرورپه اعتباردمتعلق سره واقع دے په مقام دخبرکښې اواصل په خبرکښې افراددے اودانه حاصلیږی مګرپه اسم سره.

پس هرکله چه په مذهب دبصریان متعلق دظرف فعل شونودافعل به بیاعموماداافعال عامه نه وی.اوافعال عامه خلوردی چه ذکردی په دے شعرکښې.

*افعال عموم نزدارباب عقول کون است وثبوت است وجوداست وحصول*

ددینه علاوه په افعال خاصه پورے کله کله تعلق راتلے شی په قرینه دمقام سره پس په نزدبصریانویابه په کان پورے متعلق وی ظرف یاپه وجدپوری یاپه ثبت پوری یاپه حصل پوری.اودکوفیانوپه نزدیابه په کائن پوری متعلق وی یاپه موجودیاپه ثابت اویاحاصل پوری.

**ولابدفی الجملةمن ضمیریعود الی المبتداء.**

ترجمه: اولابدی ده په جمله کښې دضميرنه چه راجع شي مبتداء ته.

**تشريح**: هرکله چه جمله خبرواقع شي نوپدے جمله کښې به عائدوی دربط دپاره چه راجع به وی مبتداء ته ځکه جمله مستقله بنفسهاده اودخبرربط وی دمبتداء سره نولهذادربط دپاره به په جمله خبريه کښې عائدضروری وی اوداعائدبه ضميروی اوعوائدڅلوردی: (١) ضميرلکه په امثله مذکوره کښې. (٢) الف لام لکه نعم الرجل زيدکښې الف لام. (٣) وضع داسم ظاهرپه مقام دضميرکښې لکه الحاقه ما الحاقه . (۴) خبرتفسيرمبتداء لکه قل هوالله. دلته مصنف ضميراوويل ځکه يوضميرخوزيات مشهوردے په عوائدوکښې دويم ضميرعمده دے بل ضميرعائدقويه دے اودلته عائدقويه پکاردے ځکه دجملے څه تعلق دمبتداء سره نشته دے.

**ويجوزحذفه عندوجودقرينة نحو السمن منوان بدرهم و البر الكرُّبستين درهما.**

ترجمه: اوجائزدے حذف دعائدچه قرينه وی.

**حل ترکيب**: يجوزفعل حذفه فاعل عندوجودقرينه ظرف مفعول فيه دفعل.

**تشريح**: پدے عبارت سره جواب دے دسوال مقدره چه ته خووائې چه خبرجمله واقع شي نولابدمن عائدستاقاعده منقوضه شوه په البر الكربستين درهمابانده يا السمن منوان بدرهم بانده دلته جمله خبرواقع دے اوعائدنشته پکښې. ... نومصنف جواب ورکړوپدے عبارت سره ويجوزحذفه الخ.دلته عائدمحذوف دے چه منه دے پس تقديرداسے شو البر الكرمنه بستين درهمااو السمن منوان بدرهم دلته قرينه دبائع اودمشتری خبرے دی.

**وقديتقدم الخبرعلى المبتداء نحوفي الدار زيد الخ** **حل ترکيب**: قدحرف تحقيق يتقدم فعل مجهول الخبرنائب فاعل على المبتداء ظرف لغوه متعلق يتقدم دامجموعه جمله فعليه. **تشريح**: په قدکښې اشاره ده تقليل ته چه اصل په خبرکښې تاخيردے اوکله کله به مقدم کيدے شي لکن تقديم په دوه قسمه دے جائزا واجباجائزابه هله وی تقديم دخبرپه مبتداء بانده چه کله مبتداء معرفه وی مثال في الدار زيد اوواجبابه هله وی تقديم دخبرپه مبتداباندے چه کله مبتدانکره وی مثال في الداررجل.

**مواضع دتقديم د مبتداء په خبروجوباً.**

(١) مبتداء مشتمل وی په داسے اسم باندے چه هغه تقاضی دصدارت په کلام کوی مثال

مـن ابـوك. (۲) چـه مبتـداء اوخبـرمـعـرفـتـین وی مثـال لکه زیـدن المنطلق. (۳) چه په تخصیص کښ دواړه برابروی لکه افضل منك افضل منی. (۴) چه خبردمبتداء فعل وی لکه زیدقام شو.

(۵) چـه مبتـداء خبـرجمله فعلیه وی لکه السیارة تجری. (٦) چه دمبتداء تخصیص شوے وی په خبرپورے په انمایاپه مااولاسره مثال انما العلم نور.ما المسلم الامصل.

(۷) چـه مبتـداء داسـے کـلـمـه وی چه راوړل دهغـے په کلام کښ ضروری وی اوهغه شپږ کلمی دی: (۱) اسماء استفهام وشرط مثال من ابوك من یجتهد یفز. (۲) ماتعجبیه.مااحسن زیداً ای شیء عظیم مبتداء احسن زیدخبر. (۳) کم خبریه لکه کم من رجل لقیته.

(۴)ضمیر الشان یاضمیرقصه لکه قل هوالله احد. هی الدنیاتعطی وتمنع.

(۵) لام ابتدائیه لمصربلدعظیم.

(٦) اسم موصول چه متضمن وی معنی دشرط لره لکه الذی یجتهدفله انعام.

**مواضع تقدیم الخبر علی المبتداء وجوبا .**

(۱) خبرداسـے اسم وی تقاضی کوی دصدارت.مثال این زیدٌ.

(۲) چه خبرمصحح وی دمبتداء.مثال فی الداررجل.

(۳) په مبتداء کښ ضمیروی اوراجع وی جزدخبرته لکه علی التمرة مثلهازبد.

(۴) چه ان سره داسم اوخبرنه مبتداء وی لکه عندی انك قائمٌ.

(۵) کـلـه چـه خبـریـه انـمـاسره یاما اوالاسره خاص شوے وی په مبتداء سره مثال انما القائد محمد.ما الخطیب الاعلیٌ.

**ویجوزللمبتدأ الواحداخبار کثیرة .** ترجمه : اوجائزدی دیوے مبتداء دپاره خبرونه ډیر.

**حل ترکیب** : یـجـوزفـعـل لـلـمبتداء الواحدظرف لغومتعلق یجوزاخبارکثیره موصوف صفت فاعل یجوز.

**تشریح** : تـعـدد دخبـریـه دوه قـسـمـه دے (۱)تـعـددلـفـظاومعناً (۲)-تعدد لفظا فقط.مثال دتـعـددلـفـظـی لـکـه هـذاحـلـو حامض دلته تعدددخبرلفظی دے اومعنا ندے ځکه حلو حامض عبارت دے دهـذاامرنه یعنی دامرتبه ده په مابین دحموضت اوحلاوت کښ(خوګ لوړے ورته وائـی)کـلـه چه خواړه اوتراوه یوځاے شی پدے صورت کښ په حرف عاطف سره خبرهم راځی

چه هذاحلووحامض اوترك اولى دے دذكردحرف عاطف نه اومثال دتعددلفظى اومعنوى لكه زيدعالم فاضل عاقل پدے صورت كښ هم دواړه جائزدى ترك اوراوړل دحرف عاطف اولى دى دترك نه. **سوال** : مصنف مثال دترك حرف عاطف ولے ذكر كړو؟ **جواب** : هغه مثال ظاهراويه كوم كښ چه حرف عاطف نه وو په هغه كښ خفاء وه نوپدے وجه داشان ذكر اوكړو.

**جواب؟** : دادے دامثال راوړے دے دپاره ددفع دتوهم چه مبتداء كله متعددوى نو هلته حرف عاطف راوړل واجب دى نوچه چرته خبرمتعددوى نو هلته هم عاطف راوړل واجب وى نومصنف دفع دتوهم اوكړه نوځكه ئے دامثال ذكركړو. چه حرف عاطف راوړل اونه راوړل دواړه جائزدى اوشان دخبرپشان دمبتداء نه دے په ذكردحرف عاطف كښ.

**دليل** : ديوے مبتداء دپاره اخباركثيره جائزدى ځكه داخبر حكم وى په مبتداء باندے لكه څنګه چه په مبتداباندے يوحكم كول جائزوى هم دغه رنګه ورباندے ډيرحكمونه هم جائزدى پدے شرط باندے چه په مابين ددے اخباركښ تضادنه وى په اعتباردمعنى سره داسے نشى وئيلے چه زيدعالم وجاهل يازيدعاقل ومجنونٌ.






**بعض قواعدمتعلق بالمبتداء و الخبر.**

**قاعده** (١) كله چه په شروع دكلام كښ دمعرفه نه روستو جمله اسيمه يافعليه وى نودغه معرفه به مبتداء وى اومابعدجمله به خبروى مثال هواالله احد.الله يهدى من يشاء.

**قاعده** (٢) كه په شروع دكلام كښ ضميرمنفصل راغے نو هغه به مبتداء وى مثال هى اسم وفعل وحرف.يا هو الاول والاخر.

**قاعده** (٣) مبتداء به اكثرجامدوى اوخبربه مشتقى وى زيدقائمٌ.

**قاعده** (۴) كه دمن شرطيه نه بعدفعل وولازما نومن به مبتداء وائى اومابعدبه خبر.مثال من جاء بالحسنة فله عشر امثالها. **قاعده** (۵) دلو لانه بعديعنى مدخول دده به مبتداء وى لولاعلىٌ لهلك عمر.علىٌ مبتداء اوموجودخبرمحذوف دے اى لولاعلىٌ موجودلهلك عمر.

**قاعده** (٦) مخصوص بالمدح اومخصوص بالذم به په يوتركيب سره هم مبتداء واقعْ كيږى.مثال نعم العبد اى هو. **قاعده** (٧) دكيف نه بعدواقع اسم مبتداء موخروى اوكيف به خبرمقدم وى مثال انى لهم الذكرىٰ.اى كيف لهم الذكرىٰ.

قاعده (۸) ضمیرفصل هم کله کله مبتداء واقع کیږی مثال اولئك هم المفلحون.

قاعده (۹) مبتـداء بـه هـمیشـه اسم واقـع کیـږی اوخبـرکـلـه ظرف اوکله فعل یعنی جمله وغیره وغیره. قاعده (۱۰) ظرف اوجارمجرورمبتداء نه واقع کیږی اوکچرے واقع شی نو حرف جربه زائدوی.مثال هل من خالق غیرالله. قاعده (۱۱)مبتداء که جمع واقع شوے وه نو موول به وی پـه تـاویـل دمـصـدرسـره مثـال سـواء علیهم خبرائنذرتهم ام لم تنذرهم مبتدا مؤول په تاویل دمصدرشره ای انذارك وعدم انذارك. قاعده (۱۲) اسـم اشـاره هم عائدواقع کیږی مثال ولباس التقوی ذلك خیر. قاعده (۱۳) کـه ضـمیـرشان مبتداء واقع شونوتقدیم به دده واجب وی ځکه چـه صدارت دده فوت نشی. قاعده (۱۴) کـه مبتـداء روستـودامـانه واقع شوه نوپه خبرباندے دخول دفاء واجب به وی مثال واما القاسطون فکانو الجهنم حطبا.

## مقامات حذف المبتداء.

قاعده[۱۵] (۱) پـه مـقـولـه دقـال کـښ مبتـداء مـحذوف وی مثال قال اساطیرالاولین ای هی اساطیر الاولین.(۲)دفاء جزائیه نه بعدهم حذف دمبتدا جائزدے مثال کن فیکون ای فهویکن .

(۳) اسم صفت چه په اول دکلام کښ راشی اوروستو ترینه اسم ذات نه وی نو مبتدابه حذف وی مثال بدیع السمٰوات ای هو.صم بکم عمیٌ ای هوصم الخ۔

(۴) داستـفهـام په جواب کښ مبتداء حذف وی مثال وماادراك ماالحطمه نارالله الموقده ای هی نارالله. (۵)هـغـه مـصدرچه قائم مقام دفعل وی نو هغه به خبروی مبتداء به حذف وی مثال صبرٌجمیل ای صبری صبرجمیل. (٦) خبرچه کله دلالت په قسم کوی نو هلته به مبتداء حذف وی مثـال فـی زمتـی لافعلن کذاای فی ذمتی عهدٌ.(۷)تفصیـل د اجـمـال کښ مبتداء حذف وی مثال هی ثلاثه اقسام اسم وفعل وحرف ای احد هااسم وثانیهافعل وثالثهاحرف.

## مقامات حذف الخبر

قاعده[٦١](۱) کـلـه چـه ظـرف اوجارمجروردمبتداء نه روستـوراشی نو هلته به خبرمحذوف وی مثـال زیـدفـی الـدارای ثـابت فـی الـدار. (۲) دلـولااولـومانه بعدخبرمحذوف وی لولاعلی لهلك عمرای لولاعلی موجود. (۳) پـه جـواب دقسـم کـښ مثـال لـعـمـرك لافعلن کذا ای لعمرك قسمی.(۴)دلا لنفی الجنس نه بعدخبراکثرحذف وی مثال لابأس ای لابأس علیك وغیره وغیره.

**قاعده**[۱۷] **نواسخ المبتداء.**

ددے دری اقسـام دی: (۱)افـعـال لـکـه افـعـال نـاقصه اوافعال مقاربه. (۲) اسماء لکه مشتقات دافعال ناقصه نه. (۳) حروف مثلا حروف مشبه بالفعل ماولا.لالفنی الجنس.

**قاعده** [۱۸]عـمـومـا خبرمـفـردوی اودارنـګـه امـورمـذکـوره خبرواقع کیږی کله چه مـفـردوی.(۱) اسـم جـامـد هـذاغلام. (۲) اسم مشـتقی الله خالقٌ. (۳) اسم ظرف الله مـعنا.(۴) جارمـجـرور الحمدلله. (۵)مصدر هـذا ذکرٌ (٦) اسـم مـوصـول اولائك الذين صدقوا.(۷)علم هوالله(۸) اسم اشاره انتم هٰؤلاء. (۹) مرکب اضافی محمدرسول الله. (۱۰)مرکب توصیفی هوقران مجید. (۱۱)مرکب صوتی سیـد الـنـحـویـن سیبویه.(۱۲)مرکب تعدادی طلاب المدرسه خمسه عشر(۱۳) مرکب امتزاجی قریتنا بعلبك.

**قاعده** [۱۹] کـلـه چـه مبتـداء متـضـمـن شـی معنی دشرط لره نوددے په خبرباندے فاء جـزائیه داخلیږی لکن ددے دپاره شرائط دی دافاء کله جائزوی اوکله واجب وی اوکله ممتنع وی ددے تفصیل دنقشـے مذکوره نه معلوم کړئ.جزاء دشرط اکثره جمله وی.




**واعلم ان لهم قسما آخرمن المبتداء ليس مسند اليه الخ.:.**

ترجمه : اوپوهه شه چه ددے نحاتوبل قسم دمبتدا‌ء دے چه مسند اليه به نه وى.

**حل تركيب** : اعلم فعل فاعل ان حرف از حروف مشبه بالفعل لهم جارمجرورظرف مستقرمتعلق ثابت خبرمقدم قسماموصوف صفت اول من المبتداء جارمجرورمتعلق

**متعلق کائناصفت ثانی لیس فعل ازافعال ناقصه الخ.**

**تشریح:** هرکله چه فارغ شومصنف دقسم اول دمبتداء نه نوشروع ئے اوکړله په قسم ثانی دمبتـداء کښې نووے ونیل دارنگه واعلم ان لهم الخ.ددے قسم دمبتداء دپاره یوڅوقسم شرائط دی: (۱) اسم صـفـتـی بـه وی.(۲) رافـع بـه وی اسـم ظـاهـرلره. (۳) واقع به وی پـس دحرف نفی اوحرف استفهام نه. (۴) مسندبه وی نه مسند الیه.

**سوال:** ستاقاعده منقوضه شوه پدے ترکیب باندے اقریشی زیدٌدادقسم ثانی دمبتداء نه دے سره ددے نه چه اسم صفتی ندے.

**جواب:** اسـم صـفـتـی کښې تـعـمـیـم دے حقیقی وی لکه په امثله مذکوره کښې شواوکه حکمی تاویلی وی دلته اقریشی اسم تاویلی حکمی دے.

ځکه ددے تـاویـل پـه مـنسـوب سره کیدے شی لکه قاعده مشهوره ده. **سوال:** ستـاقاعده مـنـقـوضـه ده پـه اراغـب انت باندے دلته رافع اسم ظاهرلره ندے ځکه داراغب نه وروستوانت واقع دے. جواب: مراداسم ظاهرنه دادے چه ضمیرمستتربه نه وی اوضمیربارزپکښې داخل دے ځـکـه ضمیربارزحکمااسم ظاهردے.مثال ماقائم الزیدان واقائم الزیدان.ماحرف نفی اقائم اسم صـفـتی مبتداء مسندبه الزیدان فاعل قائم مقام خبردغه شان مثال ثانی دے. **سوال:** قائم دے خبرمـقـدم شی او الـزیـدان دے مبتداء موخرشی دقسم اول دمبتداء نه دے شی. **جواب:** پـدے تـرکـیـب سره مـطـابقت دضمیراودمرجع نه راځی ځکه ضمیردمفردبه تثنیه ته راجع وی اودامـمتنع دے. **فائده:** هـرکـلـه چـه صیـغـه دصـفـت پس دحرف نفی اواستفهام نه واقع شی نوپدے کښې دری صورتونه دی: (۱) چه صفت دمابعدبه داسم ظاهرسره مطابق نه وی.(۱) اسم ظـاهـربـه تـثـنـیـه وی.(۲) اویاجمع وی اوصفت مفردوی مثال ماقائم الزیدان ماقائم الزیدون حکم ددے صـورت دادے چـه صـفـت مبتـداء مـسـنـدبـه اواسـم ظـاهـرفاعل سدمسدخبرعلی سبیل الوجوب.

(۲) صـورت صـفـت هم مفرداواسم ظاهرهم مفردمثال اقائم زید ماقائم زیدٌ حکم ددے صورت پـدے کـښې دوه تـرکیبه جائزدی(۱).اسم صفتی مبتداء مسندبه اواسم ظاهرفاعل سدمسدخبر.

(۲)- اقائم خبرمقدم اوزیدمبتداء موخر.

(٣) دريـم صـورت:صـفـت اول اواسـم ظـاهـردواړه متـعـلـق وی تشـنـيـتا اوجمعامثال اقـائـمـان الـزيـدان مـاقـائـمـون الـزيـدون.حـكـم ددے صورت پدے كښى پوتركيب دے اقائمان ماقائمون خبرمقدم او الزيدان اوالزيدون مبتداموخرعلى سبيل الوجوب.

## التمرين لبحث المبتداء و الخبر

وان تصوموا خيرلكم، قـل هوالله احد،

وكـان لـه ثـمـرفـقـال لصاحبه وهويحاوره الرجال قوامون على النساء،

اناا كثرمنك مالاواعزنفرا.

ولكم فى رسول الله اسوة حسنة هو الرحمٰن الرحيم.

وهو الغفور الودودذو العرش المجيدفعال لمايريد اولئك الذين صدقوا

هااولاء بناتى هن اطهرلكم كتاب انزلناه.

ذالك الكتاب لاريب فيه محمدرسول الله.

مااتاكم الرسول فخذوه ومانهاكم عنه فانتهوا.

الحمدلله اراغب انت عن الهتى ياابراهيم.

صبرجميل من جاء بالحسنة فله عشر امثالها

من يبتغ غير الاسلام دينافلن يقبل منه.

**تـركيب قـل هوالله احد** : قـل فـعـل امـرو الـفـاعـل ضـمـيـرمستـتـرتقديره انت يامحمد هـوضـمـيـرمـفـصـل مبـنـى عـلـى الـفـتـح فـى مـحـل رفـع مبتداء اللهٰ خبـرمـرفـوع وعلامتـه الـضـمـه.احـدخبـرلـمبتـداء محذوف تقديره اى هو احد.اوالله احدجمله اسميه مركبه من مبتداء وٌخبرفى محل رفع خبرللمبتداء هو.

**فصل** خبران و اخواتها......ويسمى خبر انّ.

**حل تركيب** : خبرمـضـاف انّ مـعـطـوف عـليه واخواتهامعطوف دامجو معه مضاف اليه دمـضـاف مبتـداء واوزائـده هـى انّ وكـانّ الـخ جـمـلـه اسـميـه خبريـه خبردمبتداء هذا الحروف مـوصـوف صـفـت مبتـداء تـدخـل عـلـى الـمبتـداء و الـخبـرجـمـلـه فعليـه خبرتنصب فعل هى ضميرفاعل فعل المبتداء مفعول به ترفع الخبرعطف دے په تنصب المبتداء باندے ويسمى

خبران عطف دے په یسمی اسم انّ باندے.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دمبتداء اوخبرنه نوشروع ئے اوکړه په بیان دقسم خاص دمرفوعاتو باندے چه خبردحروف مشبه بالفعل دے.عمل دحروف مشبه بالفعل دادے چه اسم لره نصب ورکوی اوخبرلره رفع ورکوی.

حروف مشبه بالفعل مشابهت دفعل سره په څلورو څیزونو کښې دے :

(۱) صیغةً لکه انَّ پشان دفرَّ. (۲) صورةً لکه ثلاثیت اورباعیت کښې اِنّ ،اواَنّ، کَاَنّ، اولیت ،لکن ، ثلاثی دی اولعل رباعی دے. (۳)معناً اِنَّ واَنّ بمعنی حققت لکنَّ بمعنی استدرکت لعل بمعنی ترجیت لیت بمعنی تمنیت کَاَنَّ بمعنی تشبهت. (۴)عملاً فعل متعدی فاعل ته رفع اومفعول به لره نصب ورکوی لکن فرق دادے چه عمل دفعل اصلی دے اوعمل ددے حروفو فرعی دے فعل مخکښې اسم ته رفع ورکوی اودویم اسم ته نصب ورکوی اودا حروف بعکس الفعل دی.په خبرددے حروفو کښې اختلاف دے په اعتبارداثرسره دوه مذهبه دی ۱ .بصریان۲ .کوفیان. بصریان وائی داحروف په اسم اوخبردواړوکښې عمل کوی څکه داسے مسموع من العرب دی. **کوفیان** وائی چه داحروف صرف په مبتداء کښې عمل کوی نصب ورلره ورکوی اوخبرمخکښې ددخول ددوی نه مرفوع وونوپس ددخول ددوی نه به هم مرفوع وی په هغه عامل سابقه باندے چه معنوی دے.لکن متون ټول په مذهب دبصریانو باندے بناء دی اودلته هم مصنف مذهب دبصریانو مختارکړے دے.

**فخبر انَّ هو المسندبعددخولهانحو انّ زید'قائمٌ.**

**ترجمه :** خبرد ان به مسندوی پس ددخول ددوی نه لکه ان زید قائم.

**حل ترکیب** : فاء تفریعیه خبران مضاف مضاف الیه مبتداء اول هو مبتداء المسندالف لام بمعنی الذی موصول مسنداسم مفعول هو ضمیرمستترنائب فاعل بعدظرف مضاف دخول مضاف مضاف الیه دابیامضاف الیه دبعدمضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه مسنداسم مفعول سره دنائب فاعل اومفعول فیه نه شبه جمله صله دموصول موصول سره دصله خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

**تشریح** : **سوال** : په تعریف کښې دخول ذکردے اومضاف دے ضمیردحروف ته

نـوبـنـاپـدے بـانـدے ان زیداقائم ترینه خارج شو ځکه پدے تمام حروف مشبه بالفعل خوداخل نـدی اوبـلـه داچـه تـول حـروف مشبـه بـالـفـعـل ځنګه به په یو معمول داخل شی. **جواب**: دلته عبارت په حذف دمضاف سره دے چه احددے یعنی بعداحددخول. **سوال**: دلته لفظ داخوات راوړل مـنـاسـب نـدی ځـکـه دالـفـظ پـه ذوی الـعقولوکښ مستعملیږی اوحروف مشبه بالفعل خـوذوی العقولونه دی. **جواب**: دلتـه اخـوات په معنی دامثال اواشباه باندے دے.داقیدپه تـعـریف کښ چه هو المسنددے داپه منزله دجنس دے معرف اوغیرمعرف ټولولره شامل دے یـعـنـی خبـردمبتـداء اوخبـرکان اوخبرلاالنفی الجنس لره هم شامل دے .اوبعددخولهادایه منزله دفصل دے پدے سره ټول خارج شو.

**وحکمه فی کونه مفرداً اوجملة اومعرفة اونکرة کحکم خبر المبتدأ.**

ترجمه: اوشان دخبردان په کیدودده کښ مفرداوجمله اومعرفه اونکره په شان دخبردمبتداء دے.

**حـل ترکیب**: حـکـمـه مبتـداء فـی جارکـون فعل ناقص مضاف ه مضاف الیه اسم دکون مفردامعطوف علیه جمله معرفه اونکره معطوفات معطوف علیه سره دمعطوفاتونه خبردکون شـودابیـامـجـروردجارشـوجـارسـره دمـجـرورنه متعلق حکمه مبتداء کحکم خبر المبتداء ظرف مستقرمتعلق ثابت مقدره پورے داخبردمبتداء شو.

**ولایجوزتقدیم اخبارهاعلی اسمائها.**

ترجمه: اوجائزندی تقدیم دخبرونودحروف مشبه بالفعل ددوی په اسماء باندے.

**حل ترکیب**: لانـافـیـه یـجـوزفـعـل تقدیم مضاف اخبارهامضاف الیه علی اسمائهاظرف لغوه متعلق تقدیم مضاف سره دمضاف الیه اومتعلق نه فاعل یجوز.

**تشریح**: داعبـارت جـواب دے دسـوال مـقـدره نـه سوال داسـے واردیـږی چـه خبردانّ په ټولواحوالوکښ پشان دخبردمبتدا دے نوپه مبتداء باندے تقدیم دخبرجائزدے نودده خبربه هم داسـے وی چـه دده خبـریـه په اسم باندے مقدم کولے شی اوحالانکه داجائزنده نوپدے عبارت سره مـصـنـف ددے سوال جواب اوکړو چه ولایجوز.**دلیل**: دا حـروف په عمل کښ ضعیف دی عـمـل پـه مـعمول مرتب کښ کولے شی نه په غیرمرتب کښ ځکه چه په ترتیب کښ دوی بدل شـونـودضـعـف لـوجـیـی بـیـاعـمـل نه کوی. دویمه وجه داده چه ددوی عمل فرعی دے چه تقدیم

دمنصوب دے پہ مرفوع باندے اوپہ صورت دتقدیم کښې به عمل اصل شی اوداندے بلکه ددوی دعمل ابطال دے.

**الااذاکان ظرفانحو انّ فی الدارزیداً.**

: مگرچه خبرظرف وی نوبیاتقدیم جائزدے لکه انّ فی الدارزیدٌ.

**حل ترکیب** : الاحرف استثناء اذاظرف مضاف کان فعل ناقص ضمیرمستترددہ اسم ظرفاخبردکان کان سره داسم اوخبرنه په تاویل دهذا الترکیب سره مضاف شوداذامضاف سره دمضاف الیه نه مستثنی مفرغ مفعول فیه دلایجوزاومستثنی منه محذوف دے اصل عبارت داسے دے ولایجوز الخ فی کل وقت من الاوقات الاوقت کونه ظرفالمجال التوسع ظرف مستقرمتعلق یجوزفعل محذوف فی الظرف ظرف لغومتعلق التوسع.

**تشریح** : ظرف په کلام کښې په کثرت سره راځی ددے وجینه دوی ظروف پشان دمحارموگنړی. بیا تقدیم دخبرواجب به هله وی چه اسم دحروف مشبه بالفعل نکره وی اوخبرظرف وی مثال ان من البیان لسحرا.وان من الشعرلحکمة.اوجائزبه هله وی اسم ددوی معرفه وی اوخبرظرف وی مثال ان الینا ایابهم.ان فی الدارزیداً.

**التمرین لبحث خبرانّ واخواتها .**

| | |
|---|---|
| ان لدیناانکالاو جحیما | ان فی ذلك لعبرةً |
| ان الله غفورالرحیْم | واذیعدکم الله فی احدی الطائفتین انهالکم. |
| وانی فضلتکم علی العلمین. | واوحی الی نوح انه لن یومن من قومك |
| ولاتخافون انکم اشرکتم بالله | اولم یکفهم انا انزلنا |
| انه استمع نفرمن ا لجن | ذلك بان الله هو الحق. |
| انه لحق مثل ماانکم تنطقون | ومن ایاته انك تری الارض خاشعة |
| و العصران الانسان لفی خسر | کأنهم خشب مسندة |
| لعل الله یحدث بعدذلك امرا | یالیتنی کنت ترابا |
| یالیتنی قدمت لحیاتی | محمودغنی لکن اخاه فقیر |
| امتنع المطرلکن السحاب کثیرٌ | کانمایساقون الی الموت. |

(لولا ان اشق علی امتی لامرتهم بالسواك مع كل وضوء(الحديث).

**ترکیب ان الله غفوررحیم** : ان حرف از حروف مشبه بالفعل الله منصوب لانه اسم انّ غفورٌ خبرانّ مرفوع رحيم خبرثانى مرفوع.كانّ الهلال قوسٌ منيرة.كان حرف مشبه بالفعل الهلال اسمهامنصوب قوس خبرهامنيره صفت للقوس وصفت المرفوعة مرفوعه.تمت خبرانّ واخواتها.

**فصل اسم كان واخواتهاوهى صاروا صبح الخ.** ترجمه : اسم دكان سره دامثال نه چه هغه صاراواصبح الخ دى.

**حل ترکیب** : اسم مضاف كان معطوف عليه.معطوف عليه سره دمعطوف نه مبتداء محذوف الخبراى سنذكره. هى مبتدا صاراصبح الخ بتاويل هذا اللفظ خبرهذه الافعال مبتداتدخل الخ خبرباقى تركيب واضح دے.

**تشریح** : شپږم قسم مرفوعاتو نه دافعال ناقصه اسم دے اوداتول مشهوراولس دى دوى ته افعال ناقصه وائى ددے بحث به انشاء الله په بحث فعل كښې راځى دارنگه ددے معانى به هم هلته راځى.عمل دافعال ناقصه اسم لره رفع وركوى اوخبرلره نصب وركوى.مدخول ددوى مبتداء اوخبردى مبتداء ته اسم ددوى وائى اوخبرته خبرددوى وائى.ددوى نه چه كوم الفاظ مشتق راځى دهغوى حال هم ددوى پشان دے.مثلايكون اولم يكن لايكون كائن وغيره دارنگه مصدرددوى چه كون دے دهغه هم دغه عمل دے.

**فاسم كان هو المسنداليه بعددخولها الخ** نواسم دكان به مسنداليه وى پس ددخول ددوى نه. **حل ترکیب** : اسم كان مبتداء اول هومبتدا ثانى الف لام موصول مسندصيغه داسم مفعول اليه جارمجرورنائب فاعل بعدظرف مضاف دخول مضاف هامضاف اليه دامضاف اليه دبعدمضاف سره دمضاف اليه نه دامفعول فيه دمسند مسندصفت سره دنائب فاعل اومفعول فيه نه شبه جمله صفت صله شوه دموصول موصول سره دصله نه خبرشودمبتداء ه هودے مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريه خبردمبتدا اول.

**تشریح** : المسند اليه په تعريف مذكوره كښې په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغيرمعرف لره مثلامبتدااواسم دماولامشبهتين بليس لره هم شامل دى اوبعددخولهاداپه منزله دفصل دے پدے سره دمعرف نه علاوه نورتول خارج دى. **سوال** : ددے تعريف نه

دامـعلـومه شوه چه تمام افعال ناقصه به په یو اسم باندے داخل شی نو هله به ددوی اسم گرځی نوستاقـاعـده منقوضه شوه په کان زیدٌ قائما باندے. **جواب** : دلتـه عبارت په حذف دمضاف سره دے اے بعداحدخولها.

**ویجوزفی الکل تقدیم اخبارهاعلی اسمائها الخ.**

**ترجمه** : اوجائز دی په دے ټولوافعال کښ تقدیم دخبرونوپه اسماء ددوی باندے.

**حل ترکیب** : یـجـوزفـعـل فی الکل ظرف لغوه متعلق فعل تقدیم اخبارِ الخ فاعل یجوزعلی اسمـائهـاجارمـجـرورظـرف لـغـومتـعلق تقدیم مصدرپورے علی نفس الافعال عطف دے په اسمـائهـابـانـدے فـی تسـعـه الاول ظرف لغو متعلق تقدیم پورے لایجوزفعل ذلك فاعل فی جارمـامـوصـولـه اولـه خبرمـقـدم مـابتـاویـل هـذا اللفظ مبتداء موخرمبتداء سره دخبرنه صله دمـوصـول مـوصـول سـره دصلــه نــه مـجـروردجارجـارسـره دمجرورنـه ظرف لغوه متعلق پـه لایـجـوزپـورے فـی جـار لیـس بتـاویـل هـذا الـلـفـظ مـجـرورمحلا جارسره دمجرور نـه ظرف مستـقـرخبـرمـقـدم خـلاف مبتـدامـوخـربـاقـی مـضـاف کـلامـوصـوف فی هذاالافعـال ظرف مستـقـرصـفـت مـودمـوصـوف مـوصـوف سره دصفـت نـه مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمـضـاف الیــه نــه مبتـدایجیء الخ خبر. **تشـریح** : مـصـنفؒ پـدے عبـارت سـره دوه مسـئلـے ذکرکوی تقدیم داخبارپه اسماءافعال ناقصه ۲ .تقدیم داخبارپه نفس افعال باندے.

هـرچـه تـقـدیـم داخبـاردے په نفس اسماء باندے په افعال ناقصه کښ جائزدے ځکه داافعال په عـمـل کـښ قوی دی په معمول مرتب اوغیرمرتب دواړوکښ عمل کولے شی لهذاکان قائمازیدٌ وئیـل جائزدی لکن ددے دپاره شرط به داوی چه التباس نه راځی دخبرداسم سره او هغه صورت بـه داسـے وی چـه اسم اوخبردافـعـال نـاقـصـه اسم مقصوروی اوقرینه نه وی مثلاماکان موسی عیسی نوپدے تقدیم دخبرپه اسم باندے جائزندے ځکه التباس راځی. او هر چه تقدیم په نفس افعال باندے دخبرنوپدے کښ تفصیل دے افعال ناقصه پدے اعتبارسره په دری قسمه دی:

(۱) قسـم اول یـولـس۱۱ افـعـال ددوی نه داسـے دی چه په هغـے باندے تقدیم دخبرجائزدے هغه دکان نـه تـرغـداپـورے دی.ددے دلیـل دادے چه دده عامل فعل دے اوفعل په عمل کښ قوی دے پـه مـقـدم اومو خردواړوکښ عـمـل کولـے شی.مثال قائماکان زیدٌ.اوداعبارت چه فی التسعه

الاول نـوداسهـودقـلـم دناسخ نه ده نه۹ افعال ندی یولس۱۱دی . (۲) دویم قسم هغه افعال دی چه په اول دهغـے کښ لفظ دماراغلے وی برابره خبره ده چه مانافیه وی اوکه مامصدریه وی ددوی خبرېدے افعال نشی مقدم کولے هرچه هغه اَفعال دی چه په اول کښ ئے مانافیه دے نوځکه تـقدیم دخبرجائزندے چه مانافیه تقاضی دصدارت دکلام کوی هغه به باطل شی.اوکوم چه په اول کښ مـامـصـدریه دے لکه مادام نودده معمول یعنی دمصدرېده نشی مقدم کولے لوجے دضعف دده نه په عمل کښ.

(۳) دریـم قسـم دافـعـال ناقصه نه لیس دے پدے کښ دنحاتواختلاف دے بعضی دتقدیم قائل دی ځـکـه دده عـمل لوجے دفضیلت نه دے نولیس پشان دکان وغیره دے اومعمول منصوب په فـعـل مـخـکـښ کیـدے شی لـکه ایاك نعبد نوپه لیس کښ هم مقدم کیدے شی.اوبعض نـحات دعدم تقدیم قائل دی ځکه دده عمل لوجے دنفی نه دے پشان ددویم قسم دافعال ناقصه دے تفصیل دافعال ناقصه به په بحث فعل کښ راشی.

نقشه



**التمرین لافعال ناقصه**

| | |
|---|---|
| کان ربك قدیرا | كان حقاعلینانصر المومنین |
| اکان للناس عجباان اوحیناالی رجل منهم | فاصبحتم بنعمته اخوانا. |
| تالله تفتؤتذکریوسف | لن ندخلهاابداماداموافیها |
| فسبحان الله حین تمسون وحین تصبحون | فنظل لهاعاکفین |
| ان اصبح ماؤکم غورا | ظلت اعناقهم لهاخاضعین |
| یبیتون لربهم سجداوقیاما | الاالی اللهتصیر الامور |
| مادامت السمٰوات والارض. | الایوم یأتیهم لیس مصروفاعنهم. |
| لایزال بنیانهم الذی بنوا | ظل وجهه مسودا |
| لاابرح حتی ابلغ مجمع البحرین | وکان فضل الله علیك عظیما. |
| یصبح الرجل مومناویمسی کافرا | واذاامسیت فلاتنتظر الصباح واذااصبحت |
| ویمسی مومناویصبح کافرا( الحدیث) | فلاتنظر المساء [ابن عمر] |

شعر:

اذارضیت عنی کرام عشیرتی ۔ فلازال غضبانا علیّ لئامها

لیس الیتیم الذی قدمات والده ۔ بل الیتیم یتیم العلم والادب

**فصل** اسم ماولامشبهتین بلیس الخ. بل دمرفوعاتونه اسم دماولا چه مشبهتان وی دلیس سره. **حل ترکیب**: اسم مضاف ماولا معطوف علیه ومعطوف موصوف ال بمعنی التی اسم موصول مشبهتین اسم مفعول همانائب فاعل اومتعلق نه صله دموصول موصول سره دصله نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف الیه دمضاف دامبتداء واوزائده هو المسند الیه الخ جمله اسمیه خبرمبتداء بعدظرف مضاف دخولهامضاف الیه مضاف الیه بعددابیامفعول فیه دمسنددپاره دامجموعه بیاخبرشوداسم دماولادپاره. یختص فعل مجهول لابتاویل هذااللفظ نائب فاعل بالنکره متعلق دے په یختص پورے یعم فعل مابتاویل هذا اللفظ فاعل بالمعرفه و النکره ظرف لغومتعلق یعم.

**تشریح**: اوم۷ قسم دمرفوعاتونه اسم دماولادے چه مشابه وی دلیس سره. ماولامشابه

دليـس سـره ددوووجـونـه ۱ .پـه مـعنـي دنفي كښې مشابهت دے لكه څرنګه چه ليس دنفي دپاره راځـي نـو ماولا هم دنفي دپاره راځي.۲ .ليس په مبتداء اوخبرداخليږي نو ماولا هم داسے دي ليس مبتـداء لـره رفـع وركـوي اوخبـرلـره نصب ماولا هم دغه شان دے په عمل كښې. **پـه تعريف كښې** لابـدے دجـنـس اوفـصـل نه ده المنسداليه په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغير معرف لـره مثـلا مبتـداء اواسـم دحـروف مشبه بالفعل لره اوداقيد چه بعددخولهادے داپه منزله دفصل دے پـدے سـره تـمـام خـارج شـو .پـس په عمل دماولاكښې مذهبين دي:۱ .حجازين ۲ .بني تميم حـجـازيـن وائـي مـاولاعـامـلـيـن دي ددوي دوه دلائل دي ۱ .عقلي۲ .نقلي.دليل نقلي ماولايشان دليـس دي اوليـس پـه كـلام دعـرب كـښې عـامـل مـونـدے شـوے دے نو مـاولا بـه هم عمل كـوي.۲ .دليـل نـقـلـي پـه قـران كـښې راغـلـے دے مـا هذابشـرا هذااسم اوبشـرا منصوب دے خبردمادے.

۲ .بـنـي تـمـيـم وائـي ماولاعاملين ندي روستواسم اوخبرددوي نه به مرفوع وي په عامل معنوي سره ددوي هـم دوه دلائـل دي نـقـلـي اوعقلي دليل عقلي يوعامل چه عمل كوي نوشرط دهغه دپاره دادے چه هغه به مختص بالاسم يامختص بالفعل وي اوماولادارنګه ندي دوي په اسم هم داخـليـږي اوپه فعل هم داخليږي نوپه انتفاء دشرط سره انتفاء دمشروط راغله لهذادوي عاملين ندي.دليل نقلي دادے چه په شعركښې راغلے دے :

ومهـفـهـف كـالـغـصـن قـلـت لـه انتسب فـاجـاب مـاقـتـل الـمـحـب حـرام

حرام مرفوع دے خبردے اوقتل الحب مرفوع دے مبتداده اودواړه وروستو دمانه واقع دي نوكه ماعمل كولے شوے نودلته به حراماوو په نسب سره ځكه خبربه دماوو.

لـكـن مـخـتـارمـذهـب پـه نـزدمصنف دجمهورونحاتو اوحجازينو دے جواب بني تميم ته ددليل عقلي نه دادے چه ماولادوه قسمه دي اسمي فعلي اسمي عمل كوي په لفظ اومعني دواړوكښې اوفعلي عمل كوي فقط په معني كښې نه په لفظ كښې اوتاسو دافرق ندے كړے.

جواب ددليـل نـقـلـي نه دادے چه دشعرقائل ستاسو دقبيلے سړے دے داځكه په حجت كښې پيش كوئ باقي تفصيل ددے به په منصوباتو كښې راشي انشاء اللہتعالي.

**ويـخـتـص لابالنكرة** پـدے عبـارت سـره مـصـنف فرق بيانوي دماولا تفصيل دماولاپه خپل

**مـابیـن** کښې دری فرقه دی:اول فرق داپه اسماء نکره باندے داخلیږی فقط اوماعام دے په معرفه اونـکره دواړوباندے داخلیږی ۲ .فرق لادپاره دمطلق نفی دے برابره خبره ده که زمانه ماضی وی اوکه زمانی حالی وی اوکه دزمانی استقبالی وی.اومادپاره دنفی حالی فقط راځی.

۳-دریـم فـرق دادے چه په خبردلابه نشی داخلیدے داسے نشی وئیلے چه لارجل بافضل مـنك پـه خلاف دخبردماداسے وئیلے شی مازیدبقائم دمامشابهت دلیس سره زیات دے دلانه پس په معرفه اونکره دواړوداخلیږی نو ماهم داسے اولیس دنفی حالی دپاره راځی نو ماهم دنفی حالـی دپاره راځـی اویـه خبـردلیـس بـاء داخـلیـږی نـوپه خبردماهم باء داخلیږی په خلاف دلادده مشابهت دلیس سره کم دے.

**فائده** : کوم لاچه په اخرکښې ئے تاملحقه شوے وی لکه پدے قول دالله‌تعالی کښې :ولات حیـن مـنـاص پـدے کـښې دنـحـاتـواختـلاف دے دوه مـذهبـه دی پکښې.۱ -سیبویه اوخلیـل ۲- اخفش (۱) سیبویه اوخلیل وائی دالامشابه بلیس دے اوتازیاتی شوے ده دپاره دتاکیددنفی لکه زیـادت دتـاء په ربه اوثمه چه ده تاکیددپاره ده .اودوی وائی چه لات مختص په احیانوپورے دے اودده یـو مـعـمـول به ذکروی اوبل به مقدروی دواړه ظاهرول باطل دی. اوپدے ایت کښې ددوی په مـذهـب.بـانـدے حیـن مـناص دلاخبردے اواسم دده محذوف دے چه لفظ دالحین دے مرفوع نـوخبـردارنـګـه شـو:ولات الـحیـن حین مناص ای ولیس الحین حین مناص. ۲-ا**خفش** وائی دالات دهـغـه لالـنـفـی الـجـنـس دے اوتـاپـورے زیاتی شوے ده اودخول دده مختص دے پـه احیـانـوپـورے نـودده پـه نـزدبـانـدے داحین منصوب دے په فعل مقدره سره چه کان دے اسم دلالـنـفـی الـجنس اوخبردده محذوف دے چه موجوددے نوتقدیردارنګه شوولات حین مناص موجوډ.

**دویم قول** داخـفـش دادے چـه دالات عـمـل نـکوی اودالفظ دحین چه روستوترینه راغلے دے دامـنصـوب دے په فعل مقدره سره چه کان دے تقدیرداسے ولات کان حین مناص داحین منـصـوب دے خبـردکان دے اواسم دده به محذوف وی چه الحین دے. **سوال** : مـاولالره عمل اصـلـی دفـعـل ورکـړے شـوے دے اوداجـائـزنده. **جواب** : زیـادت دفـرع پـه اصـل بـانـدے دانـاجـائـزاومـمنـو ع دے اومساوات جائزدے لکن غیرمستحسن دے .**سوال** : غیرمستحسن

ئے ولے اختیارکړو؟ **جواب** : دا دوجے دضرورت نه هغه ضرورت دادے کچرے عمل فرعی ماولالره ورکړے شی نو التباس به دحروف مشبه بالفعل سره راشی بنابرضرورت عمل اصلی دفعل ماولالره ورکړے شو ځکه قاعده داده الضروریات تبیح المحذورات.

## فائده اقسام ما و لا

(۱) لانافیه : داپه فعل کښ په لفظ کښ عمل نکوی. مثال لاینبغی لك ان تتكاسل. په اسم باندے هم داخلیږی لکن چه په جمله اسمیه باندے داخل شی نو تکرار دبل لا به ورسره لازم وی مثال لا الشمس ینبغی لهاان تدرك القمرولا اللیل سابق النهار.

(۲) دارنگه په ماضی باندے چه دالاداخل شی نو تکراریه لازم وی مثال فلاصدق ولاصلیٰ.

(۳) دارنگه په خبرباندے لکه زیدٌ لاکاتبٌ ولاشاعرٌ.

(۴) دارنگه په صفت دموصوف باندے لکه جاء رجل لاطویل ولاقصیرٌ.

(۵) دارنگه په حال دذوالحال باندے لکه جاء زیدلاضاحکاولاباکیا.

۲- قسم لانافیه عاطفه ،ددے دپاره شرائط دی :

۱ .ماقبل دلانه به اثبات وی ــــ اجلس لاتشرك ولایصح اجلس ولاتشرك.

۲- حرف عاطفه به ورسره مقارن نه وی

۳-مابعددلانه به ضدماقبل وی : مثال جاء نی رجل لاامرأة اوداسے نشی وئیلے جاء نی رجل لازیدٌ. مثال د لانافیه عاطفه : اقرأ الکتاب لا المجلة.

۳-**لاجوابیه** : داواقع به وی په جواب دسوال دسائل کښ مثال جاء نی زیدٌ؟لا

۴-لالنفی الجنس : مثال لارجل فی الدار.لاریب فیه.

۵-لامشابه به لیس مثال لارجلٌ قائماً . ٦-لاناهیه جازمه دامختص دے په فعل مضارع پورے مثال لاتشرك بالله لاتخف ،لاتقل لهما اف.

## اقسام(ما)

(۱) ماموصوله مثال : ماعندكم ينفدوماعندالله باق اى الذى عندكم.

(۲) ماتامه: مثال : فنعماهى اى فنعم الشىء هى.

(۳) ما استفهاميه : مثال : ماتلك بيمينك ياموسى ماجاء بك.

(٤) ما شرطيه مثال : ماننسخ من اية اوننسهاناْت بخيرمنها.

(۵) ماناڧيه غيرعامله مثال : ماجاء احدٌ.

(٦) ماناڧيه مشابه بليس مثال : ما هذا بشرا.

(۷) ما مصدريه مثال : عزيزٌ عليه ماعنتم.

(۸) مازائده : مثال : فبمارحمت من الله لنت لهم. اماترين من البشر.

(۹)ماكافه : مثال : انماانابشرمثلكم، انماالهكم اله واحد.

(۱۰)ماموصوفه مثال : و السماء ومابناها.

(۱۱)ما صفتيه مثال : قليلا ماتشكرون.

التمرين لبحث ماولا.

ومااْنت بنعمت ربك بمجنون. وماربك بغافل عماتعملون

ماهنّ امهاتهن واماانت بمومن لنا.

ولات حين مناص. لابيع فيه ولاخلة.

ماهذاقول البشر. ماهذابشراً.

---

**فصل** خبرلالنفى الجنس وهو المسندبعددخولهانحو لا رجل قائمٌ.

: بل دمرفوعاتونه خبردلالنفى الجنس دےدابه مسندوى، پس ددخول دلانه لكه لارجل قائمٌ.

**حل تركيب** :- خبرمضاف لا بتاويل هذاالّلفظ موصوف لنفى الجنس جارمجرورظرف مستقر متعلق په الكائن پورے صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف اليه دمضاف مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء مابعدجمله خبر

**تشريح** : اتم قسم دمرفوعاتونه خبردلالنفى الجنس دے هو المسندپه تعريف په منزله دجنس دے معرف اوغيرمعرف تولولره شامل دے اوبعددخولهافصل دے پدے سره

ماسوادمعرف نه خارج شو. **سوال** : خبردلالنفی الجنس به ولے مرفوع وی؟

**جواب** : ١- دلامشابهت دے دفعل منفی سره لکه څنګه چه فعل منفی په نفی دلالت کوی نودغه شان لا هم په نفی دلالت کوی نو لافرع دفعل شوه نوعمل فرعی دفعل لاره ورکړے شواسم دده به منصوب وی اوخبر دده به مرفوع وی.

**جواب** :٢- د لامشابهت دانّ سره لفظااومعناانّ راځی دتاکیدداثبات دپاره اولا راځی د تاکید د نفی دپاره نودالاحمل شوپه انّ باندے دوجے دعلاقے دتضاداودوجے دحمل دنقیض نه په بل نقیض باندے اوعلاقه دتضاد هم یوتضاددے. **سوال** : لارجل قائم کښ نفی دجنس نده راغلے بلکه نفی دصفت راغلے ده. **جواب** : دلته عبارت په حذف سره دے چه خبردلا التی لنفی الجنس دے.

**سوال** : جنس دلامخکښ دراتلودلانه هم مسنددے نودلته لازمیږی اسنادمسند اودا باطل دے. **جواب** : دلته مراددا اسنادنه اسنادجدیده دے. **فائده** : لا په اسم اوخبرکښ عمل کوی پدے شرط سره چه نکرتین وی اوکه معرفتین وونوبیاعمل نکوی مثال لازیدفی الدار ولاعمروٌ لا القمرطالع ولا النجوم لامعاتٌ. فائده : دلاوودده په اسم کښ به فاصل نوی ورنه بیاعمل نکوی.مثال لافی الحدیقه صبیان ولابناتٌ. **فائده** : اسم دده به دده دخبرنه موخرنه وی ورنه بیاعمل نکوی مثال لافی الداررجل ولاامرأة. **فائده** : اکثردده خبربه حذف کیږی مثال لابأ س ولاحرج دلته خبرحذف دے چه ثابت دے ای لابأ س ثابتٌ. **فائده** : کله کله دده اسم هم حذف کیږی مثال لاعلیك ای لابأ س علیك.

## التمرین لبحث لالنفی الجنس.

| | |
|---|---|
| ذلك الکتاب لاریب فیه | لاجناح علیك. |
| لااکراه فی الدین. | لاشیء یعدل عمل الخیر. |
| لاشك لاعلیك | .لاامل فی النجاح |

**حل ترکیب** :. لاشیء یعدل عمل الخیر. لالنفی الجنس شیء اسم لامنبی علی الفتح یعدل فعل مضارع مرفوع والفاعل ضمیرمستترتقدیره هوعمل مفعول به منصوب مضاف الخیرمضاف الیه مجروروجمله یعدل فی محل رفع خبرلا.

**المرفوعات اجمالاً**

(١)مبتداء قسم اول. (٢)وقسم ثانی.

(٣)خبر – (۴)نائب فاعل.

(۵)خبرانّ واخواتها. (٦)اسم كان واخواتها.

(٧)اسم ماولا مشبهتين بليس. (٨)خبر لالنفی الجنس.

تمت بحث المرفوعات.بعون الله تعالیٰ. الذی يعلم مافی الارض و السمٰوات.

## المقصد الثانی فی المنصوبات

مقصودثانی په بیان دمنصوباتو کښې دے.

**حل ترکیب** : المقصد الثانی مبتداء فی المنصوبات جارمجرورظرف مستقرمتعلق کائن خبرمبتداء. **تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دمقصداول نه چه مرفوعات وو نوشروع ئے اوکړه په بیان دمقصدثانی کښې چه منصوبات دی. منصوبات مخکښې دمجروراتو اوپس دمرفوعاتو نه ذکرکړل ددے دری وجے دی :

(۱) مرفوعات اومنصوبات دواړه په عامل واحدکښې شریك دی ددواړوعامل فعل وی مثال ضرب زیدٌ عمروا په خلاف دمجروراتو چه دهغے عامل حروف جاره وی.

(۲) منصوبات په نسبت دمجروراتو کثیردی اومجرورات قلیل دی اوکثیرمهتم بالشان وی اودچاچه شان اوچت وی هغه مقدم وی

(۳) منصوبات معمول دفعل بالذات وی اومجرورات بالواسطه وی اوبالذات مقدم وی په بالواسطه باندے. منصوبات جمع دمنصوب ده اوکه دمنصوبه ده نوددے بیان بعینه هغه دے کوم چه په مرفوعات کښې تیرشوے دے فلانعیده.

الاسماء المنصوبه اثناعشرقسماالخ : اسماء منصوبه ۱۲ دی په اعتبارداقسامو سره

**حل ترکیب** :- الاسماء المنصوبه موصوف صفت مبتداء اثناعشر قسما خبرالمفعول المطلق معطوف علیه اومابعدترینه معطوفات معطوف علیه سره دمعطوفاتو نه بدل شوداثناعشرنه یامفعول به دفعل مقدره چه اعنے دے یاهرواحدخبردمبتداء محذوفے چه احد هادے اوثانیها دے.

**تشریح** : منصوبات دولس ۱۲ دی :

(۱)مفعول مطلق. (۲)مفعول به. (۳)مفعول فیه. (۴)مفعول له.

(۵)مفعول معه. (٦) الحال. (۷)تمیز. (۸)مثنی.

(۹) اسم انّ واخواتها. (۱۰)خبرکان مع اخواتها. (۱۱)اسم لالنفی الجنس.

(۱۲) خبرماولامشبهتین بلیس.

دامنصوبات په دوه قسمه دی :۱- مفاعیل ۲. ملحقات. مفاعیل په پینځه قسمه دی :

(۱)مفعول مطلق. (۲) مفعول به. (۳)مفعول فیه. (۴)مفعول له . (۵)مفعول معه.
ملحقات اوه۷دی کوم چه باقی دی دمفاعیل نه چه هغه حال الخ دی.

اوداپینځه مفاعیل شاعریه ځپل شعرکښ جمع کړی دی. شعر:

حـــمـــدت حـــمـــدًا حـــامـــداوحـــمـیـــدا رعـــــایة شـــکـــــره دهـــــرامـــدیـــداً

مفعول مطلق، مفعول به، مفعول معه، مفعول له ، مفعول فیه،

**.اختلاف نحات.**

۱ـ دامذهب دجمهورونحاتودے چه مفاعیل پینځه دی اوپه مذهب دسیرافی نحوی مفاعیل شپږدی پینځه مذکوره دی اوشپږم عنه دے استدلال دده پدے قول دالله‌تعالی سره دے واختارموسی قومه داقومه مفعول عنه دے لکن جمهورنحات وائی دامفعول عنه نه صحیح کیږی ځکه بیابه قول په مفعول الیه باندے کوئ پدے قول کښ دخلت البیت دابیت دے مفعول الیه شی ځکه دلته تقدیرداسے دخلت الی ا لبیت اوحال دادے چه مفعول الیه باندے هیڅ چاقول ندے کړے نومعلومه شوه چه مفعول عنه هم نشته دے.امام زجاج وائی مفاعیل دری دی :

(۱) مفعول مطلق. (۲) مفعول به. (۳) مفعول فیه

اوهرچه مفعول له دئے نوداخل دے په مفعول به کښ.لکن غوره مذهب دجمهورونحاتودے. **تعریف** د اسم منصوب اسم منصوب هغه اسم ته وائی چه مشتمل وی په علامه دمفعولیت باندے اوعلامات دمفعولیت څلوردی:(۱)فتحه په مفرداتوکښ.اوجمع مکسرکښ.(۲) کسره په جمع مونث سالم کښ.(۳) یاپه تثنیه اوجمع مذکرسالم کښ اوددوی په ملحقاتوکښ.(۴) الف په اسماء سته مکبره کښ.

وجه دحصر دمنصوباتو:




**فائده** افعال ناقصه صورتاً افعال دی لکن معنا حروف دی ځکه کان اسم او خبر دواړه غواړی او کله کله فقط اسم غواړی نو څرنګه چه حرف متحاج دے ضم دضمیمے ته دغه شان افعال ناقصه محتاج اسم او خبر ته نو شو افعال ناقصه معنا حروف نو ځکه خبر او اسم دده دمعمول دحرف نه ګنړلے کیږی په مرفوعات او منصوبات کښی.

**فصل** المفعول المطلق وهو مصدر بمعنی فعل مذکور قبله.

ترجمه: مفعول مطلق دامصدر دے په معنی دفعل مذکوره سابقه سره به وی.

**حل ترکیب**: المفعول المطلق مبتدا هو مصدر الخ خبر مبتدأ په درمیان کښے واوزائده دے هو مبتداء مصدر موصوف باحرف جر معنی مضاف فعل موصوف مذکور صفت قبله ظرف مضاف مضاف الیه مفعول فیه دامجموعه شبه جمله صفت دموصوف شو موصوف سره دصفت مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور دجار جار سره دمجرور نه خبر دمبتدا

**چه هودے** مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه خبردمبتدا چه المفعول المطلق دے.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو مصنف داجمال دمنصوباتو نه نوشروع ئے اوکړه په تفصيل باندے. په دولسو منصوباتو کښ ئے مفاعيل مقدم کړل ځکه دوی اصل دی دملحقاتونو حقدار دتقديم دی.اوبياپه مفاعيل کښ مفعول مطلق مقدم کړو په بناقی مفاعيل باندے ځکه مفعول مطلق منصوب وی پغيردتقيددحرف نه په فيه له معه سره نوده ته فعل متعدی کيږی بالذات اونورومفاعيلوته متعدی کيږی بالواسطه اوبالذات تعديت اولی دے دبالواسطه نه.

**وجه د تسميه دمفعول مطلق**: ديته مفعول مطلق وائي ۱-دے حقيقتا مفعول دے دفاعل ۲- مطلق داطلاق نه دے اواطلاق وائی خالی والی ته اودے هم خالی دے دقيددبه له اوفيه نه .

**فوائد قيود**:په تعريف دمفعول مطلق کښ لفظ دمصدرپه منزله دجنس دے تولو مصادرولره شامل دے بمعنی فعل مذکورفصل اول دے پدے سره مفعول له خارج شوپدے قول کښ چه ضربته تاديباتاديبامصدردے لکن بمعنی فعل مذکورندے چه ضربت دے.قبله فصل ثانی دے پدے سره خارج شو الضرب واقع علی زيد الضرب مصدردے لکن مخکښ ترينه فعل نشته دے الضرب مبتدا ده واقع علی زيدخبردے. **سوال** : ستاتعريف منقوض دے پدے ترکيب باندے چه اناضارب ضربادلته ضربامفعول مطلق دے اومخکښ ترينه فعل نشته دے.**جواب** : فعل عام دے که حقيقی وی اوکه شبه فعل وی دلته ضارب شبه فعل شته دے.

**سوال** : ستاتعريف منقوض دے پدے ترکيب باندے چه فضرب الرقاب مخکښ ددينه فعل نشته دے. **جواب** : فعل عام دے لفظی وی که تقديری وی دلته اگرکه فعل لفظاشته دے لکن تقديراذکردے تقديردعبارت داسے دے فاضربواضرب الرقاب. **سوال** : مراددفعل نه به فعل اصطلاحی وی حدث نسبت زمانه ده نوزمانه اونسبت خوقابل دذکرندی نوته څنگه وائی فعل مذکورقبله ؟**جواب** : مرادپه فعل سره معنی لغوی دفعل ده چه حدث دے **فقط**.

**سوال** : ستاتعريف منقوض دے پدے ترکيب باندے چه ضربت ضربادے دلته حدث ندے مذکوربلکه فعل اصطلاحی دے. **جواب** :- فعل مذکورعام دی مطابقی وی اوکه تضمنی وی نودلته حدث په ضمن دفعل کښ دے.

ویذکرللتاکیدکضربت ضرباًاولبیان النوع نحوجلست جلسة القاری اولبیان العددالخ. : اومفعول مطلق ذکرکیدے شی دپاره دتاکیداودبیان دنوع اودبیان دعدد دپاره.

**حل ترکیب** : یذکرفعل مجهول هوضمیرنائب فاعل للتاکیدظرف لغومتعلق په یذکرپورے اودامطعوف علیه اولبیان النوع اولبیان العدددامعطوفین دی دللتاکیددپاره.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شومصنف دتعریف دمفعول مطلق نه نوشروع ئے اوکړه په تقسیم باندے.نووے وئیل دارنگه ویذکرالخ.مفعول مطلق په دری قسمه دے : (۱) مفعول مطلق تاکیدی مثال ضربت ضربا. (۲) مفعول مطلق نوعی مثال جلس جلست القاری. (۳) مفعول مطلق عددی مثال جلست جلسةً.

**وجه حصر** په دریوکښې داده چه دامفعول مطلق به خالی نه وی یابه په مفهوم دده کښې زیادت په مفهوم دفعل باندے وی اویابه نه وی که نه وو نومفعول مطلق تاکیدی اوکه وونوبیابه خالی نه وی یابه دازیادت دنوع دپاره وی یابه دعدددپاره وی که دنوع دپاره وونو مفعول مطلق نوعی اوکه دعدددپاره وونومفعول مطلق عددی اوامثله ماتن دری ذکرکړی دی ددری واړودپاره.

د تاکیدی مثال ضربت ضربا.دمفعول مطلق نوعی مثال جلست جلست القاری ای جلست نوعامن الجلوس..دمفعول مطلق عددی مثال جلست جلسةً.ایٔ جلست مرة واحدة .فرق دمفعول عددی اونوعی په وزن سره کولے شی دنوع دپاره وزن دفِعلة راغلے دے په کسره دفاء سره اودعدددپاره په وزن دفعلة راغلے دے په فتحه دفاء سره لکه شاعروائی.

المَفعل للموضع و المِفعل للالة و الفَعلة للمـــــرة و الفِعلة للحالة

اوفرق ددے دواړو دمفعول مطلق تاکیدی نه پدے شان سره دے چه دوی دواړه تثنیه اوجمع کیدےشی یعنی مفعول مطلق نوعی اوعددی او هرچه مفعول مطلق تاکیدی دے نودانه تثنیه اونه جمع کیدے شی ځکه تثنیه اوجمع دلالت په تعددکوی اومفعول مطلق تاکیدی په ماهیت منعری عن العددباندے دلالت کوي په مابین ددوی کښې تضاداومنافات دے او هرچه قسمین اولین دی ځکه تثنیه اوجمع کیږی چه دوی دلالت په تعددکوی نه په ماهیت معری عن العددباندے.

قدیکون من غیرلفظ الفعل المذکور الخ. :

او کله کیږی مفعول مطلق بغیرد لفظ دفعل نه مذکورنه.

**حل ترکیب** : قد حرف تحقیق مع التقلیل یکون فعل ناقص ضمیرمستتراسم دده من غیرلفظ الفعل المذکورظر مستقرخبریکون.

**تشریح** : د قدنه معلومیږی چه په اکثرواوقاتو کښې په مابین دفعل اومفعول مطلق کښې به مغایرت نوی دامغایرت په دوه قسمه دے۱ .مغائرت مادی۲ .مغائرت بابی.

مغائرت مادی دیته وائی چه مفعول مطلق دیوے مادے نه وی اوفعل دبلے مادے نه راغلے وی لکه قعدت جلوسا جلوسا مفعول مطلق دے دده ماده جیم لام اوسین دی اوفعل دده قعدت دے چه مادده ددے قاف عین اوتادی. ۲- مغایرت بابی دیته وائی چه دمفعول مطلق جدا باب وی دفعل نه لکه انبت نباتا دلته نباتامفعول مطلق دے اوباب ئے ثلاثی مجرددے اوفعل ئے انبت دے لکه ثلاثی مزیدفیه نه دے یعنی باب افعال دے.

## اختلاف نحات :

۱- سیبویه وائی مفعول مطلق مغایردفعل خپل نه راځی ځکه دده په مذهب دمفعول مطلق اوفعل کښې مطابقت شرط دے اوکوم ځائے چه مغایرت راغلے وی لکه دلته نوتاویل کوی. تقدیودعبارت دلته داسے وائی قعدت وجلست جلوسا .اوانبت ونبت نباتا.

دلیل دسیبویه په مفعول مطلق کښې شرط دادے چه فعل به پده مشتمل وی په قبیلے داشتمال دکل نه په جزباندے اوهرکله چه دامغایرشی نو اشتمال نه راځی.

۲- **جمهورنحات** وائی : مفعول مطلق من غیرلفظه راځی اومذهب دسیبویه ضعیف دے نقلا وعقلا هرچه عقلا تقدیرسیبویه پکښې راولی اوتقدیرخلاف الاصل دے اوهرچه نقلا دے ځکه په ډیرومواضعو کښې مفعول مطلق مغایرراغلے دے اوډیرمواضع داسے دی چه تاویل پکښې هم نشی کولے لکه ولاتضرواه شیئا یالکه حلفت یمینانو دلته شیئا اویمینا مفعول مطلق واقع دے اومغایردی دفعل نه اوتقدیراوتاویل پکښې هم نه کیږی ځکه داجامددی.

**سیبویه ته د جمهورو نحاتو جواب** : چه اشتمال عام دے که لفظی اوکه معنوی وی اولفظابیاعام دے بالذات وی اوکه بالواسطه وی دمعنامثال لکه قعدت جلوسادداروعنی یوه

ده اویـه انبت نباتـاکښې اشتـمـال لـفـظـي دے لیکن بالواسطه دے ځکه انبت مشتمل دے په نباتابانـدے.سیبـویـه پـه لاتـضـرواه شیئاکښې تاویل کوی داپه معنی دقلیلاسره دے.اوصفت دمـوصـوف مـحـذوف دے چـه ضـرارادے نـوعبـارت داسـے شـوولاتضرواه ضراراقلیلانودلته ضرارامفعول مطلق دے اومغایرندے دفعل خپل نه.

**وقديحذف فعله لقيام قرينة جوازا الخ.**

: اوکلـه عـامـل دمـفـعـول مـطلق حذف کولے شي چه قرینه موجوده وی په حذف جائزی سره.

**حل ترکیب** : یـحـذف فعل مجهول فعله نائب فاعل لقیام قرینه ظرف لغو متعلق یحذف جـوازاسره دمـوصـوف مـحـذوف نـه چه حذفادے مفعول مطلق دے دیحذف دپاره دامعطوف علیه شووجوباموصوف سماعاصفت موصوف سره دصفت نه معطوف شودمعطوف علیه.

**تشریح** : ددیـنـه وروستـواوس دابیـانـوی چه کله کله دمفعول مطلق نه فعل حذف کیږی دابیـادوه قسـمـه دے ۱ .حـذف جائزی۲ .حذف وجوبی.حذف وجوبی په دوه قسمه دے ۱ .حذفه وجـوبـی قیاسی ۲ .حذف وجوبی سماعی لکن دلته صاحب هدایت نحودحذف وجوبی قیاسی صورتونه ندی ذکرکړی لوجے داختصارنه اوصاحب کافیه ابن حاجب پدے کښې تفصیل کړے دے.اوذکـرکـړے ئـے دے پـه منهاسره.اوحذف چه کیدے شی نوددے دپاره به قرینه وی مثال دفعل په حذف جائزی سره لکه خبرمقدم شوچه فعل دده نه حذف شوے دے چه قدمت دے.

**سوال** : مـفـعـول مـطـلـق هـغـه تـه وائـی چـه فـعـل مشتـمـل وی په هغه باندے دقبیلے داشتـمـال دکـل نـه پـه جزباندے اودلته فعل چه قدمت دے مشتمل په خیرباندے ندے اوبله داچـه مـفـعـول مـطـلـق مصدر وی اودلته خیراسم تفضیل دے نوپه دواړه تقدیرونوسره مفعول مـطـلـق صـحـیـح نـدے . **جـواب**: پـده اطـلاق دمـفـعـول مـطـلـق شـوے دے مـجـازاپـه اعتبـاردمـوصـوف مـحـذوفـه سـره نـوتـقـدیـردارنـگـه شو چـه قـدمـت قـدومـاخـیـرمقدم اوپه اعتباردمضاف الیه سره چه مقدم دے اوهغه مصدرمیمی دے. **سوال** : دلتـه قرینه څه ده ؟ **جواب** : قرینه حالیه ده چه هغه مشاهده دحال د مخاطب ده ځکه دقول هغه چاته وئیلے شی چه په هغه باندے څه علامات(نخے )دقدوم ښکاره شوے وی.اودلته حذف جائزی دے دفعل

ځکه دلته په حذف دفعل قیام دسد مسدنشته.

**ووجوباسماعاً نحوسقیاًالخ** : اووجوبا سماعاهم حذف دفعل کیدے شی.

**تشریح** : حـذف وجـوبـی سـماعی دیـتـه وائی چه دیوے قاعدے اوضابطے ماتحت نه وی بلکه دعربونه په سماع باندے موقوف وی مثال دفعل چه حذف شوے وی دمفعول مطلق نه په حذف وجوبی سماعی سره لکه سقیاوغیره.دلته مصنف څلوراسماء ذکرکړی دی:

(۱) سقیاً ددے عامل حذف شوے دے ای سقاك الله سقیاً.

(۲) شکراً ددے عامل حذف شوے دے ای شکرت شکرا

(۳) حمداً ددے عامل حذف شوے دے ای حمدت حمداً.

(۴) رعیاًددے عامل حذف شوے دے ای ر عاك الله رعیا.

ددوی نـه فـعـل حذف شوے دے وجوباسماعاځکه دعربونه ددے فعلونوسماع نده شوے اودامـعـنـی دحـذف وجـوبـی سـمـاعـی ده.اوقرینه دلته په نفس حذف باندے داده. چه استعمال مفرداتودے. **سوال** : دلیـل دحـذف دافـعـال ددے مصادرسره عدم سمع ده نوعرب خووائی چه سقاك الله سـقـیـاوشـکرت لك شکراافعال ورسره ذکرکوی. **جواب ۱**– : داکلام دمولدینودے یعـنـی دهغـه خـلـقـو کـلام دے چـه هـغـوی خـالـص عـرب نـه وی اومـونـږ حذف پـه کلام دخالصوعربوکښ وایو. **جواب ۲** : حذف دافـعـال چه واجب دے دلته په هغه وخت کښ چه دامصادردلام جاره سره مستعمل شی لکه حمداله شکراله رعیاله نوپدے طریقے سره چه دوی مستعمل شی نودهیڅ چاپه کلام کښ ددے مصادروسره فعل ندے ذکر.نه په کلام دعربوکښ اونه په کلام دمولدینوکښ.

## بعض قواعد د مفعول مطلق

**قاعده** : (۱) مـصـدرچـه کـلـه فـاعـل یـامـصـدرتـه مـضـاف وی نودده فعل بـه حذف وی مثلا:سبحان الله ای سبحت سبحان الله.

**قاعده** : (۲) کـلـه مـفعول مطلق په تلفظ دفعل په ځاے راوړے شی مثال :ایماناًلا کفراای امن ولاتکفرسمعاوطاعةً.ای اسمع واطع. **قاعده** : (۳) ان مـع الـفـعـل مفعول مطلق نه واقع کیږی ځـکـه ان نـاصـبـه مـصـدریـه فعل په استقبال پورے مختص کوی اوتاکیدپه مصدرسره

کیدے شی چه کله پشان دمفهوم دفعل وی.

**قاعده** : (۴) مصدر په دوه قسمه دے ۱. متصرف او ۲. غیر متصرف. دمصدر متصرن نه مراد هغه مصدر دے چه فاعل نائب فاعل مبتداء خبر مفعول به واقع کیږی. مثال فی قلوبهم مرض فزادهم مرضاً. اوغیر متصرف صرف منصوب بنابر مفعولیت واقع کیږی مثال سبحان الله معاذالله. **قاعده** : (۵) بعض مصادر ددعادپاره استعمالیږی لکه ویله ویحه. **قاعده** : (٦) : ایضا چه کله په کلام کښ واقع شی نودامفعول مطلق دفعل محذوف وی لکه اض ایضا.

**قاعده** : (۷) مصدر کله کله امر یانهی یادعاء کښ واقع کیږی وجوبااوفعل به ترینه حذف وی مثلا قیامالاقعوداای قم قیامالاتقعدقعودا وبالوالدین احسانا.

**قاعده** : (۸) کله لفظ دکل په ځاے دمصدر قائم کیږی لکه فلاتمیلوکل المیل پدے مثال کښ اصلا مفعول مطلق المیل دے لکن دهغه په ځاے کل مضاف الی المیل دے. قائم دے.

**قاعده** : (۹) په لفظ دبعض کښ هم داقانون دے مثال وتقول علینابعض الاقاویل.

**قاعده**: (۱۰) کله ضمیر قائم مقام دمصدر گرځی مثال لااعذبه احدااى لا اعذب العذاب.

## التمرين لبحث مفعول المطلق

| | |
|---|---|
| کلااذادکت الارض دکادکا | اذارجت الارض رجا |
| قالواسبحان ربناانا کناظالمین | اذکروا الله ذکرا کثیرا. |
| کلمّ اللهُ موسیٰ تکلیما. | سلّموا تسلیما. |
| سعی لهاسعیها | وجاهدوافی الله حق جهاده |
| فقدفازفوزاعظیما. | وتحبون المال حباجما. |

وتاکلون التراث اکلا لما.

الواوحسب ماقبلهاتاکلون مضارع مرفوع و الواوضمیر متصل فاعل التراث مفعول به منصوب اکلامفعول مطلق منصوب لماصفت لاکلاوصفت المنصوب منصوبة.

---

**فصل** المفعول به وهو اسم ماوقع علیه فعل الفاعل الخ.

ترجمه: مفعول به هغه اسم دے چه واقع شوے وی په هغه فعل دفاعل.

**حل ترکیب** : المفعول به الف لام بمعنی الذی موصول مفعول صیغه داسم مفعول صفت به

جارمجرورنائب فاعل اسم مفعول سره دنائب فاعل نه شبه جمله صله کیږی دموصول موصول سره دصله نه مبتدا هواسم الخ جمله اسمیه خبرمبتدا.

**تشریح** : دویم قسم دمفاعیل خمسونه مفعول به ده مفعول به ئے ځکه دمفعول مطلق نه روستو ذکرکړه چه دفعل شدت اتصالٔ دمفعول به سره دے پس دمفعول مطلق نه.مفعول به په لغت کښې هغه شی ته وائی چه دهغه په وجه فعل شوے وی.اواصطلاحی معنی ماوقع فی الکتب. او الف لام په المفعول به کښې په معنی دالذی سره دے اومفعول په معنی دفعل سره دے اوبه جارمجرور ورله نائب فاعل دے نوتقدیردعبارت دارنګه شو الذی فعل به دغه شان تقدیرپه مفعول فیه اومفعول له اومفعول معه کښې هم دے.

**فوائد قیود:** په تعریف کښې اسم په منزله دجنس دے شامل دے معرف مفعول به لره اوباقی مفاعیلولره اووقع علیه فعل الفاعل په منزله دفصل دے پدے سره باقی مفاعیل خارج شو.

**سوال** : تعریف دمفعول به جامع خپلو افرادولره ندے خارج شوترینه ایاك نعبداياك مفعول به دے د نعبد،اوعبادت دعبادوپه الله واقع ندے. **جواب** : دلته مراد دوقع نه تعلق دے اوعبادت دعبادتعلق دالله سره دے. **سوال** : مررت بزید دمرورتعلق دزیدسره دے اوداخو مفعول به نده بلکه مجروردے . **جواب** : مراددتعلق نه بغیردواسطے دحرف جرنه به وی اوپدے مثال کښې تعلق سره دواسطے دحرف جرنه راغلے دے. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے ترکیب باندے چه ماضرب زیدٌ عمرا اودلته خونفی دتعلق راغلے ده. **جواب** : مرادځمونږه مطلق تعلق دے برابره خبره ده چه ایجابی وی اوکه سلبی وی ترکیب مذکوره په تعریف دمفعول به کښې داخل دے اوخارج ندے.

**اختلاف دنحاتو په عامل دمفعول به کښې.**

په عامل دمفعول به کښې څلورمذاهب دی:

(۱) اول مذهب دسیبویه دے چه عامل دمفعول به فعل دے هغه ورته نصب ورکړے دے.

(۲) مذهب دهشام دے چه عامل په مفعول به کښې فاعل دے اوفعل په فاعل کښې عامل دے فقط. (۳) د فراء دے چه عامل په مفعول به کښې فعل اوفاعل دواړه دی.

(۴) مذهب دبعض نحاتودے چه عامل په مفعول به کښې فاعلیت دے چه امرمعنوی دے.

حاصـل داشـو چـه مـذاهـب ثـلاثـه سابقه وائی چه عامل دمفعول به لفظی دے اوبعض نحات عامل معنوی وائی لیکن غوره مذهب دسیبویه دے.

**وقد یتقدم علی الفاعل** . : اومفعول به کله کله په فاعل باندے مخکښې کیږی.

حل ترکیب : ترکیب ظاهردے.

**تشریح** : دلیـل دفعل قوی دے عمل په معمول مقدم اومواخردواړوکښې کولے شی تقدیم دمـفـعول به په فاعل هم کیدے شی اوپه فعل باندے هم تقدم دمفعول به کیدے شی دابه کله جائزی وی مثـال لکه وحبه الحبیب اتمنیٰ.اوکله به واجب وی چه په مفعول به کښې داستفهام وغیره معنی وی مثال من رأیت من استفهامیه مفعول به مقدم رأیت فعل فاعل موخر. **سوال** : دامسئـلـه پـه بـحـث دفـاعـل کـښې ذکرشوے ده نوبیائے اعاده ولے اوکړه؟ **جواب** : هلته جداحیثیت ووچه دااحکام دفاعل نه وواودلته په جداحیثیت سره ذکرکوی چه دااحکام دمفعول به نه دی.

**وقدیحذف فعله لقیام قرینة جوازاً. الخ.**

ترجمه: اوکله عامل ناصبه دمفعول به حذف کولے شی چه قرینه موجوده وی.

**حل ترکیب** : قـدحرف تـحقیق برمضارع برائے تقلیل یحذف فعل مجهول فعله نائب فاعل لـقیـام قـرینه ظرف لغوه متعلق په یحذف جوازاپه اعتباردموصوف محذوفه سره چه حذفادے مفعول مطلق دیحذف و البواقی قیاسیة مبتداوخبر.

**تشریح** : کله کله حذف دعامل دمفعول به کیدے شی جوازاچه قرینه وی قرینه حالیه وی اوکـه مـقـالیـه وی مثـال دقـرینه حالیه لکه یوسړے مکے ته روان وی اوورته اووئیلے شی مکةَ مـکةَ دلتـه کـښې حذف دعامل ناصبه دمفعول به راغلے دے لوجے دوجوددقرینه حالیه نه چه هـغـه تـردیـددے یـعـنـی تـریـدمکة اومثال دقرینے لفظی لکه مصنف ذکرکړے دے لکه زیداً مفعول به اوحذف دعامل دلته ناصبه ددے راغلے دے لوجے دوجوددقرینے نه چه هغه سوال دسائـل دے دلتـه عـامـل نـاصـبـه دمفعول به په سوال دسائل کښې موجوددے ددے وجے نه په جـواب کـښې راوړلـو تـه ضـرورت نشتـه دے ځـکـه الـمـذکـورفـی السـوال کالمعادفی الجواب تقدیردارنگه شو اضرب زیدا.

**ووجوبافی اربعة مواضع الاول سماعی نحوامراءً ونفسه الخ.**

اووجوباحذف کولے شی په څلورومواضعوکښې اول دغه نه سماعی دے

**سوال:** حصرستاپه اربعه مواض کښې باطل دے ځکه ددے مواضع اربعه نه علاوه په نوروځایونوکښې هم حذف راځی لکه اخاك اخاك په صورت داغراء کښې ای انصراخاك یا الزم اخاك دارنګه په صورت دمدح کښې لکه الحمدللهای اعنی الحمید اوهمدارنګه په صورت دذم کښې لکه اعوذباللهمن الشیطان الرجیم ای اعنی الرجیم اوهمدارنګه په صورت دترحم کښې لکه مررت بزید المسکین ای اعنی المسکین نوددے څلوروصورتونونه علاوه نورمواضع هم موجوددی. **جواب:** اربع مواضع چه وئیلے شی نولوجے دکثرت نه نه دحصردوجے نه.

**الاول سماعی نحوامراءً الخ.** : اول دغه نه سماعی دے لکه امراء الخ.

**تشریح:** داحذف وجوبی په دوه قسمه دے ۱.سماعی ۲.قیاسی.دسماعی دپاره به سدمسدنه وی اودقیاسی حذف دپاره قائم مقام سدمسدوی سماعی ئے مقدم کړوپه قیاسی باندے لوجے دقلت نه ځکه قلیل مقدم وی په کثیرباندے الاول صفت دے موصوئے حذف دے چه الموضع دے سماعی منسوب بسوئے سماع مثال یعنی دعربونه سماع ددۓ داسے راغلے ده اوقیاس لره پکښې دخل نشته دے مثال امراءً ونفسه امراءً. مفعول به ده اوعامل ناصبه دده حذف شوے دے په حذف سماعی سره عبارت داسے دے په اعتبارداصل سره اترك امرا ونفسه.

**سوال:** ونفسه به خالی نه وی یابه تاکید وی دامراء اویابه عطف وی په ضمیرداترك هریوواحدنه صحیح کیږی ځکه فصل راځی په مابین دموکداوموکِد کښې په واوسره اوهرچه عطف دے داهم نه صحیح کیږی ځکه په ضمیرمرفوع متصل باندے عطف هله روادے چه کله دهغه تاکیدپه ضمیرمرفوع منفصل سره راغلے وی اودلته داسے ندے. **جواب:** دواړه احتمالین صحیح دی هرچه تاکیددے داروا دے اوفصل په واوسره ندے راغلے بلکه داواوپه معنی دمع سره راغلے ای اترك امرامع نفسه اویاداچه فصل رواه دے په قران کریم کښې هم داسے شته کلا سوف تعلمون ثم کلاسوف تعلمون.دویم احتمال هم صحیح دے دلته تاکیدپه منفصل سره راغلے دے تقدیراای اترك امرا وهوونفسه.وانتهواخیراً لکم دابل مثال دے دلته

خیرامفعول به ده اوحذف دعامل ناصبه ترینه شوے دے چه اقصدوادے ای اقصدواخیرالکم.

**سوال** : عامل دده خوذکردے چه وانتهوادے . **جواب** : وانتهواعامل ناصبه دخیرلپاره نه صحیح کیږی ځکه چه بیافسادمعنی راځی اومعنی به داسے شی: چه ځان تاسوبچ کړئ دخیرنه چه هغه توحیددے نومعلومه شوه عامل ناصبه دخیرامحذوف دے چه واقصدوادے انتهواياايها النصارى عن التثليث واقصدواخيرالكم وهو التوحيد.

**اهلاوسهلا** : دابل مثال دے اهلامفعول به ده اوعامل ناصبه دده حذف دے په حذف وجوبی سماعی سره ځکه عرب ددے سره فعل نه ذکرکوی اصل عبارت اتیت اهلا.دا هلا دپاره دوه معنین دی ۱ .قرابت اواقارب سره۲ .تعمیراوعمارت سره هرکله چه په معنی دقرابت لواقرب سره شی نومفعول به کیدل صحیح دی یعنی اتیت الاقارب لاالاجانب .او هرکله چه په معنی دتعمیراوعمارت سره شی نودابه هله مفعول به شی چه په معنی دمبنی للمفعول شی اوصفت دموصوف محذوفه شی چه مکانادے نواصل عبارت به داسے شی اتیت مکاناماهولا، اوسهلا .سهلا هغه ځمکه ته وائی چه هموار وی ددے په مقابل کښ حزنادے چه سختی ځمکے ته وائی ددے دپاره عامل ناصبه وطئت دے ای وطئت سهلا من البلاد لاحزنا.

**اختلاف نحات**:په دویم مثال کښ چه خیرالکم دے دنحاتو اختلاف دے اوپدے کښ څلورمذاهب دی: (۱) سیبویه. (۲)امام کسائی. (۳) فراء. (۴) بعض کوفیان.

(۱) سیبویه وائی مفعول به دعامل دده حذف دے.

(۲) امام کسائی وائی چه دامفعول به نده بلکه خبردفعل ناقص دے.چه یکن دے اسم دفعل ناقص اوفعل ناقص دواړه حذف دی تقدیردعبارت داسے دے عنده انتهوا عن التثليث يكن الانتهاء خيرالكم. (۳) فراء وائی داخیراصفت دمفول مطلق دے محذوفه چه انتهاء دے تقدیردعبارت داسے دے عنده انتهوا عن التثليث انتهاءً خيرالكم.

(۴) کوفیان وائی خیراحال دے دفاعل انتهوانه تقدیردعبارت داسے دے انتهوا عن التثليث حال کونکم قاصدین للخیر دلته مصنف مذهب دسیبویه مختاره کړے دے.

دریم مثال اهلاوسهلاکښ اختلاف دے ۱ .جمهور۲ .مبرد .جمهورنحات وائی دواړه مفعول به دی اوفعل ددوی حذف دے. مبردوائی دواړه مفعول مطلق دی اوفعل ددوی حذف دے اهلت

اهلا وسهلت سهلادی مصنف مذهب دجمهورونحاتو غوره کړے دے.

**الثانی التحذیر وهو معمول بتقدیر اتق تحذیر امما بعده الخ.**

ترجمه: دویم قسم تحذیر دے اودابه مفعول داتق مقدروی.

**حل ترکیب** :. الثانی مبتداء تقدیر خبر هو مبتدا معمول خبر بتقدیر اتق جار مجرور ظرف لغوه متعلق دمعمول حذر فعل مجهول ذلك اسم اشاره ومشارلیه نائب فاعل تحذیرا الخ مفعول مطلق اوذکر المحذر منه مکررا داعطف دے په حذر باندے واو عاطفه ذکر فعل مجهول المحذر منه ذوالحال مکررا حال ذوالحال سره دحال نه نائب فاعل.

**تشریح** :. دویم دهغه مواضع اربعه نه چه حذف دعامل ناصبه دمفعول به نه پکښ راځی دوجے دوجود دقرینے نه اودسد مسدنه په حذف وجوبی قیاسی سره موضع دتحذیرده .هرکله چه مصنف فارغ شو دبیان دهغه مواضعو سماعیونه چه عامل ناصبه دمفعول به پکښ کیدے شی په حذف وجوبی سماعی سره نوشروع ئے اوکړه په مواضع دحذف وجوبی قیاسی سره اودادری مواضع دی:۱ .تحذیر ۲ .مااضمر عامله ۳ .منادی.دویم په مواضعو اربعو کښ اواول په مواضع ثلاثو کښ تحذیر دے.

**تحذیر** په لغت کښ تخویف عن الشیء اوتبعیده عنه.اوپه اصطلاح هو معمول بتقدیر اتق داهغه اسم دے چه منصوب واقع شوے وی په اتق سره چه هغه مقدروی.

**سوال** : معمول صیغه داسم مفعول ده ذات مع الوصف اوهو ضمیر اراجع دے تحذیر ته هغه صرف وصف دے ځکه چه مصدر دے نو حمل دذات مع الوصف راغے په صرف وصف باندے اوداباطل دے. **جواب** : مراد په تحذیر سره لغوی تحذیر ندے بلکه اصطلاحی تحذیر دے اوپه اصطلاح کښ تحذیر دااسم دے دیوے نوع دانواعو دمفعول به نه. **سوال** : ضمیر داتق هم معمول داتق دے اوهغه خو تحذیر نه دے. **جواب** : مراد په معمول سره معمول دنصب دے اوضمیر داتق معمول درفع دے **سوال** : تقدیر په څنګه عمل کوی ځکه دے خو عمل نشی کولے **جواب** : دلته په عبارت کښ قلب دے وهو معمول باتق مقدرا.تحذیرامما بعده: تحذیرا منصوب دے مفعول مطلق دفعل مقدر دے چه حُذِرَ دے.اویا مفعول له دے دفعل محذوفه چه ذکر دے.

**اوذکر المحذر منه مکررا** .دادویم قسم دتحذیر دے اوداعطف دے تحذیرا باندے.

**سوال** : ذکرالمحذرمنه جمله ده اوتحذیرامفردنو څنګه عطف صحیح شو؟ **جواب** : په جانب دمعطوف علیه کښې حذرياذکرمقدردے تقديرداسے دے حذرتحذيراياذکرلك تحذيرا.

**سوال** : داعطف هم صحیح ندے ځکه په جانب دمعطوف علیه کښې ضميرراجع دے معمول ته اوپه جانب دمعطوف علیه کښې داسے ضميرنشته دے اوحکم دمعطوف اومعطوف عليه يووی. **جواب**:۱ ـ په جانب دمعطوف کښې عائدمقدردے ای اوذکر المحذرمنه من نوعه. ۲:**جواب** کله کله حکم دمعطوف اومعطوف عليه جداجداوی لکه رب شات وسخلتهادلته دخول درب ممتنع دے په معطوف باندے چه وسخلتها دے.جواب۳: دلته په معطوف کښې ضميرته ضرورت ندے راغلے ځکه دلته وضع داسم ظاهرراغلے ده په ځاے دضميرباندے.

**سوال** : په تعريف دتحذيرکښې ئے لفظ دتاراوړے دے اودارائي دتشکيك دپاره اودادتعريف سره منافي دے. جواب: اودلته دتنويع دپاره دے نه ده تشکيك دپاره.

**قاعده** : زده کړه داخبره چه تحذيرکله محذروی نوشرط پدے کښې ذکردمحذرمنه دے دپاره دايقاظ اوتنبيه دمخاطب اوچه تحذيرمحذرمنه وی نوشرط پدے کښې تکراردمحذرمنه دے بيا چه تحذيرمحذروی نومحذرمنه به يا(۱)اسم صريحی وی(۲) اويااسم تاويلی وی که اسم صريحی وی نوبيابه خالی نه وی(۱) يابه مذکوروی په واوسره(۲) اويابه په من سره اوکه تاويلی وی نوبيابه خالی نه وی(۱) يابه مذکوروی په واوسره(۲) اويابه په من سره ۳. اوياپه تقديرمن سره.مثل اياك والاسد .داپه اصل کښې اتق نفسك من الاسدوالاسدمن نفسك دجانب دمعطوف عليه نه من نفسك حذف شواواکتفاء اوکړے شوه په هغه اسدباندے چه په جانب دمعطوف کښې ذکردے تقديردعبارت داسے شو اتق نفسك والاسد بيااتق حذف شودوجے دضيقت دمقام نه داسے شواتق نفسك والاسدپاتے شوبيانفس حذف برائے تخفيف ځکه دادپاره دفصل راوړے شوے ووپه ضميردفاعل اودمفعول کښې نوهرکله چه اتق حذف شونونفس هم حذف شو نوك والاسدپاتے شوبياپه ځاے دمنصوب متصل ضميرراوړے شونواياك والاسدشودامثال دهغه دے چه تحذيرپکښې محذروی اومحذرمنه اسم صريحی وی اومذکوروی په واوسره.

نو الطريق الطريق : دامثال دهغه دے چه تحذيرمحذمنه وی اومکرروی داپښې اصل اتق

الطریق الطریق دلته فعل اتق دے حذف شوے دے دوجے دضیق المقام نه نو الطریق الطریق پاتے شو اودد ے قبیلے نه الجدار الجدار او الصبی الصبی هم دے.دزیادت فهم دپاره نقشه ده




ترکیب: اتق نفسك من الاسد والاسد من نفسك.

| اتق | نفسك | من | الاسد | واو | الاسد | من | نفسك مضاف |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فعل فاعل | مضاف مضاف الیه | جار | مجرور | عاطفه | معطوف بر نفسك | جار | مضاف الیه مجرور |

معطوف علیه — متعلق اتّق — متعلق ثانی اتق

معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه.

**الثالث مااضمر عامله علی شریطة التفسیر الخ.**

ترجمه : دریم قسم دمفعول به مااضمر عامله دے په شرط دتفسیرسره په مابعد کښی.

حل ترکیب:. الثالث مبتداء ماموصوله اضمر فعل نائب فاعل دده عامله علی شریطه التفسیر جار مجرور ظرف لغو متعلق اضمر فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه صله دموصول موصول سره دصله نه خبر دمبتداء.

**تشریح** : دریم ځاے دمواضع اربعو نه چه عامل ناصبه پکښی مفعول به حذف کولے شی

په حذف وجوبي قياسي سره مااضمرعامله على شريطه التفسيردے. په عبارت دمصنف كښې لفظ دشريطه ذكر دے ددے دوه مراده دي١ .مرادده شريطه نه شرط دے ٢.په معنى دطرز اوطريقے سره.كه اوله معنى مراده نواضافت دشريطه تفسيرته بياني دے مومعنى داشوه چه حذف دفعل دمفعول به كولے شي پدے شرط سره چه وروستوورته تفسيرموجودوي. اوكه دويمه معنى مراده شي چه حذف دفعل دمفعول به كولے شي په طرزاوطريقے دتفسيرددے فعل سره په وروستولفظ باندے پدے معنى سره اضافت دشريطه تفسيرته اضافت لامي دے. **سوال** : داحذف دفعل ولے واجب دے؟ **جواب** : دلته حذف دفعل ځکه واجب دے چه اجتماع رانشي په مابين دتفسير اومفسركښې . **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے تركيب چه جاء ني رجل اي زيددلته جمع راغلے ده په مفسراوتفسيركښې مفسررجل دے اوزيدتفسيردے اواي حرف تفسيردے. **جواب** : جمع هله جائزنده چه مفسرناشي وي دحذف نه اودلته مفسرناشي دے دابهام نه **تعريف دمااضمرعامله** : داعبارت دے دهغه اسم نه چه روستوترينه فعل وي اوياشبه فعل چه مشغول به وي داروستوفعل دعمل كولونه پدے مفعول به كښې پدے سبب چه يابه عمل كړے وي په متعلق ددے فعل كښې اويابه داسے فعل وي كچرے دافعل اويادد ے مناسب بل فعل مسلط كړے شي پدے اسم باندے نودے اسم ته به ضرورنصب وركوي امثله په كتاب كښې ذكردي. اول مثال : زيدا ضربته زيدامنصوب دے په فعل محذوفه سره چه ضربت دے اوددے تفسيرپه مابعدكښې ضربت دے پس داضربت بعينه كه كه په زيدامسلط نوزيدالره نصب وركوي. **دويم مثال** : چه نصب بعينه مابعدفعل نه وركوي بلكه دده مناسب چه دده سره په معنى كښې برابروي هغه مسلط شي نوزيدلره نصب وركوي مثال زيدامررت به دمررت مناسب جاوزت دے تقديردعبارت دارنګه شو جاوزت زيدامررت به. **دريم مثال**: چه دفعل لازم مسلط شي لكه دضربت لازم اهنت دے تقديردعبارت دارنګه شو اهنت زيداضربت غلامه. مثال دشبه فعل زيداانت ضاربه اي انت ضاربٌ زيدا.

**ولهذا الباب فروع كثيرة** هغه فروع پينځه صورتونه جوړيږي:(١) اختيار رفع مع جوازنصب.(٢) اختيار نصب مع جوازرفع.(٣)وجوب رفع.(٤)وجوب نصب.(٥)مساوات رفع ونصب. و التفصيل فى الكافيه لابن حاجب.

## صور اربعة ما اضمر عامله




**الرابع** المنادی هواسم مدعوّبحرف النداء لفظانحوياعبدالله ای ادعو عبدالله و حرف نداء قائم مقام ادعو.

ترجمه : څلورم دمفعول به منادی ده داهغه اسم دے چه رابللے شوے وی مسمی دده په حرف نداء لفظي سره لکه ياعبدالله معنى ددے ده ادعوعبدالله.

**حل ترکیب** : الرابع مبتداء المنادی خبرهو مبتداء اسم موصوف مدعو صفت موصوف سره دصفت نه خبربحرف النداجارمجرورظرف لغو متعلق مدعولفظاتميزدے دحرف ندانه يابمعنى ملفوظاسره دے حال دے دحرف نداء نه حرف النداء مبتداء قائم مقام ادعو خبر.

**تشريح** : څلورم دمواضع اربعونه منادی ده.تعريف المنادی داهغه اسم دے چه رابللے شوے وی مسمی دده په حرف النداء لفظي سره لکه ياعبدالله اوياپه حرف ندا تقديري سره لکه يوسف اعرض عن هذا.

**فوائد قيود**: په تعريف دمنادی کښ اسم په منزله دجنس دے معرف اوغيرمعرف ټولولره شامل دے مدعوبحرف النداء دفصل په منزله دے پدے سره هغه اسم خارج شو چه په حرف ندابانده نوی رابللے شوے لکه ادعوعبدالله. **سوال** : مرادمنادی نه منادی حقيقي به وی يعني هغه به وی چه صلاحيت داوازکولوپکښ وی نوخارج شونرنه دياسماء

یاارض یاجبال دوی کښ داصلاحیت نشته چه اوازورته اوکړے شی سره ددینه چه منادی واقع دی. **جواب**: منادی عامه دے حقیقی وی اوکه حکمی وی اودامذکورحکمی منادی ځکه دوی په منزله دهغه چادی چه په هغوی کښ صلاحیت دنداء وی. **حذف دفعل** په منادی کښ واجب دے ددوو وجونه۱ .منادی کثیر الاستعمال ده مناسب ورسره تخفیف دے په حذف دفعل سره.۲:په ځاے ددے فعل باندے حرف نداء قائم ده کچرے حرف ندا حذف نشی نوجمع به لازم شی په مابین دنائب اودمنوب کښ لکن پدے حذف دفعل کښ اختلاف دنحاتوشته دے. ۱- سیبویه وائی چه عامل ناصبه دمنادی فعل محذوف دے اوحرف نداد هغه قائم مقام دے. ۲. مبرد وائی چه عامل ناصبه په منادی کښ حرف نداء دے نه فعل دلته مصنف مذهب دسیبویه مختاره کړے دے.

**وحروف النداء خمسة یاء وایا وهیاوای وهمزة مفتوحة.**

ترجمه: اوحروف نداء پینځه دی یاوایاوهیاای همزه مفتوحه.

**حل ترکیب** :. وحروف النداء مبتداء خمسه خبریاوایاالخ دابدل دے دخمسه نه یاداعنی فعل مقدره مفعول به ده یاخبرمبتدأ محذوفی دے چه احد هااوثانیها الخ.ددے حروفوتفصیل به په بحث دحرف کښ راشی انشاء اللّٰه تعالی.

**وقدیحذف حرف النداء لفظانحویوسف اعرض عن هذا.**

**حل ترکیب** : قدبرائے تقلیل یحذف فعل مجهول حرف الندا نائب فاعل لفظامنصوب بنابرتمیزیابنابرحال منصوب.

**تشریح** :. کله کله حرف نداء حذف کولے شی چه قرینه وی مثال یوسف الخ په اصل کښ یایوسف الخ دلته قرینه دمقام حذف دحرف نداء دپاره وے که حرف نداء دلته مقدره نشی نویوسف به مبتداشی اواعرض عن هذابه خبرشی اوحالانکه اعرض صیغه دامرده انشاء ده داخبربغیردتاویل نه نه واقع کیږی لهذایوسف منادی بحذف حرف النداء اواعرض عن هذاجواب ندا.لکن دحذف دحرف نداء دپاره شرائط دی:

(۱) منادی به اسم جنس نه وی ځکه نداء داسم جنس قلیل الاستعمال ده په نسبت سره ندا دعلم ته نوکچرے دده نه حرف نداء حذف شی نوذهن سبقت نه کوی دے خبرته چه دامنادی ده

مثال یارجل یارجلا. (۲) منادی به اسم اشاره نه وی لکه یا هذاځکه اشاره پشان داسم جنس ده.
(۳) مستغاث نه نه وی هلته مقصودمددصوت وی اوحذف منافی دے دمددصوت سره.
(۴)مندوب نه نه وی پدے کښې هم مددصوت مقصودوی.

## مواضع حذف حرف النداء :

(۱)علم لکه یاالله پدے کښې اللهم وئیلے شی بعوض المیم عن الیاء.
(۲)علم بدون العوض عن الیاء لکه یوسف اعرض عن هذا.
(۳)ایّ چه موصوف وی په معرف باللام سره مثال ایها الرجل.
(۴)مضاف مطلق معرفے تهٔ لکه ربنااتنا،غلام زید افعل کذا.
(۵)موصولات لکه من لایزال محسنا احسن الیّ ای یامن لایزال الخ.فائده دمضمرات نداء شاذه ده.

واعلم ان المنادی علی اقسام الخ پوه شه چه منادی په اعتبارداعراب سره په یوخوقسمونوده. **حل ترکیب** :. اعل فِعل فاعل ان حرف المنادی اسن انّ علی اقسام ظرف مستقرخبرانّ فاء تفصیلیه ان حرف شرط کان فعل ناقص ضمیرپکښې اسم دده مفردامعرفه موصوف صفت خبرکان کان سره داسم اوخبرنه شرط.یبنی علی علامه الرفع جزاء یخفض فعل مجهول ضمیرمستترنائب فاعل بلام الاستغاثه جارمجرورظرف لغوه متعلق یخفض هکذایفتح بالحاق اِلفها.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شومصنف دتعریف دمنادی اودبیان دنداء نه نوشروع ئے اوکړه په اقسامودمنادی کښې نودارنګه ئے اووئیل واعلم ان المنادی الخ.دمنادی شپږاقسام مصنف بیان کړی دی: (۱) اول قسم منادی مفرده معرفه دلته دوه قیده دی۱ . مفرد۲ معرفه.دمفردنه مراددلته مقابل دمضاف اوشبه مضاف دے تشنیه اوجمع پکښې داخل دی.دمفرداقسام په تفصیل دالکلمه لفظ وضع لمعنی مفردکښې ذکرشوی دی فلانعیده. (۲) - قیدمعرفه ده معرفه عامه ده چه مخکښې ددخول دحرف نداء نه معرفه وی لکه یازیداوبعدخول حرف نداء معرفه شوے وی لکه یارجل حکم اواعراب دقسم اول:مبنی به وی علامه درفع سره مبنی به ځکه وی چه منادواقع ده په ځاے دکاف ضمیری باندے اوکاف ضمیری مشابه دے دکاف حرفی خطابی سره اوهغه مبنی دے نودابه هم مبنی وی اومرفوع به ځکه وی چه دمنادی

اودمعرب فرق راشی ځکه چه هغه مجروریامنصوب وی مثلایازید یارجل یازیدان یازیدون مصنفؔ یبنی علی علامه الرفع اووے چه ضمه لفظی اوتقدیری دارنگه الف اوواوتول پکښ داخل شی.

ویخفض بلام الاستغاثه نحو یالزید .

ترجمه : اومجرورکولے شی منادی په لام داستغاثه سره لکه یالزید.

**تشریح** : دویم قسم دمنادی منادی مستغاثه باللام ده لام استغاثه دیته وائی چه داستغاثه په وخت کښ په مستغاث باندے داخل وی اوعلامه دده داده چه همیشه به مفتوح وی اودمستغاث له لام به مکسوروی دپاره دفرق مثال یالزیدللمظلوم یالَللّٰهِ للمسلمین یاللمهاجرین. **سوال** : عکس دے اوشی. **جواب** : منادی مستغاثه په ځائے دکاف ضمیری په ځائے واقع ده اوپه ضمائرباندے چه لام داخل وی هغه مفتوح وی مثال له لك لکما.

**حکم اواعراب د قسم ثانی:** معرب به وی ځکه لام استغاثه لام جاره دے اودخواصو معظمه مکبره داسم نه دے پدے سره جهت داسمیت قوی کیږی اوجهت دمشابهت ضعیف کیږی نوددے وجے نه منادی مستغاثه به معربه وی.اومجروربه ځکه عمل دحرف جرپه مدخول خپل جروی.

ویفتح بالحاق الفهانحویازیداه. اومفتوح کولے شی منادی په الف استغاثه سره لکه یازیداه. **تشریح** :. دریم قسم دمنادی منادی مستغاثه بالالف ده حکم اواعراب دقسم ثالث مبنی برفتحه به وی ځکه په اخرددے کښ الف دے تقاضادفتحے دماقبل کوی نوددے وجے نه مبنی برفتحه به وی ځکه کمامر فی القسم الاول.

وینصب ان کان مضافایاعبدالله. څلورم قسم دمنادی :منادی مضاف یاعبدالله. پینځم قسم دمنادی :منادی شبه جمله مضاف یاطالعاجبلا .شپږم قسم دمنادی :منادی نکره غیرمعین یارجلاخذبیدی.حکم ددے دری واړواقسامو معرب منصوب به وی.معرب به ځکه وی چه اضافت اوشبه اضافت دخواصو معظموداسم نه دی الخ.منصوب به وی ځکه منادی په حقیقت کښ مفعول به ده اودمفعول به اعراب نصب وی.اوهرچه منادی نکره ده نودده مشابهت دکاف ضمیری سره نشته دے ځکه کاف ضمیری معرفه ده اونکره په ځائے دمعرفه

نه واقع کیږی لهذادا قسم دمنادی به معرب وی.

**وان كان معرفاباللام قيل ياايها الرجل ويااايتهاالمرأة..**

ترجمه : کچرے منادی معرف باللام وه نوداسی به وئیلے کیږی یاایها الرجل په مذکرکښ اویا ایتها المرأه په مونث کښ. **حل ترکیب** :. ان حرف شرط کان فعل ناقص اسم ضمیر مستترمعرفاخبرکان باللام جارمجرورظرف لغو متعلق معرفاکان سره داسم اوخبرنه شرط قیل فعل مجهول ایها الرجل وایتها المرأه معطوف معطوف علیه نائب فاعل قیل فعل سره دنائب فاعل اوموقله نه جزاء شرط.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف یوه قاعده بیانوی چه هرکله یواسم معرف باللام وی اومنادی واقع کولے شی نوپه مابین دحرف نداء اومعرف باللام کښ به ایهاپه مذکرکښ اوایتهاپه مونث کښ راوړلے شی دپاره دصحت ددخول دحرف نداء په معرف باللام باندے په ترکیب کښ الرجل او المرأه یعنی معرف باللام صفت وی اوایها اوایتهاموصوف وی بیاموصوف سره دصفت نه منادی. **سوال** : ایها اوایتهابه ولے راوړلے شی؟بین المنادی وحرف النداء. **جواب** :. حرف نداء په معرف باللام نه داخلیږی ځکه لازمیږی جمع ددوه الودتعریف چه ۱ .حرف ندا۲ .الف لام دی په اسم واحده کښ اودامنع دی. **سوال** :. ستاقاعده منقوضه ده په یاالله باندے دلته حرف نداء بغیردواسطے نه چه ایهادے په لفظ دالله داخلیږی اوجمع راځی دالتین دتعریف. **جواب** : لفظ دالله ددے قاعدے نه مستثنی دے داده دخصوصیاتودلفظ دالله نه ده.و التفصیل فی المطولات.

**ویجوزترخیم المنادی الخ.** : اوجائزدے ترخیم په منادی کښ.

**حل ترکیب** :. یجوزفعل ترخیم المنادی فاعل هومبتداحذف مصدرفی اخره ظرف لغومتعلق په حذف مصدرپورے و التخفیف متعلق ثانی دحذف مصدرسره دمتعلقین نه خبردمبتداء چه هو مبتداء سره دخبرنه جمله اسیمه خبریه.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف دخصائص دمنادی نه یوخاصیت ذکرکوی چه ورته ترخیم المنادی وائی. ترخیم په لغت کښ نرمی کولوته وائی اوپه اصطلاح وهو حذف فی اخر المنادی تخفیفا. **اقسام ترخیم** : ... ترخیم نه دوه قسمه دے ۱ .ترخیم فی المنادی ۲ .ترخیم

فی غیر المنادی په منادی کښې ترخیم بغیرد ضرورت نه هم جائزدے اوپه غیر المنادی کښې دضرورت شعری لوجے نه جائزدے فقط. بیاحذف دمنادی نه چه کیدے شی یابه حذف دحرف واحده وی لکه یاحارث کښې یاحاراویابه حذف دحرفین وی چه کله دمنادی په اخرکښې حرف صحیح اوماقبل ترینه حرف مده وی لکه یامنصورکښې یامنص وئیلے کیږی.

۳. یادمنادی په اخرکښې دوه حرفین وی چه دواړه زائدوی معالکه یاعثمان یاعثم وئیلے کیږی.

**ویجوزفی اخر المنادی المرخم الضم و الحرکة الاصلیة کماتقول فی یاحارثُ یاحارُ یاحارِ.** اوجائزدے په اخردمنادی مرخم کښې حرکت اصلی اول لکه ته به وائی یاحارث کښې یاحاراوضمه پکښې هم جائزده.

**حل ترکیب** :. یجوزفعل فی اخر المنادی المرخم جارمجرورظرف لغومتعلق یجوز الضمه معطوف علیه الحرکۃ الاصلیة موصوف صفت معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه فاعل یجوز.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف حکم دمنادی مرخم بیانوی چه په منادی مرخم باندے دوه حرکتونه وئیل جائزدی ۱. الضمه ۲. الحرکه الاصلیه. ۱. مبنی برضمه به وی ځکه منادی مرخم مستقله منادی ده اوحرف محذوف نسیامنسیابه اوګنړلے شی. ۲. حرکت اصلیه به ددے وجے نه جائزوی چه جعل دمحذوف حرف به کالملفوظ اوګنړلے شی په یاحارث کښې که مبنی برضمه شی نویاحارُبه ئیلے شی اوکه اعتباردحرکت اصلیه لره شی نویاحارِبه وئیلے شی.

**واعلم ان یا من حروف النداء قدتستعمل فی المندوب.**

ترجمه: پوه شه چه یادحروف نداء نه کله په مندوب کښې مستعملیږی.

**حل ترکیب** :. اعلم فعل فاعل ان حرف از حروف مشبه بالفعل لفظ یا بتاویل هذا اللفظ موصوف یاذو الحال من حروف مضاف النداء مضاف الیه دامجروردجارظرف مستقرمتعلق کائنة صفت یاحال موصوف سره دصفت نه یاذوالحال سره دحال نه اسم انّ قدتستعمل الخ خبرانّ. ایضامفعول مطلق دفعل محذوف چه آض دے هومبتداء المتضجع علیه الخ خبرفاتفریعیه لفظ وابتاویل هذااللفظ مبتداء مختصه الخ خبرلفظ یابتاویل هذا اللفظ مبتداء

مشترکةً الخ خبرو الباقی ظاهر.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف دحرف نداء چه یاده یو خصوصیت بیانوی چه یاحرف نداء مشهوره ده په حرف النداء کښ نوددے استعمال چه څرنګه په منادی کښ کیږی نودغه شان علی سبیل القله په مندوب کښ هم استعمال کیدے شی لکن ددے دپاره شرط دادے چه قرینه وی په مابین دمنادی اومندوب کښ چه هغه فرق راولی ددے دواړوترمینځ ورنه حرف نداپه مندوب کښ نشی استعمالیدے قرینه دمندوب دپاره په اخردده کښ الف به وی دپاره د مددصوت. **مندوب** په لغت کښ مندوب صیغه داسم مفعول ده هغه میت ته وئیلے شی چه دهغه محاسن اوخوبیانے بیانولے شی اوجړاپرے کولے شی ددے دپاره چه سامعین داموت دده امرعظیم اوګنړی اوجړیدونکی معذوراوګنړی.

**مندوب** په اصطلاح کښ : هو المفتفجع علیه بیا اووا ماذکره المصنفؒ فی الکتب بیا دا متفجع علیه په دوه قسمه دے ۱ .جودا ۲ .عدمامثال دوجوداواحسرتاه وامصیبتاه دچاچه مرګ چه کوم مصیبت اوحسرت موجودشوے وی په هغے ندبه کولے شی.مثال دعدمی یازیداه وازیداه دزیدپه مرګ اوپه عدم باندے اظهاردافسوس کولے شی.

**فرق دواو اودیاء:** واو مختص دے په مندوب پوری په منادی کښ نه مستعملیږی اویاعام ده په منادی کښ اومندوب دواړوکښ ددے استعمال کیږی.

**قاعده** : کله منادی حذف کیدے شی په وجوددقرینه سره لکه الایااسجدوادلته منادی محذوف ده چه الایاقوم اسجدوادے اصل قرینه دخول دحرندادے په فعل باندے.

**قاعده** : ۱ .لفظ دغلام۲ .اب ۳ .ام۴ .رب ۵ .صاحب وغیره وغیره.کله چه ددوی اضافت یادمتکلم ته اوشی نوپدے کښ څلور وجوه جائزدی:

(۱) سکون یاء یاغلامی یا ابی یا امی یاربی یاصاحبی.

(۲) حذف یاء اواکتفاء بالکسره یاغلامِ یاابِ یاامِ یاصاحبِ.

(۳) فتحه یاء یاغلامیَ یاابیَ یاامیَ یاربیَ یاصاحبیَ

(۴) تبدیل یابالف : یاغلاما یاابیا یاامیا یاربا یاصاحبا.

**قاعده** : یاابیَ یاامیَ یاپه تاء سره هم بدلیدے شی لکه یاابت یاامت.

قاعده(۱) مفعول به داسم صریح واقع کیږی مثلاوکلاجعلنا نبیا.
(۲) مفعول به ضمیرمتصل واقع کیږی مثلاوماارسلناك الاكافة الخ
(۳) مفعول به ضمیرمنفصل واقع کیږی مثلاایاك نعبدوایاك نستعین.
(۴) مفعول به مصدرموول واقع کیږی مثلاان الله لایستحی ان یضرب
(۵) مفعول به جمله واقع کیږی مثلاقال انی عبدالله.

## اقسام منادی




**قاعده** : کله کله حرف نداء حذف کیږی مثلایوسف اعرض عن هذا ای یایوسف السلام علیك ایها النبی ای یاایها النبی.

**قاعده** : په هره دعاء کښې حذف دحرف نداء کیدے شی مثلا ربنااوربی په اصل کښې یاربنا اویاربی.

# توابع المنـــــادی

**قاعده:** دمنادی معرفه نه روستو کچرے اسم صفت واقع شی

نودابه خالی نه وی یا به ......




**فائده:** دمنادی مفردے معرفے نه که روستواسم معطوف واقع شی

نودابه خالی نه وی :




## التمرين لبحث المفعول به

| | |
|---|---|
| وجعلنانومکم سباتا | یافرعون مثبورا. |
| رأیت احدعشر کوکبا | این شرکائکم الذین کنتم تزعمون |
| یخیل الیهم من سحرهم انهاتسعیٰ | ولقدرآه نزلة اخری |
| زعم الذین کفروا ان لن یبعثوا | یوسف اعرض عن هذا |
| یاایها الناس یاایها المرأة | یاقوم اعبدوالله |
| یاابت لاتعبد الشیطان | ایاك نعبد وایاك نستعین |
| وانتهواخیرالکم | اللهم مالك الملك تؤتی الملك من تشاء |

**نوټ**: په پینځه مواضعو کښې دمفعول به حذف جائز ندے:

(١) مفعول به متعجب منه وی مثال مااحسن زیدا.

(٢) مفعول به مقصود وی مثال دماضربت په جواب ضربت زیدا.

(٣) مفعول به مستثنی مفرغ وی مثال ماضربت الازیدا.

(۴) مفعول به عامل ئے حذف وی مثال خیراً لنا وشراً لاعدائنا.

(۵) مفعول به دافعال قلوب مفعول به وی مثال حسبنی منطلقا.

**فصل** المفعول فیه هواسم ماوقع فعل الفاعل فیه من الزمان والمکان ویسمی ظرفا. ترجمه: مفعول فیه هغه اسم دے چه واقع شوے وی فعل دفاعل په هغے کښې چه زمانه وی اوکه مکان وی اودیته ظرف هم وائی.

**حل ترکیب**:. المفعول فیه الف لام بمعنی الذی اسم موصول مفعول صیغه داسم مفعول صفت فیه جارمجرورنائب فاعل اسم مفعول سره دنائب فاعل نه شبه جمله صله دموصول موصول سره دصله نه مبتدا هو مبتدااسم مضاف ماموصوله وقع فعل ماضی فعل الفاعل مضاف مضاف الیه فاعل فعل فیه جارمجرورظرف لغومتعلق وقع من الزمان والمکان جارمجروربیان دماموصوله موصول سره دصله اوبیانه مضاف الیه دمضاف چه اسم دے مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه خبردالمفعول فیه شو .یسمی فعل مجهول هونائب فاعل ضمیرمستترنائب فاع ظرفامفعول به ظرف الزمان مبتداء علی قسمین جارمجرورمتعلق ثابته خبرمبهم خبرمتبدا محذوف چه احدهمادے هومبتداماموصوله لانافیه یکون فعل ناقص له خبرمقدم حدمعین موصوف صفت اسم موخریکون محدودخبردثانیهامبتداء محذوف.

**تشریح**: دمفاعیل خمسونه دریم قسم مفعول فیه ده. **سوال**:. تعریف دمفعول فیه جامع ندے خارج شوترینه مفعول فیه دشبه جمله فعل چه اسم فاعل وغیره دی. **جواب**:. دلته مراددفعل نه فعل لغوی دے چه حدث دے داتولولره شامل دے . **سوال**:. داخل شوپه تعریف کښې یوم الجمعه حسن دامفعول فیه نده اوظرف دے. **جواب**: دلته په تعریف کښې قیدالمذکورمحذوف دے یعنی فعل دفاعل مذکوره به پرے واقع وی پدے قیدسره داترکیب

خارج دے ځکه دلته فعل مذکورندے. **سوال** : یوم الجمعه صمت فیه ترے خارج شودلته فعل مذکورماسبق کښں نشته دے. **جواب**: دلته فعل محذوف دے دادقبیلے دمااضمرعامله علی شریطة التفسیرنه دے.

**فوائدقیود** : اسم په منزله دجنس دے معرف اوغیرمعرف ټولولره شامل دے داقیدوقع فعل الفاعل فیه دافصل دے پدے سره باقی مفاعیل خارج شو.

**ویسمی ظرفا** .دادویم نوم دمفعول فیه دے ظرف په دوه قسمه دے ظرف زمان کله چه دوی په جواب دمتی کښں واقع شی (۲)ظرف مکان.کله چه دوی په جواب داین کښں واقع شی.

**وظروف الزمان علی قسمین** . ترجمه: اوظروف زمان په دوه قسمه دی.

**تشریح** : ظروف زمان په دوه قسمه دی.(۱).محدودلکه یوم ولیل(۲).مبهم دهراوحین.ظروف مکان هم په دوه قسمه دی.(۱).محدودلکه دار، سوق، مسجد،مدرسه(۲).مبهم، یمین، خلف، امام، شمال، تحت، فوق.

**احکام** : ظروف زمان مطلقا تقدیرد فی قبلوی اومنصوب به وی مثال زمان محدودسافرت شهراً مثال زمان مبهم صمت دهراً ظروف مکان مبهم تقدیردفی قبلوی اومنصوب به وی مثال جلستُ خلفك وامامك اوظروف مکان محدودتقدیردفی نه قبلوی مثال جلست فی الداروفی المسجد وفی السوق **اختلاف نحاة** .کوم مفعول فیه کښں چه فی ملفوظ وی لکه جلست فی المسجدپدے کښں دوه مذهبه دی ۱ .جمهورنحات۲ .ابن حاجب وصاحب هدایت النحو.

**جمهورنحات** وائی دامفعول به ده په واسطه دجرسره اومفعول فیه نده ځکه مفعول فیه ددوی په نزدباندے هغه ده چه ماوقع فیه فعل الفاعل اوفی به پکښں مقدره وی تقدیردفی شرط دنصب دمفعول فیه ندے بلکه دمفعول فیه دپاره شرط دے پس هرکله چه فی ملفوظه شوه په ظرف کښں نودابه وی مفعول به په واسطه دحرف جرسره. ۲- **ابن حاجب** وصاحب هدایت النحو چه دمفعول فیه دپاره شرط تقدیردفی ندے بلکه دنصب دمفعول فیه دپاره تقدیردفی شرط دے لهذامفعول فیه ددوی په نزدباندے په دوه قسمه ده بتقدیرفی وبذکرفی که فی مقدره وی نومفعول فیه به منصوب وی اوکه فی ملفوظ وی نومفعول فیه به مجروروی.

☆☆☆




## التمرین لبحث المفعول فیه.

| | |
|---|---|
| انانخاف من ربنایوماعبوسا | وانذرهم یوم الازفة |
| فنادهامن تحتها | خذوازینتکم عندکل مسجد |
| انی دعوت قومی لیلاونهارا | وفوق کل ذی علم علیم. |
| لهم دار السلام عندربهم | ذات الیمین وذات الشمال |
| سبحوه.بکرة واصیلا. | مالك یوم الدین. |
| لمن الملك الیوم. | مابین ایدیهم وماخلفهم |
| ومن حیث خرجت | اللّٰهیعلم حیث یجعل رسالته. |

**المفعول له** هواسم مالاجله یقع الفعل المذکورقبله الخ.

: مفعول له هغه اسم دے چه دده له وجے نه واقع وی فعل مذکوره چه مخکښ ذکروی.

**حل ترکیب** :. المفعول له مبتداء هومبتدأاسم مضاف ماموصوله لام جاره اجل مضاف ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجارسره دمجرورنه ظرف لغومتعلق یقع یقع فعل الفعل موصوف المذکور الف لام موصوله مذکورصیغه داسم مفعول ضمیره نائب فاعل قبله مفعول فیه دمذکوردامجموعه صله دموصول موصول سره دصله نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه فاعل یقع فعل سره دفاعل اودمتعلق نه صله ماموصوله موصول سره دصله مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتدا مبتداء سره

دخبرنه جمله اسمیه خبریه خبرد المفعول له.وینصب فعل مجهول ه ضمیرنائب فاعل باجارتقدیر اللام مضاف مضاف الیه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف لغومتعلق دینصب ضربت فعل فاعل ه ضمیرمفعول به تادیبامفعول له ای حرف تفسیر للتادیب مفسرتادیبا قعدت فعل فاعل عن الحرب جارمجرورمتعلق قعدت جبنامفعول له ای حرف تفسیرللجبن مفسرجبنا.

**تشریح** : څلورم قسم دمفاعیل خمسونه مفعول له دے.**سوال**: تادیبا چه واقع شی په **جواب** دسوال دسائل کښی لم ضربتَ زیدانوداتادیبامفعول له دے اومخکښی ترینه فعل نشته دے. جواب : فعل مذکورعام دے حقیقتاوی اوکه حکماوی دلته حکمادے اصل عبارت داسے دے:ضربته تادیبا.

**وینصب بتقدیر اللام** : شرط دنصب، دمفعول له تقدیردلام دے ولے که مذکورشی نومفعول له به مجرورشی پدے کښی هم اختلاف دے پشان دمفعول فیه دمصنف په نزدبانددے مفعول له دوه قسمه دے: مفعول له بتقدیر اللام۲.مفعول له بذکر اللام.اودجمهورپه نزدمفعول له یوقسم دے چه لام پکښی مقدروی اوداشرط دصحت دمفعول له دے.

**سوال** : حروف تعلیل نورهم وو نوتخصیص دلام ئے ولے اوکړو؟ **جواب** لام کثیرالاستعمال ووپه نسبت سره نوروته نوددے وجے دده تخصیص اوکړواوحرف تعلیل من ،با، فی ،لام، دی.

**وعند الزجاج هومصدر .تقدیره ادبته تادیباوجبنت جبنا.**

**حل ترکیب** : عند الزجاج مضاف مضاف الیه مفعول فیه مقدم دمصدردپاره هومبتدا مصدرخبرتقدیره مبتدا ادبت تادیباجمله بتاویل هذاالترکیب معطوف علیه جبنت جبنا معطوف داټول بیاخبردمبتداء.

**تشریح**:. پدے عبارت سره مصنف دنحاتواختلا ف ذکرکوی په مفعول له کښی پدے کښی دوه مذهبه دی۱.جمهورنحات۲.امام زجاج نحوی.جمهورنحات وائی دامذکوره مثال دمفعول له دے. **امام زجاج** نحوی وائی چه په کلام دعربوکښی چه مفعول له ذکرشی نوپه هغے کښی تاویل کیږی په مفعول مطلق سره نوحاجت رانغے ذکردمفعول له ته بناپدے تادیبادامفعول مطلق دادبته دے اوجبنادامفعول مطلق دجبنت دے لکن مذهب دزجاج درست ندے ځکه چه

د تاویل دیو قسم نه په بل قسم سره دالازمه نده چه اول قسم ختم شي اودويم قسم جوړشي ددے دلیل دادے چه دحال نه تعبیرپه مفعول فیه سره کیږی اوسره ددینه چه دواړه مستقل قسمین دی مثال جاء نی زیدٌ راکبا ای جاء نی فی وقت الرکوب.

**فائده** : مصنفؒ دمفعول له دپاره دوه مثالین ذکرکړه اشاره ده اقساموداًمفعول له ته اول مثال دهغه مفعول له دے چه فعل شوے وی دپاره دحصول دمفعول له لکه ضرتبه تادیباضرب شوے دے دپاره دادب.دویم مثال دهغه مفعول له دے چه فعل حاصل شوے وی له وجے دوجوددمفعول له نه لکه قعدت عن الحرب جبناقعود حاصل شوے دے دوجے دجبن نه.

## التمرین لبحث المفعول له

(۱) یجعلون اصابعهم فی اذانهم حذر الموت.

(۲) لوانزلناهذا القران علی جبل لرئیته خاشعامتصدعامن خشیة الله.

(۳) فبظلم من الذین هادوا.

(٤) انَّ امرأة دخلت النارفی هرة.

(٥) ومن الناس من یشری نفسه ابتغاء مرضات الله.

**ترکیب** :. من جار الناس مجرور داپه اعتباردمتعلق سره خبرمقدم من اسم موصوله یشری فعل ضمیرمستترفاعل نفس مضاف ه ضمیرمضاف الیه دامفعول به فعل ابتغاء مصدرمضاف مرضات مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول له دیشری فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول موصول سره دصله نه مبتداموخرمبتداسره دخبرنه جمله اسمیه.

---

**فصل** المفعول معه هومایذکربعد الواوبمعنی مع لمصاحبته معمول الفعل.

ترجمه : مفعول معه هغه دے چه ذکرکولے شی پس دواونه په معنی دمع وی دپاره دمصاحبت دده دمعمول دفعل سره.

**حل ترکیب** :. المفعول معه مبتدأ هومبتدأیذکرفعل مجهول ضمیرمستترنائب فاعل بعد مضاف الواو موصوف باجارمعنی مضاف مع مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق د الکائنة نه صفت موصوف موصوف سره

دصفت نـه مـضـاف الـيـه دمضاف مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه يذكرلاجارمصاحبه مـضاف معمول الفعل مضاف اليه مفعول به فاعل دمصاحبه محذوف دے چه ضميرده دے اى لـمصـاحبتـه چـه راجـع مـفـعـول مـعـه تـه دے مـصـاحبه سره دفاعل اومفعول بـه نـه مـجرورجارجارسره دمـجـرورنـه ظرف لـغـو متـعـلـق يذكريذكرفعل سره دفاعل اومفعول فيه اومتـعـلـق صـلـه دمـوصـول مـوصـول سره دصله نه خبردمبتدا مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريـه خبـردمبتـدا چـه الـمـفعول معه دے جاء فعل البردفاعل واوبمعنى مع الجبات مفعول معه جئت فعل فاعل اناضميرتاكيدواوبمعنى مع زيدامفعول معه.

**تشريح** : پيـنـځم قسم دمفاعيل نه مفعول معه دے مفعول معه هغه دے چه ذكرشوے وى دپاره دمصاحبت دمعمول دفعل سره برابره خبره ده چه په صدوركښ وى اوكه په وقوع كښ وى يعنى برابره خبره چه دامعمول دفعل فاعل وى اوكه مفعول وى مثال دصدورلكه جاء البردو الجبات دويم مثال جئت اناوزيدً،دويم مثال استوى الماء و الخشبة.كفاك وزيدا درهمٌ

**سوال** : ستـاقـاعده منقوضه شوه په جاء نى زيدٌوعمرٌو اوضربت زيدا وعمروا دامذكورپس دواو نـه دى اومـصـاحـب دمـعـمـول فـعـل سره په صدوركښ اوپه وقوع كښ دے سره ددينه چه مـفـعـول مـعـه نـدى. جـواب : مـرادپـه مصاحبت دمعمول دفعل سره اشتراك دده دے دمعمول دفعل سره په صدور اووقوع كښ سره داتحاددزمان اودمكان نه لكه سرت وزيدا. سوال : مفعول مـعـه مـنـصـوب پـه واوسره دے لـكـه چـه شيخ عبدالقاهرجرجانى ورباندے تصريح كړے ده نـوشـمـارل دده دمـعـمـولاتودفعل نه صحيح ندى؟ **جواب** : كـلام دمـصنف بناء دے په مذهب دجمهـورباندے نه په مذهب دجرجانى باندے. **سوال** :. واوپه ځاے دمع ولے مقررشو؟مع به ئے وئيلے وو؟ **جواب** : واومختصردے دمع نه. **سوال** : فـاء هم مختصره ده دابه په ځاے دمع مقررشوے وه؟ **جواب** : اصـل ددے واو هـغـه واوعـاطـفـه دے چـه په هغے كښ معنى دجمعيت ده چه هغه مناسب ده دمعيت سره.

---

**فان كان الفعل لفظاوجاز العطف يجوزفيه الوجهان النصب و العطف.**

ترجمه: كچرے فعل لفظى ووواوعطف جائزوونوپدے كښ دوه وجى جائز[illegible]

**حل تركيب** :. فـاء تـفـسيـريـه ان حـرف شـرط كـان فعل ناقص الفعـ[illegible]

لفظیا خبرکان کان سره داسم اوخبرنه جملۀ فعلیه معطوف علیه واوعاطفه جاز العطف معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه یجوزفعل فیه ظرف لغومتعل یجوز الوجهان مبدل منه النصب والعطف معطوف سره دمعطوف علیه نه بدل دمبدل منه مبدل منه سره دبدل نه فاعل فعل فعل سره دفاعل نه جزادشرط.

**تشریح** : عطف جائزدے ځکه مانع دعطف نه نشته دے اونصب هم جائزدے بنابرمفعول معه. مثال جئت اناوزیدٌ وزیداً.زیدٌمرفوع وئیلے شی بناپدے چه دے عطف شی په ضمیرمرفوع متصل باندے اوعطف په ضمیرمرفوع متصل جائزدے.چه کله دهغه تاکیدراشی په ضمیرمرفوع متصل سره.اوزیدامنصوب هم جائزدے چه دامفعول معه شی.

.وان لم یجز العطف تعین النصب نحوجئت وزیدا.

ترجمه : اوکه عطف جائزنه وو نوتعین دنصب به وی بنابرمفعول معه مثال جئت وزیدا.

**حل ترکیب** : ان لم یجز العطف جمله شرط تعین النصب جزاء مثال جئت وزیداپدے مثال کښې وزیدامنصوب دے بنابرمفعول معه اوعطف جائزندے ځکه تاکیدندے راغلے په ضمیرمرفوع منفصل سره.

وان کان الفعل معنی و جاز العطف تعین العطف نحومالزیدوعمرٍو.

ترجمه : اوکه فعل معنوی وو اوعطف جائزوونوتعین دعطف به وی لکه مالزیدوعمرو.

**حل ترکیب** :. ان حرف شرط کان تامه بمعنی وجدوحصل الفعل فاعل کان معنیً تمیزیاحال فعل سره دفعل نه معطوف علیه جاز العطف معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه شرط تعین العطف جزاء نحومضاف مااستفهامیه مبتدالام جارزیدوعمر معطوف معطوف علیه مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقرخبر.

**تشریح** : کچرے دافعل معنوی ووپدے شان سره چه نه په لفظ کښې موجودوو اونه په تقدیرکښې بلکه دفحوی اودمفهوم دکلام نه معلومیږی اوعطف هم جائزوونومتعین به وی عطف جائزدے پدے معنی سره چه یو مانع نه وی موجوددعطف نه اومتعذروی نصب.

**سوال** : هرکله چه جاز العطف اووے نوتعین العطف ته څه ضرورت رانغے ځکه ددے ذکر اوعدم دواړه برابردی. **جواب** : په جازکښې اشاره ده دے خبرے ته چه په معنی دامکان عام

سره دے یعنی ممتنع به نه وی واجب به وی مثال مالزیدٍوعمروٍ یعنی ای شیء حصل لزیدٍوعمروٍ عطف دے پدے کبنں ځکه متعین دے چه پدے کبنں عامل لفظی دے چه لام جاره ځکه دا په حکم دتکریرکبنں دعامل کبنں دے پس حاجت نشته دے کرځولودده ته معمول دعامل معنوی ځکـه چـه حـمـل دعـامـل ضـعـیـفـه باندے په وخت دوجوددعامل قویـه کبنں ناجائزدے بغیردضرورت داعیه نه لیکن علامه زمحشری وائی دلته عطف مختاردے اومتعین ندے.

**وان لم یجز العطف تعین النصب نحو مالك وزیداو ماشانك وعمروا الخ.**

**ترجمه :** اوکه عطف جائزنه وونوتعین دنصب به وی لکه مالك وزیداالخ.

**حل ترکیب :** ان حرف شرط لم یجز العطف فعل شرط تعین النصب جزاء.

**تشریح :** پدے ترکیبونوکبنں عطف ناجائزدے اومتعین دے نصب اوعطف پدے وجه ناجائزدے چه لازمیږی عطف په مجروراندے بغیرداعادے دحرف جرنه اودناجائزدے په اول اودویم ترکیب کبنں ماشانك وعمرواکچرے عطف کوو په شانك باندے نولازمیږی خلاف دمقصوددمتکلم چه هغه تپوس دے دشان اودحال دمخاطب اودعمرونه اودانه چه دشان دمخاطب اود ذات دعمرونه.

**لان المعنی ماتضع.** پدے مثالونوکبنں فعل معنوی دے ځکه چه معنی داده چه ماتضع نوپدے سره لکه مصنف دفع دسوال کوی چه لام خوجاره دے اومتعلق غواړی نوجواب داشو چه لان المعنی ماتضع. **سوال :** داعبارت دلیل دے معنویه دفعل اومدعی مخکبنں ذکرنده.جواب : دلته مدعی مقدره ده تقدیردارنګه شوانماحکمنا بمعنویه الفعل فی هذه الامثله لان المعنی ماتضع. سوال : دا دلیل مطابق دمدعی سره ندے ځکه مدعی داده چه پدے دریو مثالونوکبنں به فعل معنوی وی اودلته دلیل دلالت کوی په اخری مثالونوکبنں.

**جواب :** عبارت په تقدیردمعطوف سره دے ما تصنع ومایماثله ای یصنع.

**قاعده ۱ :** مفعول معه په خپل عامل نشی مقدم کیدے.

**قاعده ۲ :** مفعول معه په خپل عامل اومصاحب باندے نشی مقدم کیدے.

## التمرين لمفعول معه

وَ الذين تبوّو الدار والايمان — يسبحن و الطير

فاجمعوا امركم وشركائكم. — لاتسافر انت وعدوك.

لاتاكل البطيخ و العسل — تصالح سعيدَ وخالدَ

**حل تركيب** : لانافيه تاكل فعل ضميرانت فاعل البطيخ مفعول به واوغيرعامل بمعنى مع مفعول معه فعل سره دفاعل اومفعول به اومفعول معه نه جمله فعليه خبريه




**فصل** الحال لفظ يدل على بيان هيئة الفاعل او المفعول به او كليهماالخ.

ترجمه : حال هغه لفظ دے چه دلالت کوی په بیان د هیئت دفاعل اویامفعول به اویاپه دواړوباندے الخ. **حل تركيب** :. الحال مبتدا لفظ موصوف يدل فعل فاعل على جاربيان مضاف هيئه الفاعل مضاف مضاف اليه معطوف عليه اومابعدمعطوفين دامضاف اليه دمضاف چه هيئت دے مضاف سره دمضاف اليه نه مضاف اليه دمضاف چه بيان دے مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف لغومتلق په يدل پور ے فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعليه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دمفاعل حقيقى نه نوشروع ئے اوکړه به

مفاعیل حکمی باندے چه دیته ملحقات دمفاعیل هم وائی.مفاعیل حکمی دیته وائی چه خصلت دمفعول به پکښ وی چه وقوع فضله فی الکلام وی ۲ .واقع به وی په موضع ثالث دکلام.

**حال** : په لغت کښ په دوه قسمه دے په معنی دکیفیت اوصنعت سره.

۲- تحویل اوانقلاب ته وائی. حال په اصطلاح : کښ په مختلف معانی سره راځی :

(۱) په اصطلاح دنحاتوکښ :ما یبین هیئة الفاعل او المفعول به او کلیهماته وائی.

(۲) په اصطلاح دصرفیانوکښ : زمانه ئے حال ته وائی.

(۳) په اصطلاح داهل معانی کښ حال امردے چه باعث وی په متکلم باندے په ایراد دخصوصیت زائده باندے په کلام کښ یعنی دمقتضی دحال سره مطابق خبره کول مثلا یوسړے خالی الذهن وی دهغه شك اوانکارنه وی نودهغه دپاره وئیلے شی زیدٌقائم داکلام ورله کافي دے.اوچه بل سړے وی دهغه په ذهن کښ شك دقیام دزیدوی نودهغه دشك دازالے دپاره به ورسره ادوات د تحقیق اودتاکیدراوړلے شی لکه انّ زیداقائمٌ اوکچرے یوسړے منکروی دقیام دزیدنه نودهغه دانکاردازالے دپاره به ادوات راوړے شی چه انکاردهغه زائل شی لکه ان زیدالقائمٌ.لکه ددے دوه قسمین نه دا ایاتونه: اناالیکم لمرسلون داپه صورت دتردد کښ وئیلے شوی دی اوبیاوائی اناالیکم لمرسلون داپه صورت دانکارکښ وئیلے شوی دی ځکه چه هغوی انکاراوکړوچه ما انزل الرحمٰن من شیء ان انتم الاتکذبون.

(۴) اوپه اصطلاح دمنطقیانوکښ حال عبارت دے داعراض ذاتیونه.

(۵) اوپه اصطلاح دحکماء کښ حال عبارت دے ددهغه څیزنه چه په بل شی کښ سرایت کوی. (٦) اوپه اصطلاح دمتکلمینوکښ حال عبارت دے دهغه نه چه واسطه وی په مینځ دموجود اودمعدوم کښ. (۷) اوپه اصطلاح دصوفیانوکښ حال عبارت دے دکیفیت دنفس نه چه تعبیرترینه کولے شی په قبض اوبسط سره. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے ترکیب چه اتیك و الشمس طالعة دلته طالعه حال واقع دے دالشمس نه اودانه فاعل دے اونه مفعول.

**جواب** : مراددلته څمونږه حال مفرده دے نه په مرکبه کښ.پس حال په دوه قسمه دے۱ .حال مفرده ۲ .حال مرکبه حال مرکبه دیته وائی چه جمله حال واقع شی برابره خبره ده چه

جمله اسميه وي اوكه جمله فعليه وي اوحال مفرده په اوه قسمه دے:

(۱) حال محققه. (۲) حال مقدره. (۳) حال مترادفه.
(۴) حال متداخله. (۵) حال موطئه. (٦) حال منتقله.
(۷) حال مواكده. ددے تفصيل مختصرا:

(۱) حال محققه ديته وائى چه فى الحال ثابت دذوالحال دپاره مثال : جاء نى زيدٌ راكبا.

(۲) حال مقدره ديته وائى چه حال دذو الحال دپاره فى الحال ثابت نه وى مثال : فادخلوها خالدين دلته خالدين حال دے لكن خلوددخول سره يو ځاے نه دے بلكه روستوبه وى اوس هسے فرض شوے دے.

(۳) حال مترادفه ديته وائى چه ديوذوالحال نه متعدداحوال راغلى وى لكه جاء نى زيدٌ راكباعاقلاضاحكاوغيره. (۴) حال متداخله ديته وائى چه ذو الحال متعددوى اوحال هم متعددوى ديوذوالحال نه حال واقع اوبل حال دمخكښ حال دضميرنه واقع وى اوهغه ضميرذوالحال واقع وى.اوروستوترينه بل حال واقع وى مثال راشدامهديا.

(۵) حال موطئه ديته وائى چه په خپله مقصودنه وى اوتوطئه اوتمهيدوى دپاره دبل مثال انزلناه قرأناعربيادلته قرأناحال توطئه دعربيا حال دپاره دے.

(٦) حال مواكده ديته وائى چه چه نه منتقل كيږى داحال دذوالحال نه مثال جانى زيدٌعطوفا.
(۷) حال منتقله ديته وائى چه منتقل كيږى داحال دذوالحال نه مثال جانى زيدٌراكبا.

**فوائدقيود:**

الحال مايبين په منزله دجنس دے تميز،صفت،حال وغيره پكښ داخل شو اوداقيد چه هيئه الفاعل پدے سره تميزخارج شوځكه چه هغه دهيئت دفاعل نه بيان نه كوى بلكه دذات دفاعل اوذات دمفعول نه بيان كوى.اوداقيد چه هلته مضاف شوفاعل ته پدے سره خارج شوصفت د مبتداء لكه زيدن العالم اخوك. **سوال** : ستاپه تعريف كښ صفت داخل شودارنګه صفت دمفعول مثال جاء نى زيدٌ راكبٌ يارئيت زيداراكبادوى صفت دفاعل اوصفت دمفعول بيانوى.

**جواب** :.دلته قيدد حيثيت مراددے يعنى حال به بيانوى دهيئت دفاعل اودمفعول به

ددے حیثیت نـه چـه فـاعـل دے اومـفـعـول بـه ده اوصفت ددے حیثیت نه هیئت دفاعل اودمفعول به نه بیانوی چه دافاعل اومفعول به دی. **سوال** : هغه حال دتعریف نه خارج شو چه دمفعول مطلق نه واقع وی لکه ضربت الضرب شديدادارنګه حال دمفعول معه نه دارنګه حال دمضاف اليه نه مثال لکه جئت وزيداراکبين اومثال دمضاف اليه نه ان يأكل لحم اخيه ميتا.

**جواب** : مرادفاعل اومفعول به سره عام دی حقیقی وی اوکه حکمی وی داتول پکښ داخل دی اوخارج نـدی ځکه دوی مفعول به حکمی دی اومفعول معه کښ دفاعل سره په صدورکښ شریك وی نوفاعل دے حکمی.

---

**وقد يكون الفاعل معنويانحوزيدٌفي الدارالخ.** اوکله فاعل معنوی وی لکه زيدٌ في الدار.

**حل ترکیب** :. قدحرف تحقیق به مضارع براے تعلیل یکون فعل ناقص الفاعل اسم یکون معنویات خبریکون لام جاره ان حرف مشبه بالفعل معناه اسم انّ زیداستقرفی الدارخبرانّ کذاخبرمقدم الفعول به مبتدابه مبتداموخران حرف معناه اسم انّ المشاراليه الی بمعنی الذی المشـاراليـه شبـه جـمـلـه خبـرصلـه دموصـول موصـول سره دصلـه نـه مبتداقائمـاحـال هـوزيـدمبتدااوخبـرجـمـلـه اسميـه خبـريـه خبـردمبتداالعـامل موصوف فـی الحـال ظرف مستـقـرمتـعـلـق پـه الـكـائـن پـورے داصفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مبتدافعل معطوف عليه معنی فعل معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه خبر.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف اشاره کوی چه فاعل اومفعول به کښ تعمیم دے دوی بـه يا لـفـظـي وی يـامـعـنـوی وی لکن دلته مصنف د لفظی اکتفاء په امثلوسره کړے ده.فاعل لـفـظـی اومـفـعـول بـه لـفـظی دیته وائی چه فاعلیت دفاعل اومفعولیت دمفعول په اعتباردلفظ اومـنـطـوق دکـلام سـره وی اوبـیـادامـلـفـوظ عام دے حقیقتاوی اوکه حکماوی ددے مثال لکه ضـربـت زیـداقـائـمـا دلته فاعلیت دتا اومفعولیت دزیدداپه لفظ اومنطوق دکلام کښ دی اوحال تـریـنـه هـم واقـع شـوے دے دتـانـه هـم صـحـيـح دے اودزيـدنـه هم صحیح دے داحـال چـه قـائـمـادے.بـل مثال زيدفی الدارقائمادامثال دلفظی دے چه ملفوظ حکمی وی دلته قائماحال واقـع دے دهـغـه دضـمـيـرنـه چـه مستتـردے په ظرف کښ اوضمیرمستترملفوظ دے حـکـمـانـودلتـه قـائـمـاحـال دزيـدنـه نه دے ځکه زيدمبتداده بلکه دهغه ضمیرنه دے چه کوم

متعلق دفی الدارد ے چه هغه استقرد ے دهغه دضمیرنه حال واقع دے. اوفاعل معنوی اویامفعول معنوی هغه ته وائی چه مستفادوی د فحوی دکلام نه اوپه نظم دکلام کښ نه لفظاوی اونه تقدیراوی. دد ے مثال هذازیدٌ قائمادامثال دمعنوی دی ځکه مفعولیت دزیدپه اعتباردهغه معنی سره دے چه مستفادده د فحوی دکلام نه چه هغه ته اشاره نده راغلے په لفظ دکلام کښ چه هغه اشیرد ے اوانبه دے په هذاکښ هاپه معنی انبه دے اوذاپه معنی داشیرد ے نوشوه زید مفعول به معنوی اوقائماترینه حال دے تقدیردعبارت داسے دے اشیرالی زیدوانبه علی زیدقائما.و العامل فی الحال الخ.

**عامل** دحال به یافعل وی ځکه چه دے اصل دے په عمل کښ مثال ضربت زیداقائمااویابه شبه فعل وی فعل عام دے چه ملفوظ وی اوکه مقدروی.اودشبه فعل نه مراد چه ورته دلته معنی دفعل وئیلے شویده اسم فاعل اسم مفعول صفت مشبه اسم تفضیل مصدرظرف جارمجروراسماء افعال اوهرهغه شی چه معنی دفعل ترینه اخستے شی لکه حرف ندا،حرف تنبیه ،اسم اشاره،تمنی،ترجی وغیره وغیره مثلاً هٰذازیدٌقائمانوقائماکښ عامل اشیر اوانبه دے یازیدٌ قائماکښ ادعوا اواطلب معنی دی وغیره وغیره.

---

**و الحال نکرة ابداو ذو الحال معرفة غالباً الخ.**

ترجمه: اوحال به نکره وی همیشه اوذو الحال به معرفه وی غالبا.

**حل ترکیب** :. الحال مبتدا نکره خبرابدامفعول فیه ذو الحال مبتدأ معرفه خبرغالبامفعول فیه یاحال یامنصوب بنزع الخافض کاف جاره ماموصوله رئیت فعل فاعل فی الامثله المذکوره جارمجرورظرف متعلق رئیت فعل سره فاعل اودسره دمتعلق نه صله دموصول شوه موصول سره دصله نه مجرورجار جارسره دمجرورنه ظرف مستقرمتعلق ثابت خبردمبتدامحذوفے چه هذادے.

**تشریح** :. پد ے عبارت سره مصنفؒ دحال اوذوالحال مقام په ترکیب اوکلام کښ ذکرکوی حال به همیشه نکره وی اوکچر ے معرفه واقع شو ے وه نوپه هغے کښ به تاویل په نکره سره کولے شی مثال مررت به وحده ای منفردا.اوذوالحال به غالبامعرفه وی اوکله به نکره هم واقع کیږی هغے ته اشاره مصنف په روستوعبارت سره کړ ے ده.

**دلیل** : حـال بـه نـکـره وی ځـکـه ۱ .مقـصـوددحال نـه تقیددحدث منسوب دے ذوالحال تـه نـوداحـاصـلیـږی پـه نـکـره سره نـوحـاجـت نشتـه معرفه ته.۲ .حال په اصل کښ خبردے اواصل په خبرکښ تـنـکـیـروی اوذوالحال به معرفه وی ځکه دے محکوم علیه دے اواصل په محکوم علیه کښ تـعـریف دے غـالبـاپـه غـالـب استـعـمال کښ به ذو الحال معرفه وی اویاپه غالب اوقاتو کښ به معرفه وی.

## مواضع دنکارت د ذو الحال:

(۱) ذو الحال به نکره موصوفه وی مثال جاء نی رجل من بنی تمیم فارسا.

(۲) ذو الـحـال بـه مـغـنـی وی دتـعـریف نـه مثال لـکـه داقـول داللّٰہتعالی شوفیهایفرق کل امرحکیم امرامن عندنادلته امراحال واقع دے دکل امر نه.

(۳) ذو الحال به داستفهام نه روستوراغلے وی مثال هل اتاك رجل راکبا

(۴) چه تقدیم دحال راغلکے وی په ذو الحال مثال جاء نی راکبا رجلٌ .

(۵) چه واقع شی حال پس دالانه مثال ماجاء نی رجل الاراکبا.

---

**فان کان ذو الحال نکرة یجب تقدیم الحال علیه نحوجاء نی راکبارجلٌ**

ترجمه : کچرے ذوالحال نکره وی نوتقدیم دحال پرے واجب دے لکه جاء نی راکبارجل.

**حل ترکیب** :. ان حـرف شرط کان فعل ناقص ذوالحال اسم کان نکره خبرکان داجمله فعلیه شـرط شـویـجـب تـقـدیـم الحال علیه دامجموعه جزاء کیږی دشرط لام جاره ان مصدریه ناصبه لاتـلـتـبـس فـعـل فـاعـل فـی الـصـفـه متعلق فعل فی حالت النصب داهم متعلق فعل فعل سره دفاعل اوسره دمتعلقین نه بتاویل مصدرمجرورجارسره دمجرورنه متعلق یجب.

**تشریح** : دلیـل ددے مسـئـلـے دادے چـه حـال اوذوالـحـال په اصل کښ مبتدا اوخبروی اومبتـدا چـه نـکـره وی نـوتقدیم دخبرپرے واجب دے نودغه شان تقدیم دحال په ذوالحال واجب دے.

۲. وجـه داده چـه دحـال التبـاس رانشـی دصـفـت سره پـه حـالـت نـصبی کـښ لکـه ضربت رجلا مـجـرداعـن ثـیـابـه دلتـه دانـه مـعـلومیږی چـه دامجرداحال دے درجلانـه اوکـه صفت د رجلا دے.

**سوال** :. حالت رفعی اوحالت جری کښې ولے تقدیم واجب دے هلته التباس نه راځی ځکه داعراب نه پته لګی حال منصوب وی مثال جاء نی رجل راکبا اومررت برجل راکبا. **جواب** : حالت رفعی اوحالت جری محصول دی په نصبی باندے طرداللباب. **سوال** :.ستاقاعده منقوضه ده پدے ترکیب باندے جاء نی رجلٌ وزیدٌراکبین ذو الحال پدے کښې نکره ده چه رجل دے اوتقدیم دحال پرے ندے راغلے. **جواب** :. دا حکم په هغه ځائے کښې دے چه حال پکښې مشترك نه وی په مابین دمعرفے اونکرے کښې اودلته حال مشترك دے بین المعرفه و النکره فلایجب تقدیم الحال علی صاحبها.

---

**وقد تکون الحال جملة حبریة نحوجاء نی زیدٌ وغلامه راکبٌ اویر کب غلامه.**

ترجمه: اوکله حال جمله خبریه وی مثال الخ.

**حل ترکیب** :. قدتکون مر مراالحال اسم تکون جمله خبریه موصوف صفت خبرتکون.

**تشریح** :. په لفظ دقدکښې اشاره ده چه حال اکثرمفردواقع کیږی اوکله کله به جمله هم واقع کیږی مراددجملے نه جمله خبریه ده لکه مصنف پرے تصریح کړے ده انشائیه جمله حال نه واقع کیږی. **دلیل** : غرض دحال نه بیان دهیئت دفاعل اویادمفعول به دے اودا چه څرنګه حاصلیږی اودا چه څرنګه حاصلیږی په مفردسره نودغه شان حاصلیږی په جمله سره هم.اوانشائیه جمله حال نه واقع کیږی ځکه حال مربوط وی دذو الحال سره اوپه جمله انشائیه کښې ربط نه وی. سوال:. جمله خبریه مستقله بنفسهاده اوحال مربوط وی دذو الحال سره نوربط ورله پکاردے اودلته مصنف دهغے ذکراونکړو؟ **جواب** : دامسئله اختصارامصنف ذکرکړے ده پدے کښې تفصیل دے.فیطلب فی المطولات اومونږبه ددے ذکرپه صورت دجدول سره اوکړوانشاء الله فیمابعد.

---

**وقد یحذف العامل لقیام قرینة کما تقول للمسافر سالماغانمااى ترجع سالماغانما:** حل ترکیب:. مر مرارا.

**تشریح** :. اوکله کله حذف دعامل دحال کولے شی په وخت دوجوددقرینه کښې قرینه حالیه وی اوکه مقالیه وی مثال دقرینه حالیه سالماغانمااى ترجع سالماغانماقرینه دلته حال دمسافردے.اومثال دقرینه مقالیه بلی قادرین علی ان نسویَ بنانه دلته قادرین حال واقع دے

اوحذف دعامل ترينه شوے دے چه نجمع دے ځکه مخکښ ذکرشوے دے ایحسب الانسان ان لـن نجمع عظامه نوتقدیرداسے شوبلی نجمعهاقارین.دلته ترجع فعل اوضمیردانت فاعل ذو الحال دے اوسالماغانماحال دے اوغانما داهم دے اویاغانماصفت دسالما دے.

(۱) **قاعده** : جـمهورعلماء وائی حال اسم جامد اومشتق دواړه راتلے شی مثال فتمثل لها بشراسویا.بشرا موصوف یاحال سویاصفت .

(۲) **قاعده**: کـلـه چـه حـال ماضی مثبت واقع شی نولابدی به وی دقدنه لفظا مثال جاء نی زیدٌ قدرکب فرئیته اویاتقدیرامثال جاؤکم حصرت صدورهم ای قدحصرت صدورهم.

(۳) **قاعده**: څـرنـګـه چـه فـاعـل ذوالـحال واقع کیږی نودغه شان نائب فاعل هم مثال توکل الفاکهة ناضجة .

(۴) **قاعده**: مبتدا هم ذو الحال واقع کیږی مثال زیدٌرایباحسنٌ.

(۵) **قاعده**: ذو الحال مجروربالحرف واقع کیږی مثال مررت بهندجالسةٌ

(٦) **قاعده**: حـال متـعـددهم راځـی مثـال ان الله یبشـرك بیـحـی مـصـدقـابـکلمة من اللهوسیدا وحصوراونبیا.

(۷) **قاعده**: حال په اعتباردجاری کیدوسره په ذو الحال باندے په دوه قسمه دے حقیقی یعنی بنفسه مثال فتبسم ضاحکا۲ .باعتبارمتعلق مررت بالدارقائماسکانها.

(۸) **قاعده**: خبر ذوالحال واقع کیږی مثال: هذاالهلال طالعا.

(۹) **قاعده** :دحال نـه کـلـه کـلـه عـامـل پـه حذف وجوبی سره حذف کیږی.مثال زیدٌ ابوك عطوفا ای احقه عطوفا.

(۱۰) **قاعده**: حـال چـه جـمـلـه واقـع شـی نـوپـه دوه شرطـونوباندے به وی۱ .جمله خبریه. ۲-رابط به پکښ وی.


جمله حاليه.
اسميه
فعليه
بالواو و الضمير
بالواوفقط
مضارع
ماضی
١. جاء زيدوهوراكبٌ
كنت نبياوادم
مثبت
منفی
٢. جئت واناراكبٌ
بين الماء والطين
بالضميروحده
٣. جئتَ وانت راكبٌ
جاء نی زيديضرب
بالواو والضمير
بالضميرفقط
بالواوفقط
جاء نی زيدٌ
جاء نی زيدٌ
جاء نی زيدٌ
ومايتكلم غلامه
، مايتكلم غلامه ،
ومايتكلم عمروٌ
مثبت
منفی
بالواو والضمير
بالضميرفقط
بالواوفقط
جاء نی زيدٌ وقدخرج غلامه
جاء نی زيدٌ قدخرج غلامه
جاء نی زيدٌ وقدخرج عمروٌ
بالواو والضمير
بالضميرفقط
بالواوفقط
جاء نی زيدٌ وماخرج غلامه
جاء نی زيدٌ ماخرج غلامه
جاء نی زيدٌ وماخرج عمروٌ.

## التمرین لبحث الحال

| | |
|---|---|
| جاؤاكم حصرت صدورهم | وسخّرلكم الشمس و القمردائبين |
| ربناماخلقت هذاباطلا | ياايها النبى انارسلنٰك شاهداومبشراً |
| خلق الانسان ضعيفا | فتبسم ضاحكا من قولها فتم ميقات ربه اربعين ليلةً. |
| لاتقربوا الصلاة وانتم سكارىٰ | فاستقيماو لاتتبعان. |
| انى يكون لى غلام. | ولم يمسسنى بشر |
| ومـاارسـلناقبلك من المرسلين الاانهم ليأكلون الطعام. | فتمثل لهابشراسويا. |
| ان الله يبشـرك بيحى مصدقابكلمة من الله وسيداوحصورا. | اشهدان لااله الاالله وحده. |
| ادخلواالباب سجدا. | فرجع موسى الى قومه غضبان اسفا |
| فخرج منهاخائفايترقب | للطاغين مأبالابثين فيهااحقابا. |
| ان يأكل لحم اخيه ميتا | ملة ابراهيم حنيفا. |

ورأيت الناس يدخلون فى دين الله افواجا.

ترکیب : ورئیت الناس یدخلون فی دین الله افواجا.

رئیـت فـعـل فاعل الناس مفعول اول یدخلون فعل واحدضمیرذوالحال فی جاردین مضاف لفظ الله مـضـاف الیـه افـواجـاحـال حـال سـره دذوالـحال نه مفعول ثانی رئیت فعل سره دفاعل اوسره دمفعولینونه جمله فعلیه خبریه.

تمت بحث الحال بعون الملك ذوالرحمة و الجلال.

---

**فصل** التميزهونكرة تذكربعدمقدارمن عدداوكيل اووزن الخ.

ترجمه : تمیزدایوه نکره ده چه ذکرکولے شی پس دمقداردعددونویاکیل نه اویادوزن نه

**حل ترکیب** : التـمـيـزمبتـداء هـومبتـدانـكره موصوف تذكرفعل مجهول هى ضميرذو الـحال بعدمضاف مقدارمبين من جارعددمجرورمعطوف عليه كيل اووزن مساحه معطوفات اوغيرذٰلك مبيـن مـن جارماموصوله فيه خبرمقدم ابهام مبتداء موخرمبتداء سره دخبرنه جمله



اسمیه صله دموصول موصول سره دصله نه مجروردجار جارسره دمجرونه ظرف مستقربیان شودمبین مبین سره دبیان نه دا هم عطف شوپه ماقبل باندے معطوف علیه سره دمعطوفات نه مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف مستقربیان دمبین مبین سره دبیان نه مضاف الیه دبعدمضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه دتذکر الخ فعل سره دنائب فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه حال شوذوالحال چه هی دے ذوالحال سره دحآل نه فاعل دفعل فعل سره دفاعل فاعل اومفعول به فیه نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبرد هو مبتدا مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه خبرشود التمیز.

**تشریح** : بل دملحقاتودمفاعیلونه تمیزدے تمیزپه لغت کښ جداوالی ته وائی اوپه اصطلاح کښ داهغه اسم دے چه رفع دابهام کوی دهغه معنی موضوع له نه اومصنف په نزدمعنی اصطلاحی ذکرکړے ده هونکره تذکربعدمقدار الخ.تمیزپه دوه قسمه دے (۱).چه واقع به وی بعدمفرد.(۲)- بعدجمله: قسم اول په دوه قسمه دے مفردمقدار اومفردغیرمقدار (۱):رفع دابهام کوی دمفردمقدار(۲).دمفردغیرمقدار نه پس قسم اول چه رفع دابهام کوی دمفردمقدارنه پس دامفردبه یاتام وی په تنوین سره یاپه نون تثنیه سره اویاپه نون جمع سره اویاپه اضافت سره دابه بیایاعددی وی یابه غیرعددوی مثال دعددی لکه عندی عشرون درهمانوعشرون عدد دے تام دے په نون دجمع سره پدے کښ ابهام دے اودابهام درهما سره رفع شو. **او مثال** دغیرعددمقدارچه تام وی په تنوین سره لکه رطل زیتاپه رطل کښ ابهام دے اوزیتاسره رفع دابهام راغلے ده اومثال دموزون چه ابهام پکښ وی اوتام وی په نون دتثنیه سره لکه منوان سمنامثال دکیل قفیزان براداهم تام دے په نون دتثنیه سره مثال دمصاحب لکه عندی جریبان قطنامثال دمقیاس وعلی التمرة مثلهازبدا .

**سوال** : تمیزرفع دابهام کوی پدے اشیاء مذکوره کښ اوپدے مقادیروکښ ابهام نشته دے.

**جواب** : مرادپه مقادیرسره مقدورات دی.

وقدیکون عن غیرمقدار الخ.اوکله تمیز رفع دابهام کوی دغیرمقدارنه لکه خاتم حدیدادلته په خاتم کښ ابهام ووځکه چه خاتم دحدید هم وی اوذهب اودفضه هم وی

نوحديدورلره تميزواقع شو.ترکیب ئے ظاهردے.

**وفيه الخفض اكثر** ترجمه : اوپدے قسم دتميزكښ جراكثردے يعنى كثير الاستعمال دے ځکه غرض دتمیزنه رفع دابهام ده اودا چه څنګه حاصليږى په نصب سره نودغه شان حاصليږى په اضافت سره اوسره دمزيدفائدے نه چه تخفيف دے .

**وقد يقع بعد الجملة لرفع الابهام الخ.** : قسم ثانى دتميز چه واقع کيږى پس دجملے نه.

**حل تركيب :** ظاهردے.

**تشريح :** اومراد دجملے نه جمله فعليه ده دلته مصنف درى مثالونه ذكركړه ځکه داقسم تميزدرے قسمه دے تميزپه مميزپورى خاص وى مثال طاب زيدنفسادنفس نه مراد هم دغه زيددے اويابه دمتعلقاتودمميزنه وى تميزمثال طاب زيدٌعلمااويابه ددواړواحتمال لرى مثال طاب زيدٌاباو التفصيل فى المطولات.

**(١) قاعده** تميزپه نزدبصريانوباندے نكره وى ځکه رفع دابهام په نكرے حاصليږى اودكوفينوپه نزدباندے پكښ عموم دے معرفه هم واقع کيږى مثال سفه نفسه بصريان وائى چه داپه تاويل دمنفرداحال دے تميزندے .

**(٢)قاعده** تميزمحول عن الفاعل هم رائحى اشتعل الرأس شيبااصل عبارت اشتعل شيبك الرأس دارنګه طاب زيدنفسا.

**(٣)قاعده** تميزمحون عن المفعول هم رائحى فجرنا الارض عيونااصل فجرنا عيون الارض .

**(٤)قاعده** تميزمحول عن المبتدا هم رائحى انااكثرمنك مالا.اى مالى اكثرمنك.

**(٥)قاعده** تميز هميشه مفردوى.

**(٦)قاعده** تميزبه په مميزنه مقدم کيږى.

**(٧)قاعده** تميزدمميزنه تاكيدنه واقع کيږى.

**(٨)قاعده** تميزجارمجرور اوظرف نه واقع کيږى.

## التمرين لبحث التميز

رئيت احدعشر كوكبا — بعثنامنهم اثنی عشر نقيبا

اناا كثرمنك مالا — قل نارجهنم اشدحرا

واعقبهم نفاقا — ايهم اشدعلى الرحمٰن عتيا

فان طبن لكم عن شیء منه نفسا — ذرعهاسبعون ذراعا

فاجلدواهم ثمانين جلدة — انّ هذااخی له تسع وتسعون نعجة

فلن يقبل من احدهم ملأ الارض ذهبا — سخرهاعليهم سبع ليال وثمانية ايام

**فصل** المستثنى لفظ يذكربعدالاواخواتهاليعلم انه لاينسب اليه مانسب الی ماقبلها الخ. : مستثنى يولفظ دے چه ذكركولے شی پس دالا اوداخواتودډينه. ددے دپاره چه ظاهرشی چه نسبت ده ته نشی كيدے دهغه چه نسبت ماقبل ته شوے دے.

**حل تركيب** :. المستثنى مبتدا لفظ موصوف يذكرفعل ضميرنائب فاعل بعدمضاف الامعطوف عليه واخواتهامضاف اليه معطوف معطوف سره دمعطوف عليه نه مفعول فيه ديذكرلام تعليليه يعلم فعل مجهول ان حرف ازحروف مشبه بالفعل ه ضميرشان اسم انّ لاينسب فعل مجهول ضميرنائب فاعل دامجوعه خبردانّ انّ سره داسمه اوخبرنه بتاويل مفردسره نائب فاعل دليعلم فعل سره دنائب فاعل نه بتاويل مصدر مجرورجارسره دمجرورنه ظرف لغومتعلق يذكرفعل سره دنائب فاعل اومفعول فيه اومتعلق نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبردمبتدا مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

**تشريح** :. بل دمتعلقاتودمفاعيلونه مستثنى ده مستثنى په اغت كښ جداكړے شوے ته وائی اوپه اصطلاح كښ داهغه اسم دے چه ذكرشوے وی پس دالااوداخواتودالانه داتعريف اعتباری دے داخوات نه مراد

(۱) خلا. (۲) عدا. (۳) ماخلا. (۴) ماعدا. (۵) حاشا. (٦) ليس. (۷) لايكون.

ددينه ماقبل ته مستثنى منه وائی اومابعدته مستثنى وائی غالباليكن مشهورپه ادوات داستثنى كښ الادے ځكه مصنف تعين دالاؒوكړو.

**وهوعلى قسمين متصل وهوماخرج عن متعددبالاّواخواتهانحوجاء القوم الازيداً.**

**حل ترکیب** :. هـو مبتـداء علی قسمین باعتبار متعلق خبر متصل خبر دمبتدا محذوفے دے چه احد هـمادے.۲- یا بـدل دقسـمیـن نـه دے ۳- مـفعول به داعنی فعل مقدره هو مبتداء ماموصوله اخرج فعل مجهول ضمیرده نائب فاعل عن متعددظرف لغومتعلق اخرج داجمله فعلیه صله دموصول شوه موصول سره دصله نه خبر دمبتداء.

**تشریح** : پس دا مستثنیٰ پـه دوه قسـمـه ده :۱.متصل۲.منقطع.متصل مستثنی دیته وائی چـه دهغـے اخـراج شـوے وی دمتـعـددنـه بـرابـره خبره ده چـه دامتعددمذکوروی اوکـه مقدروی.

**سوال** :. اخـراج خـو هسـے هـم دمتـعـددنـه کیـږی نـوذکرکول دعن متعددپس داخرج نـه زائـددے ذکـرتـه ضـرورت نشته دے. **جواب** :- دا بیـان دتـفـصیـل چـه لـفظاوتقدیراچه دلته داعبـارت مـراددے لـکـه ابـن حـاجـب پدے تـصـریـح کـړے ده چـه فالمتصل هو المخرج عن متـعـددلفظااوتقدیرا.مثال دمتعدد لفظی جاء نی القوم الازیدا اومثال دمتعددتقدیری ماجاء نی الازیدٌ په اصل کښ عبارت داسے وو:ماجاء نی القوم الازیدا.

---

**ومنقطع وهو المذکور بعدالاو اخو اتهاغیرمخرج عن متعددلعدم دخوله فی المستثنی منه.**

**حل ترکیب** :. هـو مبتداء الف لام موصولی مذکوراسم مفعول ضمیرده نائب فاعل هغه ذوالـحال بعدالاواخواتهامفعول فیه دمذکورلام جار عدم مضاف دخوله مضاف مضاف الیه فی المستثنی منه جارمجرورمتعلق دخوله مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجارسره دمجرورنه متعلق مخرج مخرج سره دنائب فاعل اومتعلقینونه مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمضاف الیه نه حال دذوالحال اسم مفعول سره دنائب فاعل اومفعول فیه نه صله دموصول موصول سره دصله نه خبر دمبتدا چه هودے.

**تشریح** : مستـثـنـی مـنـقـطـع هـغه اسم دے چه ذکرشوے وی پس دالااواخوات ددنه چه مخرج به نه وی دمتعددنه مثال جاء نی القوم الاحمارا.

## تحقیقی مقام

ذده کړه داخبره چه چه په تفصیل مستثنی متصل اومنقطع کښ دنحاتواخلاف دے پدے کښ دوه مذهبه دی ۱.عام نحات ۲.محققین نحات.عام نحات وائی چه مستثنی متصل دیته

وائی چه مستثنی داخل وی په مستثنیٰ په منه کښ .اومنقطع دیته وائی چه مستثنی داخل نه وی په مستثنی منه کښ دابه داسے وی که مستثنی دجنس د مستثنی منه نه وو نودا مستثنی متصله شوه اوکه دجنس نه نه وونودامنقطع ده محققین نحات وائی:که مستثنی داخل وه په مستثنی منه کښ قطعاقبل الاستثناء نه نودابه متصله وی اوکه خارج وه مستثنی د مستثنی منه نه قطعانودامنقطع ده اوپه دواړوصورتونوکښ برابره خبره ده که دجنس نه وی د مستثنی منه اوکه نه وی.

**واعلم ان اعراب المستثنی علی اربعة اقسام الخ.**

ترجمه: پوهـ شه یقینااعراب د مستثنی په څلورقسمه دے.

**حل ترکیب** :- اعلم فعل فاعل انّ حرف از حروف مشبه بالفعل اعراب المستثنی اسم دانّ شوعلی اربعة اقسام داخبردانّ شوباقی ترکیب واضح دے.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شومصنفؒ دتعریف اوداقسامودمستثنی منه نه نوشروع ئے اوکړه په تعریف اواقساموددمستثنی کښ نوپدے عبارت سره ئے شروع اوکړه په اعراب دمستثنی کښ نووے وئیل دارنګه اعلم ان الاعراب الخ.

**اعراب دمستثنی** څلورقسمه اول نصب (۲).نصب بنابراستثنی دویم اعراب باعتباربدل (۳).اعراب علی حسب العوامل(۴) .جر.

**تفصیل** : قسم اول چه نصب دے دابه په څلورومقاموکښ راځی اول مستثنی متصل وی واقع وی بعدالااوکلام موجب وی مثال جاء نی القوم الازیدا(۲).مستثنی منقطعه وی مثال جاء القوم الاحماراکلام جب وی اوکه غیرموجب وی دغیرموجب مثال دادے:ماجاء نی القوم الاحمارا(۳).مستثنی په مستثنی منه مقدم وی مثال جاء نی زیدان القوم کلام موجب برابره خبره ده چه کلام موجب وی اوکه نه مثال دغیرموجب ماجاء نی الازیدااحد (۴). مستثنی واقع بعدخلاوعداپه نزداکثرونحاتوباندے اوپاپس دماعدااوماخلالیس لایکون نه .مثال جاء القوم خلازیداعدازیداوماخلازیداماعدازیدا،جاء نی القوم لیس زیدالایکون زیدا چه ددینه تول نهه صورتونه جوړشوپه څلورومقاموکښ مستثنی به منصوبه وی وجوباپه اول ددریو صورتونوکښ به منصوبه وی ځکه مستثنی بعدالانده مګرمفعول به ده یعنی مشابه ده

مفعول به سره په فضیلت کښې اواعراب دمفعول به نصب وی نودد ے به هم اعراب نصب وی اوبدل اعراب احتمال دلته نشته دے چه دمبدل منه اعراب ورکړے شی اودخلا اودعدانه روستو مستثنی به ځکه منصوبه وئی چه اکثر نحات وائی دافعلین دی خلا یخل عدا یعدعدوا چه معنی ئے ده تجاوز فاعل ددوی به ضمیر مستتروی په دوی کښې ددوی نه مابعد مستثنی مفعول به وی . او بعض نحات وائی چه خلااوعدادحروف جاره نه دی نولهذا مستثنی به مجروروی بعد هماوماعدا اوماخلا فعلین دی په قرینه ددخول دمامصدریه سره پدوی باندے .

مستثنی به وروسته ددوی نه منصوبه وی بنابر مفعولیت. اولیس اولایکون فعلین دی دافعال ناقصه نه متثنی واقع بعد هماخبرددوی وی په باب داستثناء کښې اسم ددوی به ضمیر مستتروی پدوی کښې.

**سوال** :. دخلانه وروستو مفعول به نه راځی ځکه دافعل لازمی دے. جواب : خلا په معنی دجاوز سره دے اوجاوز فعل متعدی دے. **سوال** : خلااوعداافعال دی اومستثنی واقع پس ددوی نه مفعول به ده فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله شوه اودجملے دپاره اعراب وی نوددوی څه اعراب دے؟ . **جواب** : دد ے اعراب نصب بنابر حالیت دے. **سوال** :. بیا لابدی ده دلفظ دقد ځکه جمله حالیه چه فعل پکښې فعل ماضی وی نوقد پکښې لازم وی. **جواب** : دلته قدمقدر دے .

**فائده** : پدے اول صورت په اعراب دمستثنی کښې مصنف دوه قیده لګولی دی:۱ .بعدالابه واقع وی۲ .په کلام موجب کښې به وی. هرکله چه اول قید چه بعدالابه وی ځکه بعدالاواقع نه شی بعد غیروغیره وسوی وسواء وغیره نه واقع شی مستثنی نومجروربه وی. دویم قید چه کله کلام موجب وی اوکه غیرموجب وی نونصب دمستثنی بیاواجب ندے بلکه نصب اوبدل دواړه جائزدی لکه دد ے بیان روستوراځی.

---

**وان كان بعدالافى كلام غيرموجب وهو كل كلام الخ .يجوزفيه الوجهان النصب و البدل عما قبلها** . ترجمه: اوکه مستثنی بعدالاپه کلام غیرموجب کښې وه نوجائزدی پکښې وجهان نصب اوبدل دماقبل نه.

**حل ترکیب** : ان حرف شرط کان فعل ناقص ضمیرذو الحال اسم کان بعدالامفعول فیه

فی کلام غیرموجب.خبرهومبتداکل مضاف کلام موصوف یکون فیه نفی صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مضاف الیه دمضاف مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداواوحالیه المستثنی منه مبتدادمذکورخبرداجمله اسمیه خبریه حال شودضمیردکان نه کان سره داسمه اوخبرنه شرط یجوزفیه الوجهان جزاء، النصب خبردمبتداء محذوف چه احد همادے دامعطوف علیه و البدل عماقبلهامعطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه بدل دالوجهان شو.مبدل منه سره دبدل نه فاعل دیجوز.

**تشریح** :. دویم قسم دمستثنی نه په اعتباردإعراب سره چه جائزدی پکښ وجهین جوازدنصب اواختیاردبدل هغه مستثنی ده چه واقع وی بدالا اوکلام غیرموجب وی اومستثنی منه به مذکوروی مثال ماجاء نی احد الازیداً والازیدٌدلته مراددبدل نه بدل بعض دے نه بدل کل اودکلام موجب نه مرادهغه کلام دے چه هغه کښ نفی نهی استفهام وی اومستثنی منه به مذکوروی ولے که مستثنی منه مذکورنه وی نودهغه اعراب به وروستوراځی بحسب العامل به وی پدے قسم دمستثنی کښ نصب جائزبنابراستثناء اوبدل جائزدے ځکه مانع ورلره نشته دے لکن بدل مختاردے ځکه چه مابعدالانه حمل شی په بدل باندے نواعراب دده به بالاصاله شی اوکه حمل شی په استثناباندے نواعراب دده به بالواسطه شي اواستحقاق داعراب بالاصاله اولی دے داعراب بالواسطے نه.

**سوال** : بدل په حکم دتکریردعامل کښ وی اودابه خالی نه وی یابه تکریردعامل کوے اویابه نه کوے که کوے تکریردعامل نومعنی نه صحیح کیږی اوکه تکریردعامل نه کوے نوبیابدل نه صحیح کیږی. **جواب** : دلته تکریردعامل وایولکن بغیردحرف نه. **سوال** : بدل تابع دمبدل منه وی نواعراب دده څنګه بالاصاله وی؟داخوبالتبع وی. **جواب** : مرادبالاصاله سره نظردمقصوددمتکلم دے ځکه مقصودپه نظردمتکلم سره بدل وی اومستثنی غیرمقصودوی.

**وان کان مفرغابان یکون فی کلام غیرموجب و المستثنی منه غیرمذکور کان اعرابه بحسب العوامل تقول ماجاء نی الازیدٌ الخ.**

ترجمه: اوکچرے مفرغ وی چه روستودالانه په کلام غیرموجب کښ واقع وی اومستثنی

منه مذكورنه وي نواعراب دده به بحسب العوامل وي. حل تركيب :. تركيب واضح دے.

**تشريح** :. دريم قسم دمستثنى نه په اعتبارداعراب سره چه وي به په اعتباردعواملو سره منصوب مرفوع مجرور كه عامل دمستثنى منه تقاضادرفع كوله نو مستثنى به هم مرفوع وي على هذا القياس الباقى مثال ماجاء ني الازيدٌومارئيت الازيدا ومامررت الابزيد.

ديته مستثنى مفرغ وائى ځكه عامل دمستثنى منه فارغ وي دپاره دعمل په مستثنى كښ.

**سوال** : ديته مفرغ له وئيل پكاروو؟ **جواب** : دلته مرادهم دغه ده چه مستثنى مفرغ له ده اګرچه مشهوره ده په مستثنى مفرغ سره . **سوال** :. عوامل جمع ده اواطلاق دجمع كم از كم په دريو باندے كيږى نو مطلب داشو چه مستثنى به معربه ګرځى په حسب دعواملو سره چه درى وي اودامعنى خطاء ده. **جواب** : الف لام په العوامل براے جنس دے مراد جنس عوامل دى نه جمعيت. **دليل** : مستثنى قائمه ده په مقام دمستثنى منه باندے لهذا اعراب دهغے به نولهذااعراب دهغے به اخلى ځكه شي چه قائم شي په مقام دغيرنو اخلى حكم دغير

---

**وان كان بعدغيروسوى وسواء وحاشاعند الاكثر كان مجرورا نحوجاني القوم غيرزيد الخ.** ترجمه : اوكچرے مستثنى روسته دغيراوسوى اوسواء اوحاشانه په نزداكثروواقع وي نو مجروربه وي. حل تركيب :. مرّ مرارا.

**تشريح** : څلورم قسم دمستثنى نه اعتبارداعراب سره هغه ده چه مجروربه وي مستثنى پس دغير اوسوا اوسواء نه ځكه دوى مضاف كيږى اوروستودوى نه مضاف اليه راځى اومضاف اليه مجروروي دغه شان دحاشانه روستوبه هم مجروروي په اكثر استعمالاتو كښې يابه په مذهب د اكثرنحاتو باندے ځكه دے حرف جردے اودحرف جرنه روستو مجروررا ځى اوبعض نحات وائى چه ددينه وروستوبه منصوب راځى ځكه دے فعل دے اوضميرپكښې مستترهغه ورلره فاعل دے اووستوترينه به منصوب وي ځكه مفعول به واقع وي.

---

**واعلم ان اعراب غير كاعراب المستثنى بالا.**

ترجمه : پو هـ شه يقينااعراب دغيرپشان داعراب دمستثنى دے په الا سره.

**حل تركيب** : اعل فعل فاعل ان حرف از حروف مشبه بالفعل اعراب غير مضاف مضاف اليه اسم انّ كاف جاره اعراب مضاف المستثنى مضاف اليه باجاره الابتاويل هذا اللفظ مجروردا ظرف لغو

متـعـلـق مسـتـثـنـى مستثنى اسم مفعول ضميرنائب فاعل داشبه جمله صله دموصول موصول سره دصـلـه نه مضاف اليه دمضاف دابيامجرورِدجارسره دمجرورنه متعلق دثابت مقدره خبرانّ.انّ سره داسم اوخبرنه بتاويل مفردمفعول به داعلم.

**تشريح** : هـركـلـه چـه مـصـنف فارغ شودمستثنى نه په اعتباردإعراب سره نوشروع ئـے اوكړه په اعـراب دغيـركـښ.اعراب دغيربيانوى ځكه داسم متمكن دے اعراب ضرورت لرى په ادواتوداستثنى كـښ دالااعـراب بـه نـه بيـانـوى ځـكه داحرف دے اعراب نه قبلوى.اوخلااوعداماخلا ماعداليس فعل مـاضـى دى اومـاضـى دمبـنـى والـى پـه وجه هم اعراب نه قبلوى اولايكون مضارع ده دهغه اعراب په اعتباردعواملوسره ويمجزومايامنصوبااوحاشاعند الاكثرحرف جردے هم اعراب نه قبلوى پدوى كښ صـرف غيـرپـاتـے شـودده اعـراب بيـانـوى اعـراب دغيـرپشانّ داعـراب دمستثنى دے په الاسره بـنـابرتـفسيـرمـذكـوره بـانـدے كـوم ځـائے مستثنى مـنـصـوب وى وجوبااوچرتـه چـه جوازدنصب اواختياردبـدل دے نـودے بـه هـم هغه ځـائے كښ داسـے وى وغيره وغيره. **استعمال** دغيـرپه كلام دعربوكښ په دوه طريقـے سره كيږى(١).صفتى (٢).استثنائى دغيرصفتى معنى داده چه دلالت كوى پـه ذات مبـهـمـه بـانـدے چـه ماخوذوى ورسره دبعضى صفاتونه اودامغايربه مقابل دهغه اسم شى چه كـوم مقابل دفعل اودحرف دے (٢).غيراستثنائى معنى داده چه حمل شى په الابانـدے ياالاپده حمل شى نومعنى صفتى به مرادنه وى بلكه معنى استثنائى به مرادوى چه هغه مغايرت دے.برابره خبره ده چـه مـغـايـرت ذاتـاوى اوكـه صـفتـاوى كـلـه چـه الاپـه معنى دغيرشى مثال ددے لـوكـان فيهماالهة الاالله لفسدتا دارنـگـه لاالـه الاالله لـكن الا چه په معنى دغيرسره وى نوددے دپاره درى شرطونه دى اول دالانــه مـخـكــښ بــه جـمـع وى(٢).غيـرمـحـصـورعـددبـه وى جـمـع (٣).تـعـذرداستـثـنـاء بـه وى متـصـلااومـنـقطعا.اوغير چه په معنى دالاسره وى نوددے دپاره څه شرط نشته په مثال مذكوره كښ درى واړه شرطونه موجوددى.الهة جمع ده(٢)جمع مذكوردغيرمحصور العدد(٣).استثناء متعذره ده نـوالاپـه مـعـنـى دغيـرسـره دے اوفساددمعنى دادے چه لخرجتاعن النظام اودلته الاداستثناء دپاره نه صـحيـح كيـږى ځـكـه فسـاددمـعنى به لازم شى معنى به داسـے شى :كچرے وے په ځمكه اواسمان كـښ ډيـرالـهـه چـه مستـثـنـى دے ده هـغـے نـه الله نـوبيـابـه فسـادپـدوى كـښ پيداشوے وويعنى كه دډيـروخدايانوسره خداے پاك مـل نشى نـوفسادبه نه وى اوكچرته ورسره خداے پاك شريك شى نـوبيـابـه فسـادپيـداشى نـوپـدے سره اثبات دوحـدانيـت داللهتـعـالى نـه راځى بلكـه تعدددالـه لازم

شو اودامنافی دتوحیدسره دے. **ترکیب آیت :.** لو حرف شرط کان فعل ناقص فیهما خبرمقدم اله موصوف الا بمعنی غیر مضاف الله مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه صفت د،موصوف موصوف سره دصفت ن اسم دکان موخرکان سره داسم اوخبرنه شرط لفسدتاجزاء شرط ددویم مثال ترکیب لا لنفی الجنس اله موصوف الا الله صفت موصوف سره دصفت نه اسم دلا شو خبرموجودمحذوف.

## نقشه اعراب مستثنی مع اعراب غیربالا



## اعراب غير مثل اعراب مستثنى بالّا




## التمرين لبحث المستثنىٰ واعرابها.

لايكلف الله نفساالاوسعها

مايؤمن اكثرهم باللهالاوهم مشركون

فانهم عدولىّ الارب العٰلمين

كل شى ء هالك الاوجهه

الاماشاء ربك

لااله الاهو الرحمٰن الرحيم

مايكفربها الا الفاسقون

قلت ماشاء اللهلاقوة الابالله

لايلقاها الا الصابرون

لايعلم الغيب الاالله

انارسلنا الى قوم مجرمين الاال لوط

ان هوالاذكروقرآن مبين

فسجد الملائكة الابليس

ومامن اله غيرالله

فنفعها الاقوم يونس

فلبث فيهم الف سنة الاخمسين عاما

لاييأس من روح الله الا القوم الكافرون.

تمت المستثنى بعون الله الذي ينبت الحب و النوىٰ.

**فصل** خبر كان و اخواتها وهو المسند بعد دخولها الخ.

ترجمه : خبردكان اواشباه دكان دايو اسم دے مسند پس د دخول ددوی نه.

**حل تركيب** : خبر مضاف كان معطوف عليه اخواتها معطوف معطوف عليه سره د معطوف نه مضاف دمضاف مضاف سره دمضاف اليه نه مبتدأ هو مبتدأ المسند بعد دخولها خبر مبتدأ سره دخبر نه جمله اسميه خبر مبتدأ.

**تشريح** :. بل دمتعلقاتو دمفاعليونه خبردكان دے اودده اخوات.

**فوائدقيود** : هو المسند په منزله دجنس دے معرف اوغير معرف ټولو لره شامل دے اوبعد دخولها په منزله دفصل دے پدے سره باقی مسندات خارج شو يعنی خبردمبتدأ وغيره وغيره. **سوال** : په خبردكان كښې داول نه اسنادموجود وو داخو لازم شو اسناد دمسند. **جواب** : مراد په مسند او اسناد سره اسنادجديده دے. **سوال** :. هو المسند بعد دخولها ټول به پرے داخل وی يعنی كان مع اخواتها حالانكه امرخوداسے نه دے. **جواب** : دلته تقديردعبارت په حذف دمضاف سره هو المسند بعد دخول احدهما مثال كان زيدٌ قائماً خبر كان دے اوزيدٌ اسم كان دے.

**وحكمه كحكم خبر المبتدأ**. ترجمه : اوحكم دده پشان دحكم دخبردمبتدأ دے.

**حل تركيب** :. حكمه مبتدا كحكم خبر المبتدأ جار مجرور ظرف مستقر متعلق ثابت پوری دامجموعه خبردمبتدأ.

**تشريح** :. حكمه اوشان دخبردكان په شان دخبردمبتداء په جواز دواقع كيدو دے كښې مفرديا جمله برابره خبره ده چه جمله اسميه وی اوكه فعليه وی .دارنگه په جوازدتقديم دخبر په اسم باندے اوپه نوروا حكامو كښې هم اوشرائط اواقسامو كښې . **سوال** : خبردمبتدا چه معرفه وی نو تقدم دده په مبتدأ باندے جائز ندے نو په خبردكان كښې هم دغسے پكاروو حالانكه پدے كښې جائز دے؟ خبردكان په اسم دكان مقدم كيدے شی كله چه معرفه وی. **جواب** : مصنف ددے سوال جواب كوی پدے خپل عبارت سره الا انه يجوز تقديمه على اسمائها مع كونه معرفة. لكن دا مطلقا نه بلكه كله چه التباس نه راځی اوكه التباس راشی دخبركان داسم دكان سره نوبيا جائز ندے. البتاس په هغه ځاے راځی چه په دواړو كښې اعراب تقديری وی ياپه يو كښې تقديری وی اوپه بل كښې محلی وی لكه دلته مثال لكه كان موسى عيسى چه موسى

خبر اوګرځوے چه تقديم راشي په اسم اوادامنع دے ځکه التباس راځی په مابين دخبر اواسم کښ.ياکان هذاغلامی.

**فائده** : خبردکان ماضی نه واقع کيږی لکن چه قدپرے داخل شی بياواقع کيږی مثال کان قدقعد. **فائده** : خبردکان ماضی واقع کيږی چه په شرط اوجزاء کښ راشی مثال:ان کان قميصه قد من دبر قدمن دبرجزادشرط دے اوخبرواقع دے دکان دپاره اوماضی ده مرّبعض خواصه واحکامه فی المرفوعات فی بحث الاسم کان باقی تفصيل دافعالونا قصوپه بحث دفعل کښ راځی انشاء الله تعالی.

## التمرين لبحث خبر کان واخواتها

| | |
|---|---|
| کان ربك قديرا | کان حقاعليانانصر المومنين |
| اکان للناس عجبا | فاصبحتم بعمت الله اخوانا |
| تالله تفتؤ تذکريوسف | لن ندخلها ابدامادامو فيها |
| فسبحٰن الله حين تمسون | فنظل لهاعاکفين اذاکنتم اعداء. |
| ان اصبح ماؤکم غورا | الا الی اللهتصير الامور |
| کان الله عليماحکيما. | ظل وجهه مسودا |

ليس مصروفاعنهم.

وقال رسول اللهﷺ:يصبح الرجل مومناويمسی کافراويصبح مومنا.

تمت بحث خبرکان واخواتها بعون اللهتعالی.

**فصل** اسم انّ واخواتها. ترجمه : اسم دانّ سره داخوات نه.

**حل ترکيب** : اسم انّ واخواتهامبتدأ هو المسندبعددخولهاخبرمبتدأسره دخبرنه جمله اسميه خبريه. **تشريح** :. بل دمتعلقاتودمفاعليونه اسم دانّ اواخواتهادے.مراد دانّ اواخواتهانه حروف مشبه بالفعل دی.اومرادپه اخواتهاسره اشباهٔ اونظائردانّ دی. ددوی اسم به ځکه منصوب وی چه دامشابه دے دمفعول به سره اومفعول منصوب وی نودابه هم منصوب وی.

**فوائد قيود** : داقيدچه هو المسنداليه دے داپه منزله دجنس دے معرف اوغير،معرف تمام مسنداليه پکښ داخل شواوداقيدچه بعددخولهادے پدے سره خارج شوماسوادوی داسم نه.

## التمرین لبحث اسم انّ واخواتها.

| | |
|---|---|
| قال انی عبدالله | ان الله علی کل شیء قدیر |
| واعلموا ان الله یحول بین المرأ وقلبه | ومایدریك لعل الساعة قریبٌ |
| قال یالیت قومی یعلمون | ان لدینا انکالا وجحیما. |
| ان فی ذلك لعبرة | ان الینا ایابهم |
| لعل الله یحدث بعد ذلك امرا. | قال رسول الله ﷺ: |

کن فی الدنیا کانك غریب اوعابری سبیل. خطب عبدالله لکنه مریضا. البیت جدید لکن الاثاث قدیم المدرسة جمیلة ولکن الفضاء ضیقٌ.

تمت بحث اسم انّ واخواتها.

**فصل** المنصوب بلا التی لنفی الجنس الخ. : منصوب په لا سره چه دنفی دجنس دپاره وی. حل ترکیب:. ترکیب واضح دے مرّ فی المرفوعات.

**تشریح** : بل دمتعلقاتو دمفاعیل نه منصوب بلا لنفی الجنس دے. **سوال** : داسے ئے ولے ونه وئیل اسم لا لکه دنوروپشان. **جواب** : اسم دلا په کلی طورسره منصوب نه وی او اسم دده علی الاطلاق دمنصوباتو نه ندے بلکه اسم دلا لنفی الجنس اکثر مرفوع وی.

**فوائد قیود** : المسند الیه په منزله دجنس دے معرف اوغیر معرف ټولوله شامل دے بعد دخولها په منزله دفصل دے پدے باقی مسندالیه خارج شو.اول صورت یلیها نکرة مضافة .

ترجمه: نزدے به وی لاته نکره مضافه به وی.

**حل ترکیب** :. یلیها جمله فعلیه حال واقع دے دضمیر دمجرورنه دالمسندالیه نه دارنګه نکره اومضافه مشابها لها دا هم احوال دی دضمیر مجرورنه لکه دا احوال مترادفه دی یا احوال متداخله دی یلیها حال دے دضمیر مجرورنه اوداباقی احوال دضمیر دیلیها مستترنه چه هودے نوکیږی دوی احوال متداخله اویاداتول دیو احوال نه ذوالحال واقع دی نوکیږی دوی احوال مترادفه.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف شروط دمنصوب بلا التی لنفی الجنس بیانوی اوهغه دری ۳ دی : (۱) یلی . (۲) نکره. (۳) اضافت. اویامشابه دمضاف.

هرچه شرط اول چه ولاء ده پدے وجه باندے چه لا ضعیف العمل دے په متصل کښ

عمل کولے شی اوپه منفصل کښں عمل نشی کولے اوهر چه دویم شرط چه نکره به وی ځکه چه لالنفی الجنس تقاضادکثرت کوی اوپه نکره کښں کثرت دے اوهرچه دریم شرط چه اضافت دے اویامشابه داضافت سره ځکه اضافت دخواصو مکبره معظمه داسم نه دے نوپدے سره قوی کیږی جهت داسمیت اوضعیف کیږی جهت دمشابهت دحرف سره مثال لاغلام رجل فی الدارامثال دمضاف دے اولاعشرین درهمافی الکیس دامثال دشبه دمضاف دے.

**ترکیب** مثال اول : لالنفی الجنس غلام نکره متصل مضاف رجل مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه اسم دلافی الدارظرف مستقرمتعلق ثابتٌ خبردلا.

ترکیب مثال ثانی:عشرین نکره متصل شبه مضاف درهماتمیزعشرین دامجموعه اسم دلافی الکیس ظرف مستقرمتعلق ثابت خبردلا.

---

**فان کان بعدلانکرة مفردةتبنی علی الفتح نحو لارجل فی الدار الخ.**

پس کچرے پس دلانه نکره مفرده وه نومبنی کولے به شی په فتحه سره مثال لارجل فی الدار.

**حل ترکیب** :. فاء تفریعیه ان حرف شرط کان فعل ناقص بعدلاظرف مضاف مضاف سره دمضاف الیه نه خبرمقدم نکره مفرده موصوف صفت اسم موخرکان کان سره داسم اوخبرنه شرط تبنی علی الفتح جزاء.

**تشریح** :. دلته مرادمفردنه مقابل دمضاف اوشبه مضاف دے نوکچرے بعددلانه مفرده نکره وه یعنی شرط ثالث پکښں مفقودوو نوپس دے به مبنی وی په حرکت دفتحه سره یاپه حرف باندے چه الف دے یایاء ده مبنی به ولے وے ځکه دے متضمن دے من حرف لره اوحرف مبنی دے نودے به هم مبنی وی اومتضمن من حرف ځکه دے واقع دے په جواب دسوال دسائل کښں چه مشتمل دے په من حرف سره و المذکورفی السوال کالمذکورفی المعادفی الجواب.اوپه فتحه به مبنی وی ولے ځکه چه فتحه خفیفه ده.

**فائده** : مبنی برفتحه نه مرادعلامت دنصب دے برابره خبره ده که فتحه وی لکه لارجل فی الداراوکه یاء وی لکه لامسلمین لك په صورت دتثنیه کښں لامسلمین لك په صورت دجمع کښں.

**فائده** : لارجل فی الدارمعنی ده لامن رجل فی الدارځکه داوقع دے په جواب سوال دسائل کښې چه هل من رجل فی الدار.دریم اوڅلورم صورت :

**وان کان معرفة اونکرة مفصولا بینه وبین لا کان مرفوعاویجب تکریر لا الخ.**

ترجمه: اوکچرے معرفه اونکره مفصوله وه بینهمانومرفوع به وی.

حل ترکیب :. شرط اومابعدورلره جزاء.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنفؒ حکم بیانوی داسم لا چه کله پکښې انتفاء دشرط ثانی اوشرط اول راغلے وی یعنی نکره نه وی اوقریب لاته هم نوی نوپدے صورت کښې واجب ده رفع بنابرابتدائیت اولابه ملغی عن العمل وی چه معرفه ده نوځکه چه لاپکښې عمل نکوی چه قلت پکښې حاصل شو.

اولاعمل کولولوجے دکثرت نه اوهرچه منفصل صورت کښې لاعمل نکوی ځکه لا په عمل کښې ضعیف دے.په متصل کښې عمل کوی اوپه منفصل کښې نکوی.اوتکریردلابه ځکه وی په صورت اول کښې چه جبیره دمافات اوګرځی ځکه چه داکلمه معرفه شوه نوقلت پکښې موجودشواوس ددے دپاره جبیره پکارده.اوهرچه په صورت ثانی کښې تکریرلاځکه دابه مطابق اګرځی سوال دسائل سره چه افی الداررجل ام امرأة نوپه جواب کښې ادوات دنفی به راځی چه لافی الداررجل ولاامرأةدویم مثال ازیدٌ فی الدارام عمرٌوجواب لازیدٌ فی الدارولاعمرٌو.

**ویجوزفی مثل لاحول ولاقوة الابالله خمسة اوجهٍ.**

ترجمه : اوجائزدی په لاحول ولاقوت الابالله کښې دترکیب پینځه وجهے.

**حل ترکیب** : ویجوزفعل فی جارمثل مضاف لاحول ولاقوت الابالله بتاویل هذا الترکیب مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجرورجار جارسره دمجرورنه ظرف لغوه متعلق یجوزخمسه اوجه مضاف مضاف الیه فاعل فعل فتحهما الخ خبرمبتدامحذوف چه احدهاثانیهااوثالثها الخ اوبابدل دے دخمسه اوجه نه یامفعول به داعنی مقدره ده .

**تشریح** : په اعتبار دترکیب سره پدے کښې پینځه وجهے جائزدی:اومراددینه هرهغه ترکیب دے چه لالنفی الجنس پکښې مکرروی په ذریعه دعطف سره اودهرلانه بعدنکره مفردبلافصل وی نوجائزبه وی پکښې صورخمسه:

(۱) **اول صورت : فتحهمایعنی مبنی برفتحه به وی پدے صورت کښې په دواړو** موضعینو کښې لالنفی الجنس دپاره دے اودے نه بعداسم ددوی اسم دے اوپه دے صورت کښې احتمالین دی ۱. دااحتمال دے چه عطف دمفردپه مفرداوشی پدے شان سره چه ددواړودپاره خبرواحدشی تقدیردعبارت دارنګه شولاحول عن المعصیة ولاقوة علی الطاعة ثابتان باحدالاباللہ ترکیب ددے صورت په احتمال اول سره. لالنفی الجنس حول اسم لامبنی برفتحه معطوف علیه واوبرائے عطف لالنفی الجنس ولاقوة اسم لامبنی برفتحه معطوف برلاحول ثابتان اسم فاعل باحدمستثنی منښ الاحرف استثناء باللہ مستثنی مستثنی منه سره دمستثنی منه نه ظرف لغومتعلق ثابتة پوری متعلق سره دمتعلق نښ خبرددواړوشو. پدے صورت کښې عطف دمفردپښ مفردباندے.

(۲) **احتمال** داهم کیدے شی چه چه عطف دجملے په جملے اوشی نوتقدیردعبارت به دارنګه شی: لاحول عن المعصیة ثابت باحدالاباللہ ولاقوة علی الطاعة ثابت باحدالاباللہ ترکیب ددے صورت په احتمال دویم سره دے. لالنفی الجنس حول مصدرعن المعصیه ظرف لغومتعلق په حول پوری چه مصدردے متعلق سره دمتعلق نه اسم لاثابت اسم فاعل باحدمستثنی منه الاحرف استثناء باللہ مستثنی منه مستثنی سره دمستثنی منه نه ظرف لغومتعلق ثابت پوری متعلق سره دمتعلق نه خبردلا لالنفی الجنس سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه اولاقوت الخ داهم بعینه دمخکښې پشان دے پس عطف دجملے په جمله اوشو پدے احتمال کښې.

**دویم صورت:** رفعهما: دواړه به مرفوع وی بنابرابتدائیت پدے صورت کښې لازائده اولاحول ولاقوت الاباللہداجمله په جواب دسوال دسائل کښې واقع ده سوال داسے ابغیراللہ حول وقوت؟ددے په جواب کښې لاحول ولاقوت الاباللہپه سوال کښې حولٌ وقوتٌ مرفوع وولهذاپه جواب کښې به هم مرفوع وی. پدے صورت ثانی کښې هم هغه احتمالین صحیح دی عطف دمفردپه مفرداوعطف دجملے په جملے باندے بنابرتفصیل سابقه.

**دریم صورت :** فتح الاول ونصب الثانی: پدے صورت کښې اول اسم دلالنفی الجنس دے مفتوح به وی اودویم اسم به منصوب مع التنوین وی ځکه دویم لازائددے راوړے شوے

دے دپاره دتاكيد دنفي پدے كښې هم احتمالين صحيح دي عطف دمفردپه مفرد چه دواړو دپاره دخبرواحدشي لاحـول ولاقــــــوةً ثابتان باحدالابالله.اوكه عطف دجملے په جمله شي نودهر واحد دپاره به خبرجداجداوي كمامرمثاله.

څلورم صورت فتح الاول ورفع الثاني پدے صورت كښې اول اسم دلالنفي الجنس دے دويم مرفوع به وي مع التنوين اولاثاني به زائدوي اوقوت مرفوع دے په محل بعيده دلاحول عطف دے اوهغه مرفوع ووبنابرابتدائيت نودے به هم مرفوع وي. پدے صورت كښې هم احتمالين صحيح دي عطف دمفردپه مفرد چه يوخبرورلره شي اوعطف دجملے په جملے چه ده هرواحددپاره خبرجداجداشي كمامرمثاله. **پينځم صورت رفع الاول وفتح الثاني** : اول به مرفوع څكه وي چه لامشابه بليس دے اوپه دويم اسم كښې لالنفي الجنس دے ليكن پدے صورت كښې رفع داول ضعيفه ده څكه مشابهت دلاليس سره قليل دے پدے صورت كښې عطف دمفردپه مفردنه صحيح كيږي څكه ددواړودپاره يوخبرنه صحيح كيږي څكه چه لامشابه بليس خبرمنصوب غواړي اولالنفي الجنس خبرمرفوع غواړي كه يوخبرشي نوپه يووقت كښې به يواسم مرفوع اومنصوب شي اودانا جائزه ده پدے صورت كښې عطف دجملے په جمله باندے وي كمامرمثاله.

---

**وقد يحذف اسم لالقرينة نحو لاعليك اى لابأس عليك.**

ترجمه : اوكله حذف داسم دلاكيدے شي مثال لاعليك اى لابأس عليك.

**تشريح** :. پدے تركيب كښې اسم دلاحذف شوے دے چه بائس دے دوجودقرينه نه چه وجوددخبردے اولاخواسم خبردواړه غواړي نوهركله چه دده خبرذكرشونومعلومه شوه چه دده اسم هم شته دے خوحذف شوے دے چه لاباس دے بل قرينه هم شته.

چه دخول دلادے په عليك باندے اوداندے بلكه دخول دحرف دے په حرف باندے نومعلومه شوه چه عليك خبردلادے اواسم دده حذف شوے دے چه بأس دے.

**نقشه وفي مثل لاحول ولاقوة الاباالله خمسة اوجه.**

| (١)فتحهما | (٢)رفعهما | (٣)فتح الاول ونصب الثانی | (٤)فتح الاول ورفع الثانی | (٥)رفع الاول وفتح الثانی |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| لاحولَ ولاقوةَ الاباالله | لاحولٌ ولاقوةٌ الاباالله | لاحولَ ولاقوةً الاباالله | لاحولَ ولاقوةٌ الاباالله | لاحولٌ ولاقوةَ الاباالله |
| په دواړوکښ لابرائے نفی جنس | ١.برائے مطابقت جواب سائل | اول لابرائے نفی جنس دوم زائده. | اول لابرائے نفی جنس دوم زائده. | اول لابمعنی لیس دوم لا لنفی جنس |
| احتمالین جائز | احتمالین جائز | احتمالین جائز | احتمالین جائز | احتمال واحده جائز |
| (١) عطف الجمله على الجمله | (١) عطف الجمله على الجمله | (١) عطف الجمله على الجمله | (١) عطف الجمله على الجمله | عطف الجمله على الجمله |
| مثال | مثال | مثال | مثال | مثال |
| لاحولَ موجودٌ الاباالله ولاقوة موجودةالاباالله | لاحولَ موجودٌ الاباالله ولاقوة موجودةالاباالله | لاحولَ ثابتٌ ولاقوةً موجودةٌالاباالله | لاحولَ ثابتٌ ولاقوةٌ موجودةٌالاباالله | لاحولٌ موجوداً ولاقوةَ موجودةٌ الاباالله |
| (٢) | (٢) | (٢) | (٢) | × |
| عطف المفرد علي المفرد مثال | عطف المفرد علي المفرد مثال | عطف المفرد علي المفرد مثال | عطف المفرد علي المفرد مثال | × |
| لاحولَ ولاقوةَ موجودةٌ الاباالله | لاحولٌ ولاقوةٌ موجودانِ الاباالله | لاحولَ ولاقوةَ ثابتان باحدٍ الاباالله | لاحولَ ولاقوةٌ موجودةٌ الاباالله | × |

## التمرين لخبر لالنفى الجنس.

ذلك الكتاب لاريب فيه — لاجناح عليك

لااكراه فى الدين — لو لااذ دخلت جنتك قلت ماشاء الله لاقوة الابالله

لاطاقة لنا اليوم — لابيع فيه و لاخلة

لارفث ولافسوق — لا اله الاالله

لادين لمن لاعهدله — لا ايمان لمن لاامانت له "الحديث"

لاخيرفى كثيرمن نجوٰهم

تمت بحث خبرلالنفى الجنس بعون الله تعالى.

**فصل** خبرماو لامشبهتين بليس. ترجمه: خبرماولا چه مشبهتين دی بليس.

حل تركيب: تركيب واضح دے.

**تشريح**: بل دملحقاتودمفاعيل نه خبردماولادے الخ. **فوائد قيود**: هو المسند دا په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغيرمعرف ټولولره اوپدے قيد سره چه بعد دخولها دے دا په منزله د فصل دے باقی مسندات ټول خارج شو.

**وان وقع الخبربعد الا الخ.** پدے عبارت سره مصنف هغه صورتونه ثلاثه بيانوی چه عمل د ماولا پکښ باطل وی. (۱)-کلمه چه خبرما ولا روستود الا نه راشی. (۲)-کله چه خبرد دوی په اسم مقدم شوے وی. (۳)-کله چه ان زائده پس د مانه راشی. په اول صورت کښ ابطال دعمل دے ځکه د دوی عمل د وجے دمشابهت نه د ليس سره دے په نفی کښ او په دخول کښ په مبتدا اوخبر باندے اوهغه نفی د دوی منتقض شوه په الاسره نومشابهت ئے هم منتفی شونوعمل ئی هم منتفی شو.

دويم صورت کښ: ولے ابطال د عمل دے ځکه دوی په عمل کښ ضعيف دی عمل په مرتب معمول کښ کولے شی اوپه غيرمرتب کښ عمل نشی کولے اوپه دريم صورت کښ ولے ابطال د عمل دے. ځکه چه دوی عمل په متصل کښ کوی اوپه ان سره فصل راغلے دے اوپه منفصل کښ دوی عمل نه کوی مثالونه په کتاب کښ ذکردی لکن دادريم صورت صرف په کلمه د ماپوری خاص دے.

وهذا لغة اهل الحجاز. : اوداعمل ددوی په لغت داهل حجازوکښ دے.

**حـل تركيب** :: هـذامبتـدالـغـت اهـل حجاز خبر ماحرف تفصيل بنوتميم مبتدامتضمن معنی شرط فلايعملونهماخبرقائم مقام جزاء اصلامفعول مطلق دفعل مقدردپاره يابمعنی ابدا مفعول فيه دلايعملونهما دپاره. **تشريح** : په عمل دماولاکښ اختلاف د نحاتودے دوه مذهبين دی :۱-اهل حجاز : ددے تفصيل په مرفوعاتوکښ شوے دے په بحث داسم ماولاکښ اواقسام دماولا هم تفصيلا هلته بيان شوی دی.دلته صرف تحقيق دشعربه اوکړے شی کوم چه بنی تميم په خپل استدلال کښ پيش کړے دے.شعر:

ومهفهف كـالـغـصـن قـلـت لـه انتسب فـاجـاب مـاقـتـل الـمـحـبّ حرام

واوبمعنی ربّ مهفهف اسم مفعول په معنی دنرئ ملاوالا انتسب صيغه دباب افتعال په معنی دنسب نامه بيانولوسره قتل مصدرمضاف المحب مضاف اليه مفعول به اودلته فاعل حذف دے اے قتل المحبوب المحب ترجمه دشعرداسے شوه ډيرے نرئ ملاوالامحبوب ته چه پشان دښانگے ووماووئيل خپله نسب نامه بيان کړه هغه په جواب کښ اووئيل چه قتل دعاشق حرام ندے لکن پدے باندے اعتراض راځی چه جواب مطابق دسوال سره ندے ځکه سائل دنسب نامے دبيانولوسوال کوی اوهغه په جواب کښ وائی چه قتل دعاشق حرام ندے.

**۱-جواب** : جواب مطابق دے دسوال سره هغه نسب نامه بيان کړے ده اشارةً هرکله چه هغه حرامٌ په رفع سره اووئيل نودامعلومه شوله چه زه دبنی تميم نه يم ځکه هغوی ماولالره عمل نه وائی ماقتل المحب حرام ماغيرعامله دے قتل المحبّ مبتداده اوحرامٌ خبردے که ماپدے حرام کښ عمل کړے وے نودابه حراماوو په نصب سره بنابرخبرما. **۲-جواب** : فاجاب داتفريع ده په محذوف باندے ای فان لن تنتسب فاقتل نفسی پس جواب د سوال سره مطابق دے چه ماقتل المحب حرام.

## التمرين لخبر ماولامشبهتين بليس

| | |
|---|---|
| ماهذا بشرا | ومااللّٰه بغافل عماتعملون |
| ماهن امهاتهم | ما انت بمؤمن لنا |
| ما انت بنعمت ربك بمجنون | ولات حين مناص. |

## المقصد الثالث في المجرورات

**الاسماء المجرورة هي المضاف اليه فقط.** مقصود ثالث په بيان دمجروراتو کښې دے.

**حل ترکيب** : المقصد الثالث موصوف صفت مبتدا في المجرورات ظرف مستقر متعلق کائن دا خبر د مبتدا الاسماء الجروره موصوف صفت مبتدا اول هي مبتدا ثاني المضاف اليه الف لام موصولي مضاف صيغه اسم امفعول ضمير مستتره دده نائب فاعل دامجموعه شبه جمله صله دموصول موصول موصول سره دصله نه خبر د مبتدا مبتدا سره دخبر نه جمله اسميه خبريه خبر د مبتدا اول فقط: فافصيحيه قط اسم فعل بمعنى انته انته فعل فاعل جزا د شرط محذوفه اصل عبارت دا سے وو اذا کانت الاسماء المجروره منحصره في المضاف اليه فانته عن قسم اخر اذا کانت الخ. شرط فانته الخ جزاء.

هر کله چه فارغ شو منصف د بيان د مقصد ثاني نه چه منصوبات وو نو شروع اوکړه په بيان د مقصد ثالث کښې چه مجرورات دي او هغه صرف مضاف اليه دے. **سوال** : هر کله چه مجرورات يو دے چه مضاف اليه دے فقط نو جمع ولے ذکر کړه صيغه دمفرد پکار وه؟

**جواب** : جمع په اعتبار دکثرت دانواعو او اقسامو دمضاف اليه ذکر کړے ده چه دا زيات دي. جواب له وجي دمطابقت دمنصوبات او مرفوعات نه طرداللباب.

**سوال** : مجرور په حرف جر سره هم وي نو څنګه مجرورت صرف مضاف اليه دے فقط؟

جواب : کوم مجرورات چه ماسوا دمضاف اليه نه دے هغه دملحقاتو دده نه دي حقيقتا هغه مجرورندي. **جواب دوم** : دلته عبارت په حذف سره دے تقدير دا سے دے هي المضاف اليه وما اشتمل على علامة المضاف اليه پدے تقدير سره په مجروراتو کښې مجرورات په حروف جاره سره داخل شو.

**وهو کل اسم نسب اليه شيء بواسطة حرف الجر لفظا الخ** . مضاف اليه هر هغه اسم دے چه نسبت ده ته ديو شي شوے وي په واسطه دحرف جر ملفوظ سره.

**حل ترکيب** :. هو مبتداء کل مضاف اسم موصوف نسب فعل مجهول اليه ظرف لغو متعلق نسب شيء نائب فاعل با حرف جر واسطه مضاف الجر مضاف اليه دا هم متعلق په نسب پورې لفظا بمنعى ملفوظ معطوف عليه او حرف عاطفه تقديرا بمعنى مقدرا معطوف عليه سره دمعطوف نه خبر کان محذوف اصل عبارت داسے دے سواء کان ذلك الحرف

ملفوظااومقدراًیعبرفعل مجهول عن زائده هذا الترکیب موصوف صفت نائب فاعل فی الاصطلاح ظرف لغو متعلق یعبریاحرف جر،ان حرف مشبه بالفعل ہ ضمیراسم ان جاڑ معطوف علیه مجرورمعطوف داخبردانؔ ان سره داسم اوخبرنه مجروردجارسره دمجرورنه ظرف لغو متعلق په یعبروالباقی واضح.

**تشریح** : مصنف په تعریف دمضاف الیه کښ شیء اوویے اواسم ئے ونه وئیلو ځکه مضاف کله اسم راځی لکه غلام زیداوکله فعل راځی لکه مررت بزید،شیء دواړولره شامل دے.

**سوال** :. مضاف الیه به اسم وی ستاقاعده منقوضه دهٔ په ینفع باندے پدے ایت کښ دامضاف الیه دے اوفعل دے چه یوم ینفع الصادقین یوم ،مضاف ینفع فعل مضاف الیه.

**جواب**:. اسم عام دے حقیقی وی اوکه حکمی وی اوکه تاویلی وی دلته په تاویل دمصدرسره دے ځکه ان مقدردے نوتقدیرداسے شویوم نفع الصادقین. **سوال** : تقدیردان مصدریه مختص دے په خاصو مواضعو پورے اوپه هغے کښے داځاے ندے ذکر. جواب : مواضع چه کوم ذکردی هغه دحصردپاره ندی بلکه هغه مشهورځایونه دی په بعضی ځایونوکښ دهغے نه علاوه تقدیردان هم راغلے دے لکه پدے قول کښ شعر:

تسمع بالمعیدخیرمن ان تراه　　ستعرف قدره ان فتح فاه

دلته د تسمع نه مخکښ ان مقدردے. سوال : داقید چه بواسطه حرف الجردے دادځه دپاره دے؟. جواب : پدے قیدسره احترازکوی دهغے نه چه نسبت پکښ وی لکن په واسطه دحرف جرنه وی لکه نسبت دفعل فاعل ته اویامفعول ته بغیردواسطے نه.

سوال : تاسوواسطه دحرف جرعامه وائی لفظاوی حرف جر اوکه تقدیراوی نوتعریف جامع ندے خپلوافرادولره خارج شوترینه مضاف الیه په اضافت لفظی سره په مذهب دهغه چاچه وائی اضافت لفظی په تقدیردحرف جرسره نه وائی. **جواب** : دمصنفؒ په نزدباندے اضافت منقسم دے لفظی اومعنوی ته دا هغه اضافت دے چه په تقدیرد حرف جرسره وی نوپس اضافت لفظی کښ ددہ په مذهب دارنګه دابن حاجب په مذهب باندے به هم حرف جرمقدروی.

**سوال** : ستاپه تعریف کښې مفعول فیه پدے صورت کښې صمتُ یوم الجمعه داخل شوه ځکه یوم اسم دے اونسبت ورته شوے دے دیوشی په واسطه دحرف جرسره اصل عبارت داسے دے صمت فی یوم الجمعه. جواب : حرف جربه مرادوی په ابقاء دخپل عمل سره چه جردے اوپه مفعول فیه کښې پدے معنیٰ سره حرف جرمرادندے.

**فائده** : دمصنف: ددے عبارت نه دامعلومه شوه چه مضاف به کله فعل اوکله اسم وی ځکه مصنفؒ ورته شے وئیلے دے اودارنګه په کلام دابن حاجب کښې ورته هم شئ وئیلے شوے دے دفعل مثال مررت بزیداوداسم مثال غلام زیدلکن عامه مشهوره خبره داده چه مضاف به اسم وی پدے باندے ابن حاجب تصریح کړے ده په بعض مواضع کښې چه مضاف به اسم وی کماقاله صاحب الدرایه.

لیکن علامه حدیبی دابن حاجب دتناقض دعبارتونودختمولودپاره یوه قاعده بیان کړے ده چه هغه وائی مررت بزیدکښې دوه اعتباره دی : ۱-کله چه مرورفعل واقع شی په زیدباندے اوزیدته مضاف الیه اووئیلے شی پدے اعتبارسره لکن په حقیقت کښې دامفعول به ده په واسطه دحرف جرسره نوپه مررت کښې تاویل نشی کولے. ۲- اعتبارپکښې دادے چه زیدمضاف الیه شی دمررت نوپه مررت کښې تاویل به کونے شی په مرورسره.نواول قول دابن حاجب چه مضاف به فعل وی په اعتباراول سره دے اودویم قول دابن حاجب چه مضاف به اسم وی په اعتبارثانی سره دے.

---

**ویجب تجرید المضاف عن التنوین ومایقوم مقامه وهونونی التثنیة و الجمع الخ.**

اوواجب دے خالی والے دمضاف دتنوین اودقائم مقام دتنوین نه چه نون دتثنیه اودجمعے دے.

**حل ترکیب** : یجب فعل تجریدمضاف المضاف مضاف الیه عن جار التنوین معطوف علیه اوعاطفه مایقوم مقامه معطوف معطو ف سره دمعطوف علیه نه مجروردجار جارسره دمجرورنه ظرف لغو متعلق تجریدتجریدمضاف سره دمضاف الیه اودمتعلق نه فاعل دیجب فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه.

**تشریح** :. په مابین دمضاف اومضاف الیه کښې شدت اتصال دے اوتنوین اوقائم مقام دده راځی دپاره دانفصال اوپه مابین داتصال اوانفصال کښې منافات دے داتنوین به په هغه صورت

کښې لرے کیږی چه موجودوی لکه غلام زید یاضارب عمروٍ یاحسن الوجه یاضاریازید یاضاربوزیداوکه تنوین په الف لام سره ساقط شوے وونوبیاجائزندے لکه الغلام زیدلته تنوین په الف لام سره ساقط شوے دے نه په اضافت سره پدے صورت کښې الف لام به ترینه لری کیږی لوجے داضافت نه.

**واعلم ان الاضافة علی قسمین معنویة ولفظیة الخ.**

ترجمه: پوه شه چه اضافت په دوه قسمه دے یولفظی اوبل معنوی.

**حل ترکیب**:. اعلم فعل فاعل ان حرف مشبه بالفعل الاضافه اسم انّ علی قسمین ظرف مستقرمتعلق کائنة خبرانّ معنویة خبردمبتداء دے چه احدهمالفظیة خبردمبتدامحذوف ثانیهما .اماحرف شرط برائے تفصیل المعنویه مبتداهی مبتدأ متضمن معنی دشرط لره ان مصدریه ناصبه یکون فعل ناقص المضاف اسم یکون غیرمضاف صفت موصوف مضافة صفت موصوف سره دصفت نه مضاف الیه شودغیرمضاف سره دمضاف الیه نه خبردیکون یکون سره داسم اوخبرنه بتاویل المصدرخبرهی مبتدأسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه خبرقائم مقام جزاء هی مبتدااماحرف تردیدبمعنی اللام ظرف مستقرمتعلق ثابتة خبردمبتداء بمعنی من اوبمعنی فی داعطف ذے په بمعنی للام باندے.

**تشریح**:. هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دتعریف اودشرائطو دمضاف اومضاف الیه نه نوشروع ئے اوکړه په اقسامو داضافت کښې نووے وئیل دارنگه واعلم الخ. **اضافت** په تقدیردحرف جرسره په دوه۲ قسمه دے: ۱.اضافت لفظی۲.اضافت معنوی.وجه دحصرپکښې داده چه دامضاف به خالی نه وی یابه صفت وی چه عمل به کوی په مضاف الیه کښې مخکښې داضافت اویابه وی پس اولنے اضافت لفظی دے اودویم اضافت معنوی دے اضافت معنوی ته ځکه معنوی وائی چه دے پیداکوی معنی په مضاف کښې چه هغه تعریف اویاتخصیص دے.

**اما المعنویة الخ.**

دا تفصیل کوی پس داجمال نه اضافت معنوی کیدل دمضاف دی غیرموصوف چه مضاف وی معمول ته مثال غلام زیدپدے قیدسره چه مضاف به صفت نه وی پدے سره احترازراغلے دضارب زیداوحسن الوجه نه اویابه مضاف صفت وی لکن عامل به نه وی په

مضاف اليه كښې درفع اونصب بنابرفاعليت اومفعول به لكه كريم البلاء اومصارع مصرنه داهم اضافت معنوي دے څكه مضاف كه اګركه اسم صفتي دي لكن مضاف اليه ورلره معمول ندے يعني مفعول به نده بلكه مفعول فيه ده.

**وهي امابمعنى اللام نحوغلام زيدٍاوبمعنى من نحوخاتم فضةٍ اوبمعنى في نحوصلوة الليل.** ........ اواضافت معنوي يابه په معنى دلام سره وي اويابه په معنى من سره وي اويابه په معنى دفي سره وي.

**تشريح :.** پدے عبارت سره اقسام ثلاثه داضافت معنوي بيانوي چه داپه دري قسمه دے:

(۱)اضافت بمعنى اللام. (۲) اضافت بمعنى من . (۳) اضافت بمعنى في.

اضافت بمعنى اللام به په هغه ځاے كښې وي چه مضاف اليه دجنس دمضاف نه نه وي اونه ظرف وي دمضاف دپاره مثال لكه غلام زيداى غلام لزيداوديته اضافت لاميه هم وائي اضافت بمعنى مٍن به په هغه ځاے كښې وي چه مضاف اليه دجنس دمضاف نه وي مثال لكه خاتم فضه علم الفقه اى خاتم من فضه اوديته اضافت منيه هم وائي اوبيانيه هم وائي.

اضافت بمعنى في به هغه ځاے وي چه مضاف اليه ظرف دپاره دمضاف وي برابره خبره ده چه ظرف زمان وي اوكه ظرف مكان وي مثال لكه صلاه الليل ضرب اليوم اى صلات في الليل وضرب في اليوم اوديته اضافت فويه اوظرفيه هم وائي.

**وفائدة هذه الاضافة تعريف المضاف ان اضيف الي معرفة كمامرا وتخصيصه ان اضيف الى نكرة كغلام رجلٍ.** ترجمه : اوفائده دإضافت معنوي تعريف دمضاف دے كچرے اضافت معرفے ته اوشي اويا تخصيص دے كه اضافت نكرے ته اوشي.

**حل تركيب :** فائده مضاف هذه الاضافه اسم اشاره مشاراليه ياموصوف صفت يامبدل منه بدل يامعطوف عليه عطف بيان دامضاف اليه دمضاف فائده مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداتعريف المضاف مضاف اومضاف اليه خبردمبتدااودابيابدل برجزاء ان اضيف الى معرفه شرط تخصيصه الخ جزاء.

**تشريح :.** پدے عبارت سره مصنف داضافت معنوي دوه فائدے ذكركوي

فـائده۱ :تخصیص ده تخصیص معنی ده قلت اشتراك مضاف قبل الاضافت ډیروافرادلره شامل وی چه کله اضافت اوشی نوبعض افرادمرادوی. **فائده:** پـه اضـافـت سـره بـه هلـه تعـریف حاصلیږی چه قبل الاضافت مضاف نکره وی اوکچرے معرفے وی نواضافت سره تحصیل به لازم شی اوداباطل دے. **فائده ۲:** .پـه اضـافـت سره به تعریف هله حاصلیږی چه مضاف لفظ دمثـل اوغیراوشبه وغیره نه وی ځکه دوی دوجے دزیادت توغل نه په ابهام کښ په اضافت سره معـرفـه نـه ګـرځی البتـه کـه ددوی مضاف الیه دپاره ضدواحدوونوبیاتعریف کسب کوی لکه علیك بالحرکه غیر السکون اویاغیر المغضوب علیهم اودمثل مضاف کچرے یوفردمشهور وونودے هم معرفه کیږی په اضافت سره.

---

**واما اللفظیة ان یکون المضاف صفةًمضافةًالی معمولهاالخ.وفائدته التخفیف فی اللفظ فقط.**

تـرجـمـه: اوهـرچـه اضـافـتُ لفظی دے نودابه مضاف اسمِ صفتی وی مضاف به وی خپل معمول ته اوفائده دده تخفیف دے په لفظ کښ فقط.

حـل ترکیب:. ظاهردے. **تشریح** :. اضـافـت لـفظی کیدل دمضاف دی صفت اواضافت به خپـل مـعـمول ته شوے وی داقید چه مضاف به صفت وی پدے سره احترازراغے دغلام زیدنه اوداقیـدچـه مضافة الی معمولها پـدے سره احـتـرازراغـے دهغه نه چه مضاف وی غیرمعمول ته لـکـه مـصارع مصرکریم البلد.کریم العصر.مثال ضارب زیددامثال دهغے دے اضافت دصفت راغـلے وی خپـل مـعـمـول تـه دویـم مثـال حسن الوجه دامثال دهغے دے چه اضافت دصفت مشبه راغلے وی ّخپل فاعل ته.

---

**وهی فی تقدیر الانفصال** : ددے عبارت مطلب دادے چه اضافت لفظیه په اعتباردمعنی سـره مـنـفـصـل دے مضاف دمضاف الیه نه اګرچه ظاهرادی ترمینځ اتصال دے ځکه مضاف الیـه پـه اعتـبـاردمـعـنـی سره فـاعـل وی مـرفـوع وی اویـامـفـعول به منصوب وی دوی حقیقتا مجرورندے.

**فائده** : داضافت لفظیه صرف تخفیف وی په لفظ کښ اوددے مختلف صورتونه دی یاپه مـضـاف کـښ اویـاپـه مـضـاف الیـه کـښ اویـاپه دواړوکښ تخفیف شوے وی. .. هرچه صورت دتـخـفیف پـه مـضـاف کـښ نـوداپه سقوط دتنوین سره لکه ضارب زیدیاپه نون تشنیه سره لکه

ضـاربـازیـدیـاپـه سـقـوط دنـون دجـمـع سره لکه ضاربوزید.اوپه صـورت دمضاف الیه کښې نوپه حذف دضـمـیـرسـره دمضاف الیه نه اواستتارئـے پـه مضاف کښې لکه القائم الغلام شوچه اصل ددے الـقـائـم غـلامـه دے.اوپـه صـورت دمضاف اومضاف الیه دواړوکښې تخفیف نوپه سقوط دتنوین سره دمضاف نه اوپه حذف دضمیرسره دمضاف الیه نه لکه حسن الوجه داپه اصل کښې حسـن وجهـه وو پـس پـه اضافت سره دحسنٌ نه تنوین ساقط شواودمضاف الیه نه تنوین حذف شودهغـے پـه عوض الف لام دالوجه په اخرکښې راوړے شو.

**واعـلـم انك اذااضـفـت الاسـم الـصـحـیـح او الجاری مجری الصحیح الٰی یاء المتکلم کسرت اخره.الخ .**

تـرجـمـه : پـوه شـه چـه یـقـیـنـا اضافت داسم صحیح اوکړے شی اودجاری مجری دصحیح یادمتکلم ته نواخردده به مکسورکړے.

**حل ترکیب** :. اعـم فـعـل فاعل ان حرف ازحروف مشبه بالفعل ك ضمیراسم انّ اذاشرطیه اضفت فعل فاعل الاسم موصوف الصحیح معطوف علیه اوعاطفه الجاری المجرور الصحیح معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مفعول به شوه دفـعـل الـی یـاء الـمـتـکـلـم ظرف لـغـو متـعـلق اضفت فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به اومتـعـلـق نـه شـرط کسـرتَ اخـره مـعـطـوف اسـکـنـت الـیـاء بیامعطوف علیـه اوعـاطـفـه فـتـحهامعطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه معطوف شودمعطوف علیه داجزاشوه دشرط اودامـجـمـوعـه خبردانّ شوانّ سره داسم اوخبرنه بتاویل المفردمفعول به داعلم وان کان اخر الاسم الفاشرط تثبت جزاء خلافا مـوصـوف لـلهـذیـل ظـرف مستقرمتعلق کائناصفت موصوف موصوف سره دصفت نه مفعول مطلق دخالف الجمهورفعل مقدردپاره.

**تشریح** :. پـدے عبـارت سـره مـصـنـفؒ یـوه قـاعـده بـیـانـوی هـرکـلـه چـه دیواسم صحیح اویامـلـحـق داسـم صـحـیـح اضافت اوشی یاء دمتکلم ته نواخرد هغه به مکسورکولے شی دپاره دمناسبت دیاء اودغـه یـابه مفتوح وائی اویابه ساکن وائی دواړه صحیح دی هرچه فتحه ځکه اصل پـه هغه کلمه کښې چه مشتمل په یوحرف وی حرکت دے ددے دپاره چه ابتداء په ساکن لازمـه نشی , حقیقتایاحکمااواصل په مبنی علی الحرکت کښې فتحه ده دوجے دخفت نه اویابه

ساکن وائی دتخفیف دپاره. ...**اوکچرے** په اخرکښ الف وونوپه لغت فصیحه سره ثابت پریخودے شی برابره خبره ده چه داالف دتثنیه وی لکه مسلمایَ اویانوی لکه فتایَ دغه شان عصایَ اورحایَ لوجے دعدم موجب دانقلاب نه.

لکن هذیل قبیله دغه الف چه دتثنیه دپاره نه وی بدلوی په یاباندے لکه په عصایَ عصیَّ اوپه رحایَ کښ رحیَّ وائی اوپه الف دتثنیه کښ تغیرنه راولی.

---

**وان کان اخر الاسم یاءً مکسوراًماقبلهاادغمت الیاء فی الیاء الخ.**

ترجمه: اوکچرے په ماقبل داسم کښ کسره وه ماقبل دیانه نوادغام دیابه په یاکښ اوکړے.

حل ترکیب :. ترکیب ظاهرااوواضح دے.

**تشریح** :. اوکچرے ددغه اسم په اخرکښ واووی اواضافت راغلے وی یادمتکلم ته نوپدے کښ به دوه عمله کیږی قلب اوادغام یعنی داواوبه بدلولے شی په یاباندے اوبیابه دایاء په یاء کښ مدغم شی ځکه حرفین دیوجنس به جمع شی نودغه واو به بدلیږی په یاء باندے ځکه دصرفیانوقاعده ده چه هرځاے کښ واو اویاجمع شی نودغه واوبه بدلیږی په یاء اوبابه په یاء کښ مدغم کولے شی لکه په قاضی کښ به وئیلے کیږی قاضیَ اوپه مسلمون به وئیلے مسلمیَّ.

---

**وفی الاسماء الستة مضافةً الی یاء المتکلم تقول اخی و ابی الخ.**

ترجمه: اوپه اسماء ستو کښ چه مضاف وی یاء دمتکلم ته نووائی به الخ.

**حل ترکیب** : فی جار الاسماء السته موصوف صفت ذوالحال مضافة اسم مفعول ضمیرمستتره دده نائب فاعل الی یاء المتکلم جارمجرورظرف لغومتعلق مضافة مضافة اسم مفعول اسم مفعول سره دنائب فاعل اومتعلق نه شبه جمله حال شوذو الحال ذوا الحال سره دحال نه مجرورشودجارجارسره دمجرورنه ظرف لغومتعلق مقدم تقول تقول فعل فاعل اخی معطوف علیه ابی وحمی وهنی وفی وفمی معطوفات معطوف علیه سره دمعطوفات نه مقوله دتقول الخ.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف داسماء سته حکم بیانوی چه مضاف شی یاء دمتکلم ته پس وئیلے به اخی وابی بغیرردلام کلمے نه برائے تخفیف لوجے دکثرت استعمال نه.

لکن مبردنحوی پکښ ابیَّ اواخیَّ وائی په تشدیدیاء سره په ردلام دکلمے باندے اوبیادلام

دكلمے ادغام شوے دے په یاء کښې اودلیل دمبرددا شعردے.

چه (وابیّ مالك ذوالحجازبدار) اوهرچه اخ دے نودامحمول دے په اب باندے.

لکن جمهورنحات وائی چه داشاذدے اوداستعمال دفصحاء نه بعیددے.

**او دویم جواب** دادے چه احتمال دادے چه ابیّ جمع داب ده په اصل کښې ابین دے بیانون ترینه ساقط شو په اضافت سره اویاپه یاء کښې مدغمه شوه پس ابیّ ترینه جوړشولکه پدے شعرکښې راغلی دی : شعر:

فلما تبینَ اصواتنا بکین وفدیننا با الا بینا

اوپه حمی اوهمی کښې به وئیلے کیږی بغیرد رددلام کلمے نه اوهغه به محذوف نسیامنسیااوګرځی.

**ویقال فیّ فی الاکثر.** اوکله چه فم سره یاء دمتکلم ملحق شی پس په دے کښې به دری عمله کیدے شی : (۱) رد. (۲) قلب. (۳) ادغام. اوپه بعضی استعمالاتوکښې فمی وئیلے کیږی. وذولایضاف الی مضمراصلا. **حل ترکیب** :. ذومبتدالایضاف فعل مجهول هوضمیرنائب فاعل الی معنی ظرف لغومتعلق لایضاف داجمله فعلیه خبریه خبردمبتداء اصلامفعول مطلق دفعل مقدره دپاره اویاپه معنی دابداسره مفعول فیه ده دلایضاف دپاره.

تشریح:. اوذوداسماء سته نه پدے قاعده کښې مخالف دے داخوات نه دده اضافت ضمیرته نه صحیح کیږی ځکه ذوواضع وضع کړے دے مضاف الیه جنس ته چه دااسم جنس دیوے نکرے دپاره صفت واقع کیږی اوضمیراسم جنس نه وی مثال جاء نی جل ذومال.

**وقول القائل شعر انمایعرف ذ الفضل من الناس ذووه شاذ**

**حل ترکیب** :. قول القائل مبتدا انماکلمه حصریعرف فعل ذا الفضل مضاف مضاف الیه موصوف من الناس ظرف مستقرمتعلق الکائن صفت شودموصوف دامفعول به مقدم ذومضاف ه ضمیرمضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل یعرف فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه مقوله دقول قول سره دمقوله نه مبتدا شاذخبرمبتدا.

تشریح:. پدے عبارت سره مصنفؒ جواب کوی دسوال مقدره نه چه تاسواووئیل چه ذونه مضاف کیږی ضمیرته اوحالانکه پدے شعرکښې راغلے دے چه مضاف دے ضمیرته چه

ذووه دے مصنف جواب ورکړو چه داشاذدے یعنی قلیل الاستعمال دے پدے نورنه قیاس کیږی.

**و اذا قطعت هذه الاسماء عن الاضافة قلت اخٌ و ابٌ.**

ترجمه: اوهرکله چه دااسماء سته قطع شی داضافت نه نووائی به اخٌ وابٌ.

**حل ترکیب** :. اذشرطیه قطعت فعل فاعل هذه الاسماء موصوف صفت دامفعول به ده عن الاضافه جارمجرورظرف لغو متعلق قطعت فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به اودمتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط قلت فعل فاعل اخ واب معطوف علیه معطوف علیه سره دمعطوفات نه دامجموعه مقوله فعل سره دفاعل اومقوله نه جزا.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف بل حالت داسماء سته بیانوی چه هغه استعمال ددوی دے په وخت دقطع داضافت کښ نوویلے کیږی به اخٌ اوْاب الخ یعنی کوم لام کله چه پدوی کښ حذف شوے ده هغه به نشی ردکولے اواعراب ددوی به دهغے په ځاے په لام کلمه جاری کیږی.

**و ذو لایقطع عن الاضافة.**

**حل ترکیب** : ذومبتدا لایقطع عن الاضافت جمله فعیله خبریه البتة مفعول مطلق دفعل مقدره چه بتٌ دے. **تشریح** :. داسماء سته نه ذومستثنی دے په قطع داضافت کښ ذونه قطع کیږی.د اضافت ندے لازم الاضافت دے ځکه وضع دده راغلے ده دپاره دتوصل دتوصیف دشی په اسم جنس سره اودامعنی نشی حاصلیدے بغیرداضافت نه.

## بعض قواعدضروریه متعلق مضاف مضاف الیه.

**قاعده** :(۱) مضاف الیه به همیشه مجروروی یا لفظامثال غلام زیدیاتقدیرامثال غلام موسی یامحلامثال غلام هذا.

**قاعده**:(۲) مضاف الیه به کله مرفوع وی مثال جاء صاحب الداراوکله به منصوب وی نحولقیت صاحب الداراوکله به مجروروی مثال مررت بغلام زید.

**قاعده**:(۳) اضافت دصفت موصوف ته وبعکسه داجائزنده ځکه دترکیب اضافی معنی جدا وی اودتوصیفی معنی جداوی.

**قاعده:(۴)** دبعضی مرکباتو اضافت په ظاهرکښ دصفت موصوف ته شوے وی لکن په حقیقت کښ دموصوف حذف وی مثلامسجد الجامع ★ صلوة الاولی په اصل مسجد الوقت الجامع اوصلات الساعت الاولی وودلته دمضاف الیه نه مخکښ الوقت او الساعةموصوف محذوف دے.

**قاعده :(۵)** مضاف الیه مفرداوجمله دواړه واقع کیږی مثال مفردغلام زیدمثال جمله رجعت حین انقطع السفر.

**قاعده :(٦)** مضاف الیه ضمیرهم واقع کیږی مثال فی قلوبهم مرضٌ.

**قاعده :(۷)** ما اومن هم مضاف الیه واقع کیږی مثال جزاء من تزکی کل من علیهافان مثال مابموت مالادم له.

**قاعده : (۸)** ابنٌ یا ابنة چه په مابین دعلمین کښ واقع شی نودادماقبل دپاره صفت واقع کیږی اومابعدته به مضاف وی مثال الشیخ عبد القاهربن عبد الرحمٰن لکن پدے کښ به یوشرط داوی چه ماقبل دابن نه به مقوله دقول نه وی ورنه بیابه ماقبل مبتداوی اوابن مضاف اومابعدمضاف الیه به خبروی مثال قالت الیهودعزیرن ابن الله. **قاعده :(۹)** کل مضاف الیه واقع کیږی پدے شرط چه ماقبل ترینه اسم معرف باللام نه وی مثال فتحناعلیهم ابواب کل شیء. **قاعده : (۱۰)** ان مصدریه سره دمابعدنه په تاویل دمصدرسره دماقبل دپاره مضاف الیه واقع کیږی پدے شرط چه ماقبل ترینه اسم معرف باللام نه وی مثال من بعدان اظفرکم علیهم.من قبل ان تقدرواعلیهم.وغیره وغیره مافی المطولات من کتب علم النحو.

## التمرين لبحث المجرورات

| | |
|---|---|
| هوغافر الذنب | قال معاذالله |
| هذا الذى يذكر الهتكم | والقيت عليك محبة منى |
| هوشديد العقاب | هوعالم الغيب و الشهادة |
| بديع السمٰوٰت والارض | ان شجرة الذقوم طعام الاثيم. |
| اصحاب النار | حتى بلغ مطلع الشمس |
| مالك يوم الدين | من خشية الانفاق |
| غلبت فئةً كثيرةً باذن الله | سورة الفاتحه |
| فؤادام موسى | ال فرعون |
| رب موسى وهارون | خلوامن قبلكم |
| وطعام الذين اوتوا الكتاب | بعض ايات ربك |
| صراط الذين انعمت عليهم | رب الناس ملك الناس |
| لقاء يومكم هذا | الصرف ام العلوم و النحوابوها. |

## الخاتمة فى التوابع

مبتداء — الخاتمة — فى التوابع — باعتبار المتعلق خنبر

**اعلم ان التى مرت من الاسماء المعربة كان اعرابهابالاصالة.**

ترجمه: پوه شه چه کوم اسماء معربه مخکښ ذکرشوددوی اعراب بالاصاله وو الخ.

**تشريح**:. هرکله چه مصنف فارغ شودبیان دمقاصدوثلاثونه چه مرفوعات اومنصوبات اومجرورات دی چه دیته معربات اصلیه هم وائی نوشروع ئے اوکړه په توابع باندے چه دیته معربات تبعیه هم وائی. حاصل دا شو چه مخکښی هغه اسماء معربه ذکرشو چه دهغے عوامل چه رفع اونصب اوجرورکونکے ووبالذات داخل ووپه دغه اسماء معربه باندے اوس هغه اسمامعربه ذکرکوی چه په هغے عوامل بالذات داخل نه وی بلکه بواسطه دماقبل اسم سره پدے اسماء معربه باندے داخل وی ددے وجے نه دیته توابع وائی اوماقبل ته متبوع وائی.

پس زده کړه داخبره چه داتوابع پینځه دی: (۱) صفت. (۲) معطوف بالحرف. (۳) تاکید. (۴) بدل. (۵) عطف بیان.

**وجه دحصر** پدے پینځوکښ داده : چه مقصود بالنسبت به خالی نه وی یابه تابع وی یابه متبوع وی یابه دواړه وی کچرته اول وونو هغه تابع اوکه دویم وونو بیابه خالی نه وی یابه غرض ددواړودتابع نه دلالت وی په هغه معنی باندے چه ثابت وی په متبوع کښ اویابه راوړے شی دپاره دتقرردهغه معنی چه په متبوع کښ وی اویابه راوړے شی دتوضیح دهغه چه متبوع کښ ده که اول وونو هغه نعت اوکه دویم وونو هغه تاکیداوکه دریم وونو عطف بیان اوکه مقصود دواړه وونو هغه معطوف بالحرف.

**وهو کل ثان معرب باعراب سابقه من جهة واحدة.**

ترجمه : داتابع هرهغه متاخرمعرب دے چه متلبس وی په اعراب سابقه دجهت واحده نه.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف تعریف دتابع ذکرکوی په تعریف کښ لابدی وی دجنس اوفصل نه دلته داقیدپه تعریف کښ چه کل ثان دے په منزله دجنس دے هراسم موخرلره شامل دے اوداقید چه معرب باعراب سابقه فصل اول دے پدے سره مبتدأ خبراومفعول ثانی دباب علمت اومفعول ثالث دباب اعلمت ددینه علاوه باقی چه کوم اسم موخروی مثلا خبر حروف مشبه بالفعل خبرافعال ناقصه خبرماولا مشبهتین بلیس وغیره وغیره ټول خارج شوځکه ددوی د اعراب موافق داول سره نه وی اوداقید چه **من جهة واحدة** دے ،پدے سره خبردمبتدااومفعول ثانی اوثالث دباب دعلمت اواعلمت خارج شوځکه ددوی جهت داعراب دماقبل سره یوندے اګرکه په اعراب کښ دماقبل سره موافق دی اوموخرهم دی لیکن په جهت واحده سره دماقبل نه دی.

تفصیل مبتدا مرفوع ده لوجے اودحیثیت دمسندالیه نه اوخبرلوجے اوحیثیت دمسندنه مرفوع دے. مفعول اول دباب علمیت دمحکوم علیه لوجے نه منصوب دے اومفعول ثانی لوجے اودحیثیت دمحکوم به نه منصوب دے... اومفعول ثانی دباب اعلمت دمحکوم علیه اومفعول ثالث دمحکوم به په حیثیت سره منصوب دی اوداټول جهتونه مختلف اومتعدد دی لامن جهةٍ واحدةٍ. **سوال** : په تعریف کښ لفظ دکل راغلے دے اودارائحی داحاطے دافرادودپاره نوپدے سره لازم شوتعریف دافرادواودباطل دے.

**جواب** : په تعریف کښ لفظ دکل داخل ندے تفصیل مخکښ تیرشوے دے.

**و التوابع خمسة اقسام النعت والعطف الخ.** اودتوابع پینځه اقسام دی نعت اوعطف الخ.
مبتداء خبر
**تشریح :.** پدے عبارسره اقسام دتوابع ذکرکوی پس دتعریف نه.
**سوال :** توابع جمع دتابع ده اوتابع وزن فاعل دے اوفاعل په وزن فواعل نه جمع کیږی اودلته توابع وزن فواعل دے. **جواب :** وزن فاعل په دوه قسمه دے:۱.صفتی۲. اسمی وزن دفاعل صفتی نه جمع کیږی په فواعل سره اووزن دفاعل اسمی په فواعل سره جمع کیږی اودلته فاعل اسمی دے صفتی نه دے.۲- **جواب :** دا دے چه فاعل صفتی په دوه قسمه دے:(۱).صفت عاقل(۲).صفت غیرعاقل فاعل صفت عاقل نه جمع کیږی په فواعل سره اوفاعل صفت غیرعاقل جمع کیږی دلته صفت غیرعاقل دے تابعٌ چه صفت د اسم دے نوداجمع کیږی په توابع سره.لکه شواهق اوطوالع چه جمع دشاهق اوطالع ده. **سوال :.** دتعریف دتوابع نه خارج شوتابع فعلی اوتابع حرفی لکه انّ انّ اوضرب ضرب ځکه ثانی معرب ندے په اعراب دخپل سابق باندے. **جواب :** تابع حرفی اوتابع فعلی که خارج شی نو څه نقصان ندے ځکه بحث ځمونږه په توابع دمرفوعاتو اومنصوباتو اومجروراتو کښں دے چه هغه داقساموداسم نه دے نوکه دوی خارج شی نو څه نقصان نه راځی. **سوال :.** داتعریف په تعریف دتابع هم نه صادیقیږی ځکه کل ثان ثالث اورابع اوخامس وغیره لره نه شاملیږی ځکه دوی ثانِ ندی. **جواب :** مرادد ثانِ نه هرموخردے اوروستنے دے نوپدے معنی سره ثالث اورابع تول داخل شو. **سوال :** هرکله چه ثانی معرب اوګرځیدوپه اعراب دسابق سره نوسابق بلا اعراب پاتی شو. **جواب :.** مرادپه اعراب سابقه سره جنس اعراب دسابق دے نه عین اعراب دسابق.
**سوال :** خارج دتعریف نه هغه تابع چه اعراب په دواړوکښں یاپه یوکښں تقدیری وی اویامحلی وی ځکه ثانی معرب په اعراب دسابق سره ندے.
**جواب :.** اعراب عام دے دلته دلاحق که تقدیری وی اوکه لفظی وی اوکه محلی وی کوم چه معتبروی په سابق کښں تقدیری یالفظی اویامحلی.

**فصل النعت تابع یدل علی معنی فی متبوعه نحوجاء نی رجل عالم اوفی متعلقه نحوجاء رجل عالم ابوه.**
نعت یوتابع دے چه دلالت کوی په یوه معنی چه په متبوع کښں وی اویادده په متعلق کښں

وی.

**حل ترکیب** :. النعت مبتداء تابع موصوف یدل فعل فاعل علی معنی فی متبوعه معطوف علیه اوفی متعلق متبوعه معطوف معطوف سره دمعطوف علیه نه باعتبارمتعلق صفت دمعنی موصوف سره دصفت نه مجرورجارجارسره دمجرورنه ظرف لغومتعلق یدل فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه صفت کبرٰی دموصوف چه تابع دے موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء.

**تشریح** :. هرکله چه مصنف فارغ شودبیان داجمال دتوابع نه نوشروع ئے اوکړه په تفصیل دتوابع کښ اول دتوابع خمسونه نعت دے چه ده ته صفت هم وائی.نعت ئے مقدم کړو په باقی باندے ځکه اکثر استعمالاً دے اوکثیر الفوائد دے اواوفرمتابعتا دے ځکه دے دخپل متبوع په لسو ١٠ څیزونوکښ تابع دے نوپس دے اوفرمتابعتادے او هغه لس څیزونه به ذکرشی فیمابعد.

**فوائد قیود** : داقید چه تابع دے داپه منزله دجنس دے تمام توابع پکښ داخل دی اوداقید چه یدل علی معنی فی متبوعه پدے سره تمام توابع خارج شو ماسوادنعت نه.

**نعت** په دوه قسمه دے:(١).صفت بحاله چه دیته مصنف اشاره کړے ده پدے عبارت سره یدل علی معنی فی متبوعه (٢).صفت بحال متعلقه دے چه دیته اشاره مصنف کړے ده پدے عبارت سره چه اوفی متعلق متبوعه صفت بحاله دیته وائی: چه صفت بالذات دپاره دموصوف واقع شوے وی مثال جاء نی رجل عالم پدے مثال کښ رجل موصوف منعوت متبوع دے اوعالم صفت نعت تابع دے نوعالم دلالت کوی په یوه معنی باندے چه علم دے او هغه بالذات موجوددے په رجل کښ یعنی دلالت کوی په یوه معنی چه موجوده ده په رجل کښ چه هغه معنی علم دے. اوصفت نعت بحال متعلقه دیته وائی چه صفت بالذات دپاره دموصوف واقع نه وی مثال جاء نی رجل عالم ابوه پدے مثال کښ عالم موصوف اوعالم ئے صفت دے اوداعالم صفت دمتعلق درج عالم دے چه ابوه دے.

پس زده کړه داخبره چه متعلق دموصوف هغه دے چه په مابین موصوف اوصفت کښ علاقه وی اوعلاقه عامه ده چه قریبه وی اوکه بعیده وی علاقه قریبه په دری قسمه ده:

(١) علاقه دنسبت مثال جاء نی رجل عالم ابوه.(٢)علاقه دملك لكه جاء رجل حسن غلامه (٣) علاقه دمخالطے لكه مررت برجل طويل ثوبه. اومثال دعلاقے بعيدے مررت برجل قائم غلام ابيه.

**و القسم الاول يتبع متبوعه فی عشرة اشياء الخ.**

ترجمه: اونعت بحاله دا به تابع وی دخپل متبوع په لسو ١٠ څيزونو كښ الخ.

**حل تركيب** :. القسم الاول مبتدأيتبع فعل فاعل متبوعه مضاف اليه مفعول به فی عشرة اشياء جارمجرورمتعلق يتبع فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به اومتعلق نه خبر دمبتدا.

**تشريح** : اولنے قسم چه هغه نعت جمله صفت بحاله دے دے به دخپل متبوع سره متعلق وی په لسواشياء كښ چه هغه دری قسمه په اعراب كښ دی: (١) رفع .(٢)نصب. (٣) جر. يعنی كچرته متبوع مرفوع وی اوكه اوكه متبوع منصوب اومجروروی نوتابع به مه منصوب اومجروروی هم دغه شان په (٤)معرفه (٥) اونكره كښ اوهمدغه شان (٦) په افراد (٧) اوتثنيه.(٨)اوجمع كښ (٩) اوهمدغه شان په تذكير (١٠) اوتانيث كښ.لكن پدے لسواشياؤكښ څلورپه تركيب كښ موجوديږی اوشپږ نه موجوديږی. .. لوجے دمنافات دبعضی دبعضوسره مثلاً په اعراب كښ به يارفع وی اويابه نصب وی اويابه جروی دغه شان په تعريف اوتنكيركښ ددے دواړونه به يابه په تعريف اويابه په تنكيركښ وی اويابه په نصب كښ وی اويابه فی الافرادو التثنيه و الجمع والتذكيرو التانيث.

**سوال** :. ستاقاعده منقوضه شوه په رجل علامة اوامرأة علامة دارنگه رجل صبوراوامرئة صبورپدے كښ مطابقت نشته دے په مابين دموصوف اوصفت كښ په تذكير اوتانيث كښ.

**جواب** : دمطابقت حكم په هغه صفت كښ دے چه په هغے كښ مذكر اومونث برابرنه وی اوصفت دمونث دے جاری نه وی په مذكرفلايردمايرد.

مثال جاء نی رجل عالم دلته عالم صفت درجل دے څلورواړه اشياء پكښ موجوددی :

(١) صفت موصوف دواړه مرفوع دی. (٢) دواړه نكره دی. (٣) دواړه مفرددی.

(٤) دواړه مذكردی.مثال رجلان عالمان دامثال دتثنيه دے اودری واړه باقی پكښ هم موجوددی رجال عالمون دامثال دجمعے دے اودری واړه باقی پكښ هم موجوددی .

زيد العالم دامثال دمعرفـے دے اودری واړه باقی پکښں هم موجوددی .
امرأة عالمة دامثال دتانيث دے اودری واړه باقی پکښں هم موجوددی .

**و الـقـسـم الثـانـی انـمـايتبـع متبـوعـه فی الخمسة الاول فقط اعنی الاعراب و التعريف و التنكير كقوله تعالى من القرية الظالم اهلها.**

ترجـمـه: اوصـفـت بـحـال متعلقه به تابع وی دخپل متبوع په پينځوړومبنوكښں فقط چه هغه اعراب اوتعريف اوتنكيردی. حل تركيب:. تركيب واضح دے.

**تشريح** : دويـم قسـم دنـعـت صـفـت نـه چـه بـحـال مـتـعلقه دے دے به مطابق وی دخـپـل متبوع سره په پينځواشياؤكښں: اعراب (١).رفع(٢).نصب(٣).جر(۴).تعريف(۵) تنكير لكن په پينځواشياؤكښں به دوه موجوديږی اودری نه مثال داقول دالله تعالى شو:من هذه القريه الظالم اهلها پدے مثال القريه موصوف الظالم صفت بحاله پدے كښں دصفت دموصوف سره په دوه څيزونوكښں مطابقت دے (١).اعراب ددواړه مجروردی(٢).دواړه معرفه دی.

**سوال** : پـدے دواړوقسـمـونـوكښں دافرق ولـے اوكړے شو؟چه پدے قسم كښں افرادتثنيه جمع تذكير اوتانيث كښں مطابقت اونه وے.**جواب** :. نعت صفت په دے قسم كښں مشبه دے دفعـل سره.لـكـه څنګه چه فعل مابعدته مسندوی نودے هم مابعدته مسنددے نودقاعدے مطابق چه فاعل مذكروی نوفعل به هم مذكروی اوكه فاعل مونث حقيقی وی نوفعل به هم مونث راوړلے شی اوكه فاعل اسم ظاهروی نوفعل هم مفردراوړے شی نودغه شان نعت دے لكه مررت برجل قائمة جاريته مررت بامرأة قائمة غلامها،مررت برجلين قائم ابوهما،مررت برجال ذاهب غلامهم.مثال دكتاب القرية متبوع موصوف الظالم صفت اهلهامضاف اليه فاعل د الظالم صيغه اسم فاعل داشبه جمله تابع صفت دموصوف چه القرية دے لظالم صفت دخپل موصوف سره چه القرية دے ، په پينځه څيزونوكښں په دووكښں مطابق دے دواړه مجروردی اودواړه معرفـے دی اوپه باقی پينځوكښں پشان دفعل دے لكه دلته القريه مونث دے موصوف اوصفت دده الظالم دے مذكرراوړے دے ددے وجينه چه دده فاعل چه اهلها دے هغه مذكردے اوحال دصفت پشان دفعل دے په اسنادكښں مابعدته.

دارنګه بل مثال جاء نی رجل عالمة امه پدے مثال كښں ام مونث حقيقی دے ددے وجينه

عـالـمه صفت مونث راوړے شوے دے سره ددینه چه موصوف ددے مذکردے چه رجلٌ دے فتامل.

**وفائدة النعت تخصيص المنعوت ان كانانكرتين.**

ترجمه : اوفائده دنعت تخصیص دمنعوت دے که دواړه نکره وو.

**حل تركيب** : فـائـده الـنـعـت مبتـداتـخـصـيـص الـمـنـعـوت خبرددواړودال بالجرمقدم ان كاناانكرتين داشرط موخر.

**تشريح** :. پدے عبارت سره مصنف دنعت فائده ذکرکوی اوهغه دلته پینځه ذکرکوی : (۱) تـخـصـيـص پـه مـنـعـوت كـښ نـعت پيداكوئ مثال جاء نی رجل عالمٌ پدے شرط چه دواړه نـكـرتـيـن وی . (۲) دتـوضـيـح دپاره دمـنـعوت مثال جاء نی زيد الفاضل ان كانامعرفتين. (۳) لـمـجـرد الثـنـاء مـثـال بسـم الله الـرحـمٰـن الرحيم. (۴) لمجرد الذم مثال اعوذبالله من الشيطان الرجيم. (۵) – لتاكيد مثال :نفخة واحدة .

**تفصيل** : تـخـصـيـص پـه نـزددشـركـاء عبارتﷺ ے دتقلیل دشرکاء اوابهام نه په نکارت کښ لـکـه رجـلٌ نـکـره ده اوشـامـلـه ده تـهـولـوافـرادوده.رجلٌ لره خو چه کله صفت ددے عالم اووئیلے شـونـو هـغـه شیوع اوابهام ترینه زائل شو.اوتوضیح دعبارت درفع دابهام نه په معارفوکښ لکه زيـد الـفـاضـل نوزيداحتمال دفاضل اودعدم فاضل وو نو هرکله چه فاضل ورسره ذکرشونورفع داحتـمـال راغله مجردثناعبارت دے محض تعریف کول دموصوف پکاردی پدے سره اشتراك اواحتـمـال لری کول مقصودنه وی دابه په هغه ځاے کښ وی چه موصوف معرفه وی اودصفت راوړونه مـخـكـښ مـخـاطب ته موصوف معلوم وی لکه بسم الله الرحمٰن الرحیم نو الرحمٰن او الـرحيم دواړه داللهﷻ صفتونه دی پدے سره محض دالله تعالی صفتونه اوثناء اوتعریف کول دی اودوضـاحـت دپاره ندی اودغه شان په صورت دذم کښ.او **تاكيد**عبارت دے دلتـه ددینه چه مـوصـوف دلالـت کوی په صفت مخکښ دراوړودصفت نه لکن صفت راوړے شوے وی دپاره دتاکیددموصوف مثال نفخة واحدة . پدے مثال کښ وحدت دتاء دنفخة نه معلوم شوے وولکن وحدت دتاکیددپاره راوړے شو.

**واعلم ان النكرة توصف بالجملة الخبرية نحومررت برجلٍ ابوه عالم اوقام ابوه.**

ترجمه: پوه شه چه دنکرے توصیف په جمله خبریه کیدے شی مثال الخ.

**حل ترکیب** :. اعلم فعل فاعل ان حرف مشبه بالفعل النکره اسم انّ توصف فعل فاعل بالجمله الخبریه صفت موصوف متعلق توصف فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبرانّ انّ سره داسم اوخبرنه بتاویل مفردمفعول به قائم مقام مفعولی اعلم.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف یوه قاعده ذکرکوی چه دنکرے توصیف په جمله خبریه سره کیدے شی ددے عبارت نه دوه خبرے مستفاددی(۱).جمله صفت واقع کیدے شی (۲).خبره چه داجمله به خبریه وی نه انشائیه.

دلیل جمله نعت‌صفت واقع کیدے شی ځکه غرض دنعت نه دلالت دے په هغه معنی باندے چه په متبوع کښ وی داچه څرنګه حاصلیږی په مفردسره دغه رنګه حاصلیږی په جملے سره. **ددویمے خبرے دلیل**:چه جمله خبریه به وی اوانشائیه به نه وی ځکه صفت مربوط وی دموصوف سره اوربط جمله خبریه قبلوی نه انشائیه ځکه جملے انشائی لره ثبوت فی نفسهانشته دے اواثبات دشی دپاره بل شی فرع دثبوت دده ده فی نفسه پدے وجه ده جمله انشائیه صفت نه واقع کیږی دارنګه جمله انشائیه حال اوصله اوخبرهم نه واقع کیږی الابتاویل.

دوه مثالونه ذکرکړی دی اول مثال دجمله اسمیه خبریه چه صفت واقع دے درجل اودویم مثال دجمله فعلیه خبریه چه صفت واقع دے درجل اوماتن قیددنکرے لګولے دے اشاره ده دے خبرے ته چه جمله خبریه صفت دنکرے واقع کیږی اودمعرفے صفت نه واقع کیږی لوجے دمطابقت په صورت دنکره کښ اودعدم مطابقت نه په صورت دمعرفه کښ ځکه جمله په حیثیت دجملے سره چه نه اغستل شی نونه معرفه ده اونه نکره ده معرفه نده ځکه داعلامت دده دتعریف نه خالی ده لهذا حکماً دنکرے پرے کولے شی نولهذادنکرے صفت واقع کیږی نه دمعرفه.لکن جمله چه صفت واقع شی ، نولابدمن الضمیرفی الصفت للربط ځکه جمله خبریه مستقله بنفسهاده اونعت مربوط وی دمنعوت خپل سره نولابدی شوه دربط نه اوربط بغیردعائدنه نه راځی.

و المضمر لایوصف و لایوصف به. اومضمرنه موصوف واقع کیږی اونه صفت.

**حل ترکیب** :. المضمر مبتدالایوصف ولایوصف به معطوف معطوف علیه خبردمبتدا.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف بله یوه قاعده بیانوی چه ضمیرنه موصوف واقع کیږی اونـه صـفـت ضـمـیـر پـه دری قسـمـه دے:(۱).ضـمـیـرمـتـکـلـم(۲) .ضـمـیـر مخاطب(۳).ضمیرغائب ضمیردمتکلم اومخاطب اعرف المعارف دی دوی موصوف نه واقع کیږی ځکـه صفت دپاره دتـوضیح دموصوف وی اوددوی تـوضیح تـه ضرورت نشتـه دے اوضمیردغائب حمل دے په ضمیردمتکلم اومخاطب باندے طرداللباب.

اوضـمیـرصـفـت نـه واقـع کیـږی ځـکه صفت یوتابع وی چه دلالت کوی په هغه معنی چه موجوده وی په موصوف کښ اوضمیردال دے په ذات باندے نه په معنی باندے.

**سؤال** : ستاقاعده منقوضه شوه په لا اله الاهو العزیز الحکیم دلته هو موصوف واقع دے او العزیزو الحکیم صفتونه دی.

جواب: د العزیزاو الحکیم بدل دهونه دے نه صفتونه دهو.

**فائده** : (۱) بـعـضـی نـحـات دنـعـت دپاره شرط اشتقاق ګرځوی یعنی صفت به نه مشتقی واقـع کیـږی اونه جامداوکچرے جامد راغلـے وی نوتاویل به کوی په مشتقی سره لکن مذهب دجمهـورونـحـاتودادے چه شرط په نعت کښ دجامد اواشتقاق معتبرندے لکه دیته اشاره ابن حاجب کړے پدے عبارت سره ولافضل بین ان یکون مشتقااوغیره.

**فائده** : (۲) مـوصـوف به خاص وی دصفت نه اویابه مساوی وی دصفت سره دپاره ددے چه لازم نشـی زیـادت دفـرع پـه اصل باندے لکن دابه په اعتباردمفهوم سره وی نه په اعتباردخارج سره اعتـراض نـه راځـی پـه تـوصیف دحیوان په ناطق سره ځکه موصوف دلته چه حیوان دے اخص هم نـدے اومساوی هم ندے دناطق سره بلکه اعم دے نومرادځمونږه دمساوی اواخص نه په مصداق کښ ندے بلکه په تعریف اومعلومیت کښ دے.

**فائده** : (۳) دمـعـرف بـالـلام په توصیف به هم په معرف باللام سره کیږی لوجے دقاعدے مذکورے نه مثال قام الرجل العالمُ.

**فائده** : (۴) داسم اشارے تـوصیف به هم معرف باللام سره کیږی.لرفع الابهام فی الاشاره داسم اشارے توصیف به په اسم اشارے سره کیږی.مثال مررت بهذا العالم.

**فائده** : (۵) مـطـابـقـت دصفت دموصوف سره لازمابه وی لکن که اسم تفضیل مستعمل

ووپه من سره نو مطابقت بیالازم ندے اسم تفضیل پدے صورت کښې همیشه مفردمذکروی مثال مررت برجال افضل من زید.

**فائده :** (٦) هغه صفات چه مذکراومونث پکښې برابروی لکه وزن فعول اوفعیل په هغے کښې هم مطابقت شرط ندے کمامرمثال جاء تنی امرأة صبور اورامرأة قتیل جاء نی رجل صبوراورجل قتیل.

**فائده :** (۷) دوه اسمین معرفه وواویانکره وونو غالباصفت موصوف به وی مثال معرفتین جاء الرجل العالم مثال نکرتین جاء نی رجل عالم.

**فائده :** (۸) داسم اشارے نه بعداسم معرف باللام غالباصفت موصوف وی مثال ذلك الکتاب پدے کښې نورتراکیب هم شته دے.

**فائده :** (۹) دوه اسمین وومنون هغه غالباموصوف صفت په ترکیب کښې واقع کیږی لکن پدے شرط چه مقدم اسم دچادپاره علم نه وواومدخول دحرف دحروف مشبه بالفعل اودکان وغیره نه وومثلاولهم عذاب عظیم صراطا مستقیمافتحامبینا اجراعظیما.

**فائده :** (۱۰) کله کله په دری یاځلور یاپینځواسماء باندے چه الف لام داخل شی پدے کښې اول موصوف وی اوباقی صفات مثلابسم الله الرحمٰن الرحیم هو الله الخالق البارئ المصور. الحج واجب علی الاحرار المسلمین البالغین العقلاء الاصحاء.

**فائده :** (۱۱) کله کله دنکرے نه بعد فعل واقع وی نودغه هم موصوف صفت وی پدے شرط چه فعل دجزاء په مقام کښې نه وی واقع مثلا الکلمه لفظ وضع لمعنی مفردیاحروف تجرالاسم فقط کلمه تدل علی معنی فی نفسها.

**فائده:** (۱۲) فائده که فعل بعد النکره په مقام دجزاء کښې وونو موصوف صفت به نه وی مثلامن بنی لله مسجدابنی الله له بیت فی الجنه الحدیث.

**فائده :** (۱۳) کله یواسم ضمیرته مضاف وی اوددینه وروستومعرف باللام راشی نودغه هم غالباموصوف صفت وی مثلاسبحان ربی الاعلی سبحان ربی العظیم.

**فائده :** (۱۴) کله داسم موصول نه مخکښې اسم معرف باللام راشی نو هغه هم موصوف صفت وی مثلا هدی للمتقین الذین یؤمنون بالغیب .

**فائده :** (۱۵) کله چه دنکرے نه روستوجارمجروروراشی نودا هم موصوف صفت وی

بشرطیکه چه دا نکره اویاماقبل ددے نکرے نه ددے جارمجرورمتعلق نه وی.مثلاعلی رجل من القریتین عظیم یاعلی معنی فی نفسهای کائن فی نفسها.

**فائده :** (١٦) لفظ دابن دماقبل دپاره صفت اودمابعدپاره مضاف الیه واقع کیږی مثلااحمدبن محمد بن حسن.

**فائده :** (١٧) اسم مضاف ضمیرته وی اوددینه روستو چه اسم موصول راشی داموصوف صفت واقع کیږی مثلاامهاتکم اللاتی ارضعنکم.

**فائده :** (١٨) هرکله چه دنکرے نه بعدلفظ دغیرراشی داهم صفت موصوف وی مثلاانه عملٌ غیرصالح.وذلك وعدغیرمکذوب حتی یخوضوافی حدیث غیره.

**فائده :** (١٩) یواسم مضاف وی ضمیرته اوروستوترینه اسم اشاره راشی داهم موصوف صفت واقع کیږی بعض مواضعوکښ مثلامن سفرنا هذانصبایابورقکم هذه الی المدینه یابامرهم هذاوهم لایشعرون.

**فائده :** (٢٠) چه دلفظ دذات نه مخکښ نکره راشی داهم غالباصفت موصوف وی مثلاو القهقه فی کل صلاه ذات رکوع وسجود.

**فائده :** (٢١) کله چه قرینه وی یعنی ذکردصفت نه موصوف معلومیږی نوپه اکثرومقاماتوکښ موصوف حذف شوے وی مثلاان اعمل سابغات سابغات صفت دموصوف مقدردے ای اعمل دروعاسابغات عندهم قاصرات الطرف وعملوا الصٰلحٰت ای الاعمال الصالحات مسجد الجامع ای مسجد الوقت الجامع وغیره وغیره هغه **مقامات** چه په هغے کښ اسم جامدصفت نه تاویل په مشتقی سره شوے وی.

(١) اسم منسوب چه داپه حکم داسم مشتقی کښ وی مثلاجاء نی رجل بغدادی ای منسوب الی بغداد.

(٢) اسم جامد چه دلالت په تشبیه کوی مثال رئیت رجلااسدای شجاعا.

(٣) لفظ ذوپه معنی دصاحب سره ترینه تعبیرکیدی شی جاء رجل ذوعلم ای صاحب علم.

کوم صفت چه دموصوف بحال متعلقه وی نودا صفت به کله فعل وی اوکله اسم فاعل اوکله اسم مفعول اوکله صفت مشبه.

مثال : فعل جاء رجل اکرمنی اخوه. مثال : اسم فاعل جاء رجل ضارب ابوه

مثال داسم مفعول جاء نی رجل مضروب غلامه. مثال : صفت مشبه جاء رجل کریم ابوه.

**توابع پینځه دی :**

(۱)نعت (۲)تاکید (۳)بدل (٤)عطف بالحرف (٥)عطف بیان.

وجه الضبط

به خالی نه وی

یاتابع اومتبوع دواړه به وی.

۲.معطوف بالحرف

به نه وی

للتاکید المتبوع

لتوضیح المتبوع

۳.نعت ٤.عطف بیان ٥.تاکید.

**التمرین**

نفخة واحدةٌ — تلك عشرة كاملةٌ

وهذاكتاب انزلناه مباركٌ. — من هذه القرية الظالم اهلها

فتحرير رقبة مؤمنة — كالفراش المبثوث.

فئة قليلة — فيهاكتبٌ قيمةٌ

وانبتهانباتاحسناً — نجنى من القوم الظّٰلمين

ذلك الكتاب لاريب فيه — اهدنا الصراط المستقيم

صراطامستقيما.

**فصل** العطف بالحروف تابع الخ. عطف په حروفوسره یوتابع دے الخ.

**حل ترکیب :.** العطف مبتداومابعده خبرباقی واضح دے.

**تشریح :.** دویم قسم دتوابعونه معطوف بالحرف دے عطف په لغت کښې میلان ته وائی اومعطوف اصطلاحی ته معطوف پدے وجه وائی چه معطوف پکښې مائل شوے وی معطوف علیه ته یعنی معطوف په حکم معطوف علیه سره ګرځی.اصطلاحی تعریف مصنف ذکرکړے دے. ذیته عطف النسق هم وائی دنسق معنی ده برابرکیدل تابع معطوف

اومتبوع معطوف علیه په اعراب کښې برابروی نو دد ے وجینه ورته عطف نسق وائی.دویمه معنی دعطف نسق نسق وائی ترتیب ورکولو ته تابع دمعطوف دمتبوع معطوف علیه نه روستو په ترتیب سره وی.

**فائده قیود** : لفظ دتابع په منزله دجنس د ے تمام توابع پد ے سره داخل شواوداقید چه کلا همامقصودان بالنسبه داپه منزله دفصل د ے پد ے سره باقی توابع خارج شو.

وشرطه ان یکون الخ.

تابع معطوف دپاره شرط داد ے چه په مابین دده اودمتبوع دده کښې یودلسو حروف عاطفه نه یو حرف وی اودحروف عاطفه بحث مکمل په قسم ثالث کښې به راشی ان شاء الله تعالی مثال قام زیدٌ وعمروٌقام فعل زیدمتبوع معطوف علیه واو حرف عاطف عمروتابع معطوف معطوف علیه سره. دمعطود نه فاعل فعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه.

**واذاعطف علی الضمیر المرفوع المتصل یجب تاکیده بالضمیر المنفصل نحوضربت اناوزیدٌ.**

ترجمه : اوکله چه عطف اوکړ ے شی په ضمیرمرفوع متصل باند ے نوواجب ده تاکیدده په ضمیرمنفصل سره لکه ضربت انا وزیدٌ.

**حل ترکیب** :. اذاشرطیه عطف فعل مجهول علی الضمیرعلی جار الضمیرموصوف المرفوع المتصل صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مجرورشودجارجارسره دمجرورنه نائب فاعل دعطف فعل سره د نائب فاعل نه شرط یجب فعل تاکیده فاعل بالضمیر المنفصل صفت موصوف موصوف سره دصفت نه مجروردجارجارسره دمجرورنه ظرف لغو متعلق یجب فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه جزاء دشرط.

**تشریح** :. پد ے عبارت سره مصنف یوه قاعده دعطف بیانوی اوهغه داده چه هرکه اراده اوکړ ے شی دعطف په ضمیرمرفوع متصل باند ے نوتاکیدبه دهغه راوړ ے شی په منفصل سره ځکه ضمیرمنفصل کالجزء د ے دکلمه نه لفظااومعنااوعطف پده باند ے ب ے دتاکیدنه په منفصل سره داعطف د ے په جزء دکلمے باند ے اوداباطل د ے.

**سوال** : هرکله چه دضمیرمتصل تاکیدراشی په منفصل سره اوبیاورباند ے عطف کید ے

شی نـودا بـه خـالـی نه وی یابه داعطف وی په مواکَد باندے اویابه داعطف وی په مواکِدباندے کـه عـطف وی پـه مواکَدباندے نولازمیږی عطف په جزء دکلمے باندے اوکه په مواکِدباندے عطف وائی نوداتاکیدشواوعطف نه شو.

**جواب** :. داعطف دے په موکد باندے اواعتراض نه واردیږی ځکه کله چه دده تاکیداوشو په ضمیرمنفصل سره نو هغه اتصال دده ختم شوپه سبب د تاکید سره مثال :ضربت انا وزیددلته ضـمیرمتـصل اوئیل ځکه که ضمیرمنفصل وی نوبغیردتاکیدنه په هغه عطف جائزدے لکه اناوزیـداوضـمیرمـرفـوع ئـے اوئیـل ځکه که منصوب یامجرورو ے نوبیا هم عطف جائزدے بغیردتاکیدنه لکه ضربتك وزیدا ومررت بك وبزید۔

**الااذافصل**

**تشریح** :. لـکـن کـه فـصـل واقع شوے ووپه مابین دضمیراودمعطوف کښ برابره خبره ده چه دافصل مخکښ دحرف عاطف نه وی مثال لکه ضربت الیوم وزیدٌ اوکه بعددحرف عاطف نـه وی لـکـه مـااشـرکـنـاولااباٶنابیاترك دتاکید جائزدے ځکه په فصل سره په کلام کښ طوالت راغـلـے دے اوس که تاکیدپه منفصل سره هم اوشی نوزیات طوالت به راشی اوطوالت تقاضی داختـصـار کـوی نـودامونږه حاصل کړه په ترك دتاکیدسره لکن دامسئله په صورت دفصل چه ذکرشـوه داجـائـزده کـه سره دفصل نه تاکیدراشی هم جائزدے مثال فکبکبوافیها هم و الغاوون دلته فصل راغلـے دے په فیهاسره اوسره ددینه په هم سره عطف شوے دے چه ضمیرمنفصل دے دویم مثال ماعبدناهم من شیء نحن ولااباء نا.

---

**و اذاعطف علی ا لضمیر المجرور یجب اعادة حرف الجرنحو مررت بك وبزیدٍ.**

اوکله چه عطف اوشی په ضمیرمجرورنوواجب ده اعاده دحرف جرلکه مررت بك وبزید.

حل ترکیب :. واضح دے.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف بله قاعده ذکرکوی دعطف او هغه داده چه کله عطف اوکړے شی پـه ضمیرمجرورباندے نواعاده دحرف جر واجب ده دپاره ددے چه عطف اونه شی پـه جزء دکلمه باندے ځکه ضمیرمجرور په شان دجزء دے دجاردوجے دشدت اتصال دمجرورنه دجارسره اوس کـه عطف اوشی بغیر داعادے دحرف جر نه نولازم به شی عطف په جزء دکلمے

باندے اودا باطله ده **سوال** هرکله چه اعاده دحرف جرپه معطوف کښې اوشی نولازم به شی عطف په مرکب باندے اودا باطل دے : **جواب** : معطوف په حقیقت کښےمجرور دے فقط اواعاده دحرف جرتکریردعامل دے: **فائده** : داقاعده عامه ده دحرف جرهم اعاده واجب ده اوکه په مضاف الیه مجرورضمیر باندے عطف اوشی نواعاده دمضاف هم واجب ده مثال جاء نی غلامك وغلام زیدلکن مصنف داختصاردوجے ددے ذکرنه دے کړے :

**واعلم أن المعطوف فی حکم المعطوف علیه الخ.**

ترجمه: پوهـ شه چه معطوف علیه په حکم دمعطوف علیه کښې وی

**حل ترکیب** :. اعلم فعل فاعل أن المعطوف فی حکم المعطوف علیه اسم أن وخبر أن بتأویل المفرد مفعول به قائم مقام مفعولی اعلم.

**تشریح** :. په دے عبارت سره مصنفؒ دمعطوف اومعطوف علیه اشتراك دحکم ذکر کوی جوازا اوممتنعا اودهغے بیا په مابعد.اعنی اذاکان الخ.عبارت سره تفصیل کوی :

**سوال** : معطوف ډیرځله مبنی وی اومعطوف علیه معرب وی اویابالعکس وی اویامعطوف معرفه وی اومعطوف علیه نکره وی اوبالعکس وی اومعطوف مفردوی اومعطوف علیه تثنیه اوجمع وی نوڅنګه معطوف په حکم دمعطوف علیه کښې وی ؟. **جواب** : معطوف به په حکم معطوف علیه کښې وی په احوال عارضوکښې دماقبل نه معطوف علیه ته اوداخواحوال دی چه عارض دی من حیثیت نفسه الی المعطوف دلته داحکم څمونږه مراداندے. **سوال** : ستا قاعده منقوضه شوه پدے ترکیب چه یارجل و الحارث دلته والحارث عطف دے په یارجل باندے اومعطوف په حکم معطوف علیه کښې ندے ځکه دلته تجریددلام ندے. **جواب** : معطوف په حکم دمعطوف علیه کښې دے پدے شرط چه هغه احوال چه په معطوف علیه کښې وی دابه منتفی په معطوف کښې نه وی اودلته په معطوف کښې دخول دحرف ندا ممتنع دے ځکه په معرف باللام باندے حرف نداء نه داخلیږی.مثال صفت:قام زیدن العالم و العاقل معطوف علیه صفت دزیددے چه العالم دے نومعطوف چه العاقل دے هم صفت د زید دے.مثال دخبر زیدٌ عاقل وشاعرزیدمبتدا عاقل معطوف علیه خبروشاعرمعطوف داهم خبردزیدٌدے.

مثال دصله : قام الذی صلی وصام صلی معطوف علیه صله دالذی ده نو صام هم صله دالذی دے معطوف دے. مثال دحال قعد زیدٌ مشدوداو مضروبا مشدودا حال دذو الحال دے چه زیدٌ دینو مضروبا معطوف دے په مشدودا هم حال دے.

**و الضابطة فیه انه حیث یجوز فیه ان یقام المعطوف مقام المعطوف علیه جاز العطف و حیث لافلا.** اوقانون په دے کښ دا دے چه کوم ځائے کښ اقامت دمعطوف په مقام دمعطوف علیه کښ جائزوی نوعطف به هم جائزوی الخ.

حل ترکیب :. واضح دے. **تشریح** :. په دے عبارت مصنفؒ دد ے مخکښ قاعدے دپاره یوه ضابطه بیانوی اوهغه داده چه معطوف به په حکم دمعطوف علیه کښ په هغه حالت ځائے کښ وی چه صحیح وی اقامت دمعطوف په ځائے دمعطوف علیه باندے والافلا. مثال ددے مازیداقائماولاذاهب عمرُو په دے ترکیب کښ ذاهبٌ مرفوع دے خبرمقدم دعمرُو دپاره دے معنی دارنګه ده ددے مثال زیدٌ قائم ندے اوعمرتلونکے ندے ماهشابه بلیس زیدٌ اسم دده دے اوقائما ورلره خبردے واوعاطفه لازائده ذاهبٌ خبرمقدم اوعمرُو مبتدامو خردادوه جملے شوے دثانی جملے عطف په اولی جملے باندے شوے دے داصورت دجواز دے.

اوصورت دعدم جواز ددے ترکیب هرکلهٔ چه ذاهبامنصوب شی بنابرعطف په قائماچه خبردمادے نوداذاهبابه خبردماشی نوداصحیح ندے ځکه په قائماکښ ضمیردے چه راجع دے زیدٌ ته چه اسم دمادے اوپه زاهباکښ ضمیرنشته دے ځکه دده فاعل عمرُودے ځکه تلونکے عمرودے. اونه زیدنوپه دے ترکیب کښ معطوف چه ذاهبادمعطوف علیه په ځائے چه قائمادے اقامت صحیح ندے لهذاداعطف په دے طریقے سره ندے صحیح.

**و العطف علی معمولی عاملین مختلفین جائز ان کان المعطوف علیه مجرورامقدماو المعطوف کذلك نحوفی الدارزیدٌو الحجرة عمرٌو.**

ترجمه : اوعطف په معمولین ددووعاملینو چه مختلفین وی جائزدے په دے شرط چه معطوف علیه مجرورمقدم وی اومعطوف هم دغه شان وی.

**حل ترکیب** :. و العطف علی معمولین عاملین مبتدا جائز خبردا جمله اسمیه دال بالجزاء ان کان المعطوف علیه الخ شرط.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف بله قاعده دعطف بیانوی.په اصل کښې دلته دوه .صورتونه دی :(۱)- صورت اتفاقاً جائزدے(۲).صورت اختلافی دے اوددے دوه صورتونه دی اول صورت اتفاقی جائز چه دوه اسمونه عطف شي په دوه معمولینو باندے اودوی وی معمولین دعامل واحده دپاره داجائزدے.مثال ضرب زیدٌعمروا وبکروخالداپدے مثال کښې زیدٌ وعمرودضرب دعامل واحده معمولین دی اوپدوی باندے عطف دبکراوخالدشوے دے پدے شان سره چه بکرٌعطف دے ځکه دامسموع من العرب دے.

اول اختلافی صورت : هرکله چه دوه اسمونه عطف شي په معمولین دعاملین مختلفین باندے پدے شان سره چه مجرورمقدم پکښې نه په جانب دمعطوف علیه کښې وی اونه په جانب دمعطوف کښې دا جائزندے عند الجمهورخلافاللفراء.مثال لکه زیدٌ فی الداروعمروٌ الحجرة پدے مثال کښې زیدٌ معمول دمبتدا دے چه عامل معنوی دے او الدارمعمول دفی جاره دے اوپدے زیدباندے عطف دعمروشوے دے اوپه الدارباندے عطف د الحجره شوے دے لکن پدے مثال کښې مجرورنه په جانب دمعطوف علیه کښې مقدم دے اونه په جانب دمعطوف کښې نوداعطف باطل دے ځکه داواوحرف ضعیف دے نشي قائیمدلے په ځائے ددووعاملینوباندے اوهم ددے صورت سمع هم نده شوے د عربونه.

۲-مختلف فیه صورت : جازعند الجمهورو الفراء خلافاللسیبویه کوم چه ذکردے په متن کښې پدے کښې دری مذاهب دی : (۱) اول مذهب دمتاخرینوبصرینودے اودامصنف هم غوره کړیدے دوی وائی داصورت جائزدے ځکه مسموع من العرب دے.

(۲) دویم مذهب دفراء دے هغه وائی دویم اودریم صورت دواړه جائزدی دلیل دفراء قیاس ددے دواړوصورتونوپه اول صورت باندے دے اوهغه جائزوونودوی هم جائزدی.

(۳) مذهب دسیبویه هغه وائی داعطف مطلقا باطل دے که دویم صورت وی اوکه دریم صورت وی ځکه واوحرف ضعیف العمل دے په مقام دعاملینو مختلفینونشي قائم کیدے.

## بعضی قواعدمعطوف بالحرف

(۱)**قاعده** : داسم ظاهرعطف په اسم ظاهرکولے شي مثال جاء نی زیدٌ وعمروٌ .

(۲)**قاعده** : داسم ضمیرعطف په اسم ضمیرکولے شي مثال اکرمتهم وایاکم .

(۳)**قاعده** : داسم ضمیرعطف په اسم ظاهرکولے شی مثال اکرمت حمادا وایاك.

(۴)**قاعده** : دفعل عطف په فعل اودحرف عطف په حرف کولے شی مثال ان تؤمنواوتتقوایؤتکم اجورکم مثال الحرف ومن الحروف الجارة من والی.

(۵)**قاعده** :عطف دجملے اسمیه په جمله اسیمه باندے جائزدے مثال اولئك علی هدی من ربهم و اوالئك هم المفلحون.

(٦)**قاعده** :داسم ظاهرعطف په ضمیرجائزدے مثال جاء نی القوم الاانت وحماڈ.

(۷)**قاعده** :دیوجارمجروره بل جارمجرورصیح دے مثال استجیبولله وللرسول.

(۸)**قاعده** :په یوکلام کښی اسماء ضمائرته مضاف وی اودرمیان کښی واووی اویابل حرف عاطفه وی دوی معطوف معطوف علیه به وی مثال من بقلهاوقثائهاوفومهاوعدثها الخ.

(۹)**قاعده** : هرکله چه اسم موصول مکرروی اوپه مابین کښی حرف عاطف وی نودویم اسم موصول سره دصله نه په اول اسم موصول سره دصلے نه عطف صحیح دے.مثال و الذین یؤمنون بماانزل الیك ومانزل من قبلك.

(۱۰)**قاعده** : هرکله چه اسم اشاره مکرروی اوپه مابین کښی واوعاطفه وغیره راشی نوددویمے اسم اشارے عطف په اولی اسم اشارے باندے صحیح دے مثال اولئك علی هدی من ربهم واولئك هم المفلحون.

### التمرین لبحث المعطوف بالحرف

واوحیناالی ابراهیم واسحق ویعقوب

اسکن انت وزوجك الجنة

طاعة وقول معروف

وعلیهاوعلی الفلك تحملون

وجعل فیهاسراجاوقمرامنیرا

اعبدواربکم الذی خلقکم و الذین من قبلکم.

فانجیناه ومن معه فی الفلك

لقدکنتم انتم واباؤکم فی ضلال مبین

فانجیناه واصحاب السفینة.

ثم اماتة فاقبر

لبثنایومااوبعض یوم

سواء علینااجزعناام صبرنا

ومادری اقریب ام بعیدماتوعدون

فهی کالحجارة اواشدقسوة.

فوکزه موسی فقضی علیه.

**فصل** التاكيد تابع يدل على تقرير المتبوع في مانسب اليه اوعلى شمول الحكم لكل فردمن افراد المتبوع.

ترجمه: تاكيد يوتابع دے چه دلالت كوى په ثبوت دمتبوع په هغه كښ چه نسبت ده ته شوے وى اويا په شمول دحكم دپاره دهرفرددافرادودمتبوع لره.

**حل تركيب** :. التاكيدمبتدايدل فعل فاعل على تقدير المتبوع معطوف عليه اوعلى شمول الحكم الخ معطوف داظرف لغو متعلق يدل فعل فاعل فعل سره دفاعل اومتعلق نه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه خبردمبتداء.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دعطف نه نوشروع ئے اوكړه په تاكيدباندے تاكيدپه لغت كښ صيغه دمصدرده دباب تفعيل نه په معنى دمضبوط كولوسره اوپه اصطلاح كښ مصنف ذكركړے دے.

**فوائدقيود** : تابع په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغيرمعرف تولولره.اويدل على تقدير المتبوع الخ پدے سره خارج شوترينه صفت اوعطف بيان دوى دواړه اگرچه شان دمتبوع مقرركوى لكن په ماينسب كښ نه كوى اوتاكيد هرهغه تابع دے چه تقريردشان دمتبوع مقرركوى يعنى په نسبت كښ كښ په كيدلوده كښ منسوب اويامنسوب اليه اويا په شمول دمتبوع كښى خپلوافرادولره يعنى شمول دمتبوع كښ خپلوتول افرادولره يعنى په شمول دنسبت كښ دفغل متبوع ته.

**حاصل** داشو چه تاكيددے دوو غضونونه ديو غرض دپاره راځى يوغرض دادے چه متبوع ته كوم څيزنسبت شوے وى نو هغے كښ دمجازاودسهوے احتمال شوے وى نودغه احتمال په تاكيدسره دفع كيږى چه دانسبت دے حقيقتاً نه سهوا اونه مجازامثال جاء نى زيدٌ زيدٌ په دويم زيدسره احتمال دسهورفع شو اودمجازرفع شو ځكه مخكښ دذكركولودويم زيدنه پكښ دااحتمال موجودووچه متكلم به خطاشوے وى اودده غلام به راغلے وى اويابه دده ځوے راغلے وى اويابه دده هيرشوى وى نسيانابه داوئيلے شوى وى نودويم زيدٌ سره احغتمال رفع شو چه داحقيقت دے. **دويم** غرض دتاكيدنه دادے چه په متبوع كښ افرادكثيره دى اودامتبوع پرے دلالت كول لكن دااحتمال پكښ وى چه دمتبوع تمام افرادبه مرادنه وى بلكه

اکثریه مرادوی نو دد ے دپاره تاکید راوړے شو چه دلالت اوکړی پد ے خبره چه کوم حکم متبوع بانـد ے شو ے د ے داد متبوع تمامو افرادو لره شامل د ے اکثر۔ او بعض لره شامل ند ے. مثال جاء نی القوم کلهم.

**والتاکید علی قسمین لفظی وهو تکریر اللفظ الاول نحو جاء نی زیدزیدٌ و جاء جاء زیدٌ** او تاکید په دوه قسمه د ے یو لفظی د ے چه هغه تکرار دلفظ اول د ے لکه جاء نی زیدزید

**حل ترکیب** : التاکید مبتداء علی قسمین باعتبار المتعلق خبرلفظی خبرمبتدأ محذوف چه احد هاد ے وهو مبتدأ تکریر اللفظ الاول مضاف مضاف الیه خبرد مبتداء.

**ومعنوی وهو بالفاظ معدودة وهی النفس و العین الخ.**

ترجمه : او تاکید معنوی دابه په الفاظو معدودو سره وی لکه نفس او عین الخ.

حل ترکیب :. حل ترکیب ظاهرد ے .

**تشریح** :. او تاکید په دوه قسمه د ے ۱ – لفظی او دویم معنوی وجه دحصرداده چه داتاکید به خالی نه وی یابه تکریر دلفظ اول وی لفظا او معنا او یابه معنا وی فقط که اول وونو تاکید لفظی او که ثانی وونو تاکید معنوی، **د قسم اول** دپاره دوه مثالونه ذکرکړی دی :۱. جاء نی زیدٌ زیدٌ. اشاره د ے د ے خبر ے ته چه تاکید لفظی په اسم او فعل او حرف ټولو کښ راځی داسم او فعل ذکردی کتاب کښ او مثال دحرف لکه انّ انّ زیدا قائمٌ .دارنگه په جمله اسمیه او فعلیه کښ هم تاکید لفظی راځی مثال دجملہ اسمیه زیدٌ قائمٌ زیدٌ قائمٌ مثال دجملے فعلیه جاء زیدٌ جاء زیدٌ.

**او تاکید معنوی** مسموع د ے په الفاظ معدوده وو کښ چه نفس او عین وغیره وغیره دی اته الفاظ دی ددوی معانی او استعمالات په کتاب کښ ذکردی. لکن ددوی نه دری الفاظ چه اکتع ابتع او ابصع دی پد ے کښ دعلماؤ اختلاف د ے بعضی عالمان وائی چه دد ے الفاظو څه معنی نشته په حال دافراد کښ او هرکله چه جمع ذکرشی نو بیا په معنی داجمع دی.

بعضی عالمان وائی چه په حال دافراد کښ ددوی معنی شته د ے اکتع په معنی داحول ده کتیع نه راغلے د ے په معنی دتام سره راځی او ابصع دبص العرق نه راغلے د ے په معنی دسال (یعنی تویدو ته وائی) او ابتع دبتع نه چه طول العنق ته وائی.

**واذااردت تاكيد الضمير المرفوع المتصل بالنفس و العين يجب تاكيده بالضمير المنفصل نحو ضربت انت نفسك.**

ترجمه: هركله چه اراده دتاكيدضميردمرفوع متصل په نفس اوعين سره اوكړے شي نوتاكيدپه منفصل سره واجب دے لكه ضربت انت نفسك.

**حل تركيب**:. اذا اردت الخ شرط يجب تاكيده الخ جزاء و الباقي واضح.

**تشريح**:. پدے عبارت سره مصنف يوه قاعده بيانوي.

دليل دمسئلے مذكورے تاكيدبه اول په منفصل سره كيدے شي ددے دپاره چه لازم نشي التباس دتاكيددفاعل سره په صورت دعدم تاكيدكښ په بعض صورتونوكښ اوكوم ځاے كښ چه التباس نه راځي هغه طردالباب حمل شوے وي مثال ضربت انت نفسك.اوداقيداولګولو چه ضميردمرفوع متصل ځكه دضميرمنصوب اومجرورتاكيدپه نفسي اوعين سره كولے شي بغيردتاكيددمنفصل نه مثال انت نفسك قائمٌ.

**ولايوكد بكل واجمع الاماله اجزاء وابعاض يصح اختراقهاحسا كالقوم الخ.**

ترجمه: اوتاكيدنشي كيدے دكل اواجمع مګرپه هغے سره چه اجزاء اوابعاض والاوي چه افتراق دهغے حساصحيح وي.حل تركيب:. واضح دے.

**تشريح**:. په كل اواجمع سره تاكيددهغه شي راځي چه هغے لره اجزاء وي اومرادپه اجزاء سره امورمتعدده دي نوروافرادولره بيا هم شامليږي ځكه كل دلالت كوي په كليت باندے اواجمع دلالت كوي په جمعيت باندے اودانه متحقق كيږي مګرپه ذو الاجزاء كښ دلته مونږداجزاء نه مراد افرادواغستل ځكه سوال وارديږي چه څرنګه په دوي سره ذواجزاء مواكدكيږي نودغه شان ذوافرادهم ورسره مواكد كيږي نو مناسب داده چه مصنف وئيلے وے چه ذواجزاء اوذوافراد. **جواب** دادے چه دذواجزاء سره امورمتعدده دي اوداامورمتعدده عام دي كه ذواجزاء وي اوكه ذوافرادوي.مثال د افتراق حسا:

اكرمت القوم كلهم ، جاء ني القوم كلهم اجمعون.دقوم افراداواجزاء زيدعمروبكروغيره په اعتباردمشاهدۍوحس جدا دي.

مثال د افتراق حكما (اشتريت العبدكله) دعبدافراد اواجزاء په اعتباردحكم سره جدادي نه

په اعتبار د حس او مشاهدے سره ځکه ممکن ده شراء دنصف عبد یا د ثلث یا ربع. او داسے نشی وئیلے اکرمت العبد کله ځکه په اعتبار د اکرام سره دعبد اجزاء نشته دے داسے نه وی چه دنصف عبد اکرام اوشی او دنصف اونشی دارنګه داسے نشی وئیلے جاء زید کله ځکه دراتلو اودتلو حکم په اعتبار سره زید اجزاء جداندی.

**واعلم ان اکتع وابتع وابصع اتباع لاجمع ولیس لهامعنی ههنابدونه فلایجوز تقدیمها علی اجمع ولا ذکرهابدونه.**

ترجمه : پوه شه چه یقینا اکتع اوابتع اوابصع تابع داجمع دی اوماسوا دده نه ددوی بله معنی نشته دے نو پس تقدیم ددوی په اجمع جائز ندے اونه ذکر ددوی بغیر داجمع نه.

**تشریح** :. دا الفاظ ثلاثه چه اکتع اوابتع اوابصع داده اجمع تابع دی کله چه اجمع ذکر شی نو دوی به ورسره ذکر کیږی پس هر کله چه دوی تابع داجمع شو نو دوی به نه مقدم کیږی په اجمع باندے ځکه لازمیږی تقدیم دتابع په متبوع باندے پس داجمع نه به په دوی کښ کوم لفظ اول راځی بعض نحات وائی چه اکتع به راځی اوبیا ابتع اوابصع . بعض نحات وائی چه ابصع مقدم دے په ابتع باندے . بعض نحات وائی چه تعین په دوی کښ دتقدم نشته دے هر یو چه مقدم شو اویا موخر شو اودوی بغیر داجمع نه په ترکیب کښ نشے ذکر کولے ځکه لازمیږی ذکر دتابع بغیر د ذکر دمتبوع نه اوداباطل ده اویا دوجے دعدم ظهور ددلالت ددوی په معنی دجمع باندے .

### التمرین لبحث التاکید

| | |
|---|---|
| فسجد الملائکة کلهم اجمعون | اذادکت الارض دکادکا |
| هیهات هیهات لماتوعدون | فمهل الکافرین امهلهم رویداً |
| اقرأباسم ربك الذی خلق خلق الانسان من علق | کذبوا بایاتنا کذابا |
| کلاسیعلمون ثم کلاسیعلمون | واتونی باهلکم اجمعین. |
| خلق الازواج کلها | لیظهر علی الدین کله |
| فاغرقناهم اجمعین. | قل ان الامر کله لله |
| فوربك لنسالنهم اجمعین . | |

**فصل** البدل تابع ينسب اليه مانسب الى متبوعه وهو المقصود بالنسبة دون متبوعه الخ . بدل يو تابع دے چه دته نسبت کيدے شی دهغه چه متبوع ته شوے وی اومقصود په نسبت سره بدل دے نه متبوع چه مبدل منه دے.

**حل تركيب** :. البدل مبتدأ تابع ينسب ماناسب الى متبوعه خبر هو مبتدا المقصود بالنسبت الخ خبر دے.

**تشريح** :. هر کله چه فارغ شو مصنف دبيان دتاکيدنه شروع ئے اوکړه په بل قسم دتوابعو کښ چه بدل دے.بدل په لغت کښ عوض اومقابل ته وائی اوپه اصطلاح کښ ماذکرفی الکتب. **فوائدقيود** : ... تابع په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغيرمعرف تولو لره اوهو المقصود بالنسبت فصل اول دے پدے سره نعت اوتاکيداوعطف بيان خارج شو ځکه په دوی کښ مقصود صرف متبوع وی.اوداقيد چه دونه دے فصل ثانی دے پدے سره معطوف بالحرف خارج شو ځکه پدی کښ مقصوددواړه وی. **سوال** :. تعريف دبدل په معطوف بالحرف صادق شو چه معطوف وی په بل سره پدے کښ هم متبوع مقصود دوی. **جواب** : پدے کښ متبوع مقصود وی ابتداً لکن اعراض ددے اوشولوجے دظهوردغلط نه اوقصددمعطوف اوشونوپدے سره معنی دواړه مقصوداوګرځيدل .

**سوال** :. په تعريف سره هغه بدل خارج شو چه پس دالانه مثال ماقام احدالازيدٌ ځکه دے مقصود ندے په نسبت سره خپل متبوع ته. **جواب** : ماناسب الى المتبوع دلته قيام دے اونسبت دقيام بعينه الى التابع دے.لکن فرق دادے چه اول کښ سلبی دے اوپه دويم کښ ايجابی دے اوتعريف کښ دبدل چه کوم نسبت ذکرشوے دے عام دے سلبی وی اوکه ايجابی وی.

**واقسام البدل اربعة** **تشريح** : اقسام دبدل څلوردی:

(۱) بدل الکل. (۲) بدل البعض. (۳) بدل الاشتمال. (۴) بدل الغلط.

وجه دحصرپه څلوروکښ داده چه بدل اومبدل منه به خالی نه وی يابه په مابين ددوی کښ ملابست وی اويابه نه وی که دويم وونوبدل غلط اوکه اول وونوبيابه خالی نه وی يابه بدل کل دمبدل منه نه وی اويابه جزدمبدل منه نه وی اويابه په يوددوی کښ مشتمل وی په بل باندے که اول وونو بدل کل شواوکه دويم وونو بدل بعض اوکه دريم وونوبدل اشتمال.

(۱) **بدل الکل من الکل :** دیته وائی چه دبدل اومبدل منه مصداق یووی مثال جاء نی زیدٌ اخوك زیدٌ مبدل منبں او اخوك بدل ددواړونه یو سړے مراددے چه هم دغه زیددے.

(۲) **بدل البعض من البعض :** دیته وائی چه دبدل مدلول دمبدل منه نه جزوی مثال ضربت زیدارأیته زیدامبدل منه دے.اورأسه بدل بعض څکه رأس جزدزیددے.

(۳) **بدل الاشتمال :** دیته وائی چه دبدل مدلول دمبدل منه دملحقاتونه وی مثال سلب زیدٌثوبه زیدٌمبدل منه اوثوبه بدل اشتمال دے ثوب دمتعلقاتودزیدنه دے.

(٤) **بدل الغلط :** دیته وائی چه دمبدل منه دغلطئ نه روستوذکرکولے شی دپاره دتدارك ددغه غلطئ.مثال جاء نی زید جعفرٌ الخ.زیدمبدل منه جعفربدل الغلط متکلم جعفریاندے تلفظ کوولکن په غلطئ سره دزبان نه زیدخارج شوبیاددے غلطئ نه روستومتکلم جعفرٌذکرکړوه

---

**و البدل ان کان نکرةً من معرفة یجب نعته کقوله تعالی بالناصیة ناصیةٍ کاذبةٍ.**

---

**ولایجب ذلك فی عکسه ولافی المتجانسین.** اوبدل کچرے نکره دمعرفے نه واقع وونوواجب ده نعت دده لکه داقول دالله تعالی بالناصیة ناصیة کاذبة اوددے په عکس جائزنده اونه په متجانسین کښں جائزده.**حل ترکیب :** حل ترکیب البدل مبتدأان کان نکره من معرفه شرط یجب لغته جزاء ولایجب ذلك الخ جمله فعلیه.

**تشریح :** – پدے عبارت سره مصنف دبدل اومبدل منه څلورصورتونه ذکرکوی دجوازباعتبار التنکیرو التعریف:

(۱) مبدل منه اوبدل دواړه معرفتین مثال:اهدنا الصراط المستقیم.

(۲) مبدل منه اوبدل دواړه نکرتین مثال:ان للمتقین مفازا حدائقَ

(۳) مبدل منه نکره اوبدل معرفه.مثال:الی صراط مستقم صراط الله الذی الخ.

(۴) مبدل منه معرفه اوبدل نکره مثال:لنسفعابالناصیة ناصیة کاذبة

په قسم رابع کښں داشرط دے چه دبدل سره صفت راوړل لازمی دی څکه مقصودپه کلام کښں بدل دے کچرے دبدل نکره صفت رانه وړے شی نولازم بشی انقصیت دمقصودچه بدل دغیرمقصودنه چه مبدل منه دے پس هرکله چه دده صفت راوړے شونونکره مخصصه شوه نوقریبه

شوه معرفه مثال لكه بالناصية مبدل منه معرفه ده ددے بدل ناصية نكره موصوفه ده په كاذبة سره.

**قاعده (۱)** بدل اومبدل منه په اعتبارداسم ظاهراوضميرسره هم په څلورقسمه دے:

(۱) مبدل منه اوبدل دواړه اسمين ظاهرين مثال لكه جاء نى زيداخوك

(۲) مبدل منه اوبدل دواړه اسمين ضميرين مثال لكه ضربته اياه.

(۳) مبدل منه اسم ظاهربدل ضميرمثال لكه ضربت زيدااياه.

(۴) مبدل منه ضمير اوبدل ظاهر مثال لكه ماانسٰنيه الا الشيطان ان اذكره.

**قاعده (۲):** بدل الكل من الكل دخپل متبوع سره په اتو څيزونوكښ مطابقت لازم وى: اعراب.(۱)رفع.(۲)نصب.(۳)جر.(۴)افراد. (۵)تثنيه.(٦)جمع. (۷)تذكير(۸)تانيث.

**قاعده : (۳)** هركلـه چـه دلقب نه روستواسم ذكرشى نوغالبامبدل منه واقع كيږى مثال قال الشيخ الامام الاجل الزاهدابو الحسن احمد.

**قاعده : (۴)** پـه كـلام كـښ مخكښ عددذكرشى اوروستوبياددے عددتفصيل وى نو غالبا دادماقبل دپاره بدل وى مثال مائة عامل لفظية ومعنوية.

**قاعده : (۵)** دهذااسم اشارے نه بعداسم لكه صفت اوبيان واقع كيږى هم دغه شان بدل هم واقع كيږى لكه هذا الكتاب.

**قاعده : (٦)** قـاعده بدل په حكم دتكراردعامل كښ وى لكه قال ابراهيم لابيه اٰزر اى قال لآزر. **قاعده:** (۷) د جـملے بدل جمله هم واقع كيږى مثال امدكم بماكنتم تعملون امدكم بانعام وبنين. **قاعده : (۸)** د فعل بدل فعل نه واقع كيږى :ومن يفعل ذلك يلق اثامايضاعف له العذاب.

## التمرين لبحث البدل

| | |
|---|---|
| امنابرب العٰلمين | رب موسى وهارون |
| وللهعلى الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا | قم الليل الاقليلانصفه. |
| يسئلونك عن الشهر الحرام قتال فيه | جزاء من ربك عطاء حسابا |
| رب السمٰوات والارض ومابينهما الرحمٰن | قتل اصحٰب الاخدود النارذات الوقود |
| الابعداً لعادقوم هود. | حتى تأتيهم البينة رسول من الله. |

اهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم ولا الضالين

**فصل** عطف البیان تابع غیر صفۃ یوضح متبوعه الخ.

ترجمه: عطف بیان یوتابع دے غیر صفتی چه واضح کوی متبوع خپل لره.

**تشریح**: هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دبدل نه نوشروع ئے اوکړه په بل قسم دتوابع کښې چه عطفِ بیان دے.

**فوائد قیود**: تابع په منزله دجنس دے شامل دے معرف اوغیرمعرف ټولولره اوغیرصفت دافصل اول دے پدے سره صفت خارج شواویوضح متبوعه دادویم فصل دے پدے سره باقی توابع خارج شوماسوادعطف بیان نه .عطف بیان ته عطف بیان ځکه وائی چه دابیان دخپل متبوع کوی مثال اقسم بالله ابو حفصٍ عمروابو حفص کنیه دحضرت عمرده لکن پدے کنیه سره مشهورندے نواکتفاء ئے اونکړه اسم محضه ئے ورلره ذکرکړوچه عمردے.داپه هغه وخت کښې کیدے شي چه اسم محضه مشهوروی اوکه بالعکس ووپه کنیه سره یوسړے مشهوروولکه ابویوسف کنیه دیعقوب ده پدے باندے مشهورندے یالکه ابو حنیفه نوم دنعمان دے پدے سره مشهورندے نو هرکله چه په کنیه سره مشهوروی نوذکردکنیه به کیږی نه دمحضه.

**واقعه**: یوبانډه چی حضرت عمرته راغے هغه ته ئے اووئیل چه ځماکورلرے دے اوځماداوښ خپے اوملازخمی شوی دی ماله اوښ راکړه حضرت عمراووئیل دروغ وائی اعرابی روان شو اوښ ئے روان کړو اوداشعرئے اووئیلو:شعر:

اقسم بالله ابو حفص عمر ... مامسها من نقب ولادبر

اغفر له اللهم ان کان فجر

حضرت عمرداخبره واوریده اووے وئیل اللهم صدق صدق.

---

**ولایلتبس بالبدل لفظافی مثل قول الشاعر: شعر:**

ترجمه: اوالتباس دبدل سره نه راځی لفظاپدے قول دشاعرکښې: شعر۔

انا ابن التارك البکری بشرٍ ... علیه الطیرترقبه وقوعا

**تشریح**:. پدے عبارت سره مصنف فرق دبدل اوعطف بیان ذکرکوی په اصل کښې بعض

نحات وائی توابع شلوردی:عطف بیان داخل دے په بدل کښې اوداقسم علی حده ندے لکن جمهورنحات وائی دایو مستقل قسم دے په بعض صورتونوکښې په اعتبارد معنی سره فرق اظهرمن الشمس دے اوپه بعض صورتونوکښې په اعتباردلفظ سره التباس وودبدل اوعطف بیان په اعتباردمعنی سره فرق ظاهردے ځکه په بدل کښې مقصودبالنسبت بدل اوذکردمبدل منه دپاره دتوطئے اوتمهیدوی اوپه عطف بیان کښې مقصودبالنسبت متبوع وی اوذکردتابع دپاره دایضاح دمتبوع وی.لکن دلته مصنف لفظاً قیداولګولو ځکه ددوی ترمینځ دا فرق مخفی دے نودلته په مثال سره داواضح کوی چه لفظاً هم ددوی ترمینځ فرق شته دے.اومرادپدے ترکیب سره هغه ترکیب دے چه عطف بیان واقع شوے وی دمعرف باللام نه اوهغے ته اضافت دصفت دمعرف باللام شوے وی پس دلته عطف بیان جائزدے اوبدل ناجائزدے پس پدے شعرکښې بشرعطف بیان دے دپاره دالبکری چه اضافت ورته دصفت معرف باللام التارك شوے دے نوبشرپدے ترکیب کښې عطف بیان صحیح کیدے اوبدل نه صحیح کیږی ځکه بدل په حکم دتکریردعامل کښې وی نومعنی به داسے شی چه التارك بشرنوشی به پشان د الضارب زیداوداترکیب خوندے صحیح نوواقع کیدل ددے بدل هم ندی صحیح.

**فائده** :.. الضارب زید ځکه جائزندے چه دااضافت لفظی دے اودا اضافت لفظی فائده تخفیف دے په جانب دمضاف کښې په حذف دتنوین سره اویاپه جانب دمضاف الیه کښې په حذف دضمیرسره اویاپه دواړوکښې تخفیف حاصل شوے وی اودلته داسے نده ځکه الضارب زیدکښې تنوین په الف لام سره ساقط شوے دے نوپس فائده داضافت لفظی حاصله شوه لهذا دا ترکیب جائزندے.

**ترکیب** شعر: ... انامبتدأ ابن مضاف التارك مضاف الیه البکری معطوف علیه بشرعطف بیان معطوف علیه سره دعطف بیان نه مجرورلفظامضاف الیه منصوب معنامفعول به د التارك علیه جارمجرورظرف مستقرمتعلق كائنة متعلق سره دمتعلق نه خبرمقدم الطیر مبتدأ مخوأخر مبتدأ سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه دا حال شو دالبکرینه ترقب فعل فاعل ضمیر ددے راجع دے طیر ته او ه ضمیر راجع دے بشر ته دامفعول به شو دفعل .فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه دا حال شودضمیرمستتردكائنه نه او

وقوعاداحال دے دضمیر مستتر فاعل دترقب نه :

**معنی د شعر**: څه دهغه سړی څوے یم چه بکری بشر بهادر سړے ئے وژلے دے اودے په داسے حال کښې دے چه مار غان پدے حال کښې دده انتظار کوی دختلودروح دده (یعنی چه دده روح اوځی نـومارغان به هله دده غوښے اوخوری ځکه چه روح پکښې باقی وی نو مارغان ورته نه شی راتلے :

## بعض قواعدعطف بیان

(۱)**قاعده** :دلـقـب نـه وروستو چه اسم واقع شی نو هغه عطف بیان وی .مثال قال ابو حفص عمرٌ

(۲)**قاعده**: کنیت چه وروستوداسم نه واقع شی نو هغه عطف بیان وی مثال.زیدابوعمروٌ

(۳)**قاعده** :د اسم اشاره نه بعداسم ظاهر عطف بیان وی مثال هذالکتٰب

(٤)**قاعده** :دصفت نه وروستو موصوف عطف بیان وی مثال جاء عالم زید

(٥)**قاعده** : دمفسر نه وروستوتفسیرعطف بیان وی مثال هذا عسجدٌ ای ذهبٌ

## التمرین لبحث عطف بیان

| | |
|---|---|
| واذقال ابراهیم لأبیه اٰزر | وعلم آدم الاسمآء کلها |
| ولهم عذاب الیم | ان رحمة الله قریب من المحسنین |
| والیٰ ثمود اخاهم صالحا | توبوا الیٰ الله توبة نصوحا |
| واذکرعبدناداؤدذاالاید | لن نصبرعلیٰ طعام واحد |
| اهدناالصراط المستقیم | واذکرعبادناابراهیم واسحٰق یعقوب اولی الایدی والابصار |

تـمـت الحصة الاولیٰ من خطبةالکتب الی الباب الثانی کفایة النحوبشتوشرح هدایة النحوبعون الله تعالیٰ وفضله بتاریخ ۲۳ صفرالمظفر ۱۴۲۷ه بمطابق22/3/2006

□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□

□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□□

# الباب الثانی فی الاسم المبنی

**تشریح** : هرکلـه چـه فـارغ شو مصنف دباب اول داسم معرب نه نوشروع ئـے اوکړه په باب ثاني په اسم مبني کښ نودارنګه ئـے اووئیل الباب الثانی الخ.

**سوال** :. بـاب مـعـرب ولـے مـقـدم شوپه بـاب مبني بـانـدے؟ **جواب** :. ح ب پـه منزلـه دمـفردوواومبني په منزلـه دمرکب دے او مفرد مکښ وي په مرکب باندے معرب یو قسم دے چـه مـرکـب بـه وي سـره دغیـر نه او مشابه به نه وي دمبني اصل سره او اسم مبني په دوه قسمه دے (۱)اسم وقع غیرمرکب (۲)اوماشابه مبنی الاصل:

**جواب** :۲. پـه مـعـرب کښ اظهاردمافی الضمیر علیٰ وجه الاکمل وی اومبنی کښ اظهار دمافـی الضمیرعلیٰ وجه الانقص وی اواکمل مقدم وی په انقص باندے ځکه باب داسم معرب مقدم شوپه باب داسم مبني باندے :

---

**وهو اسم وقع غیر مرکب مع غیره مثل اب ت ث الخ**

**تشریح**:. پـه دے عبـارت سره مصنف قسم اول داسم مبنی ذکرکوی چه مرکب دغیر سره نه وی. **سوال** :. مـراد دغیـر نـه بـه عـامـل وی نوتعریف داسم مبنی مانع نه شوددخول دغیر نه مبتـدأ او خبـرکښې پکښې داخل شو ځکه چه دا دواړه دخپل عامل سره مرکب نه دی اومعرب دی . **جواب** : دا قیـد پـه عبارت دمصنف کښ چه مع غیره دے عام دے چه مرکب دعامل سره بـه نه وی اودغیرعامل سره به هم نه وی او مبتدأ اوخبر که دعامل سره مرکب ندی لیکن مبتدأ دخبر سره مرکب ده اوخبر دمبتدأ سره مرکب دے.

**سوال** : دتـعـریف نـه غـلا مـی خـارج شو ځکه چه لفظ غلام دضمیر متکلم (چه ی ده)سره مـرکـب دے اوسـره ددینـه داغـلا مـی مبـنی دے اوتا په غیره کښ تعمیم کړے دے چه دعامل سرمـرکب وی او که دغیرعامل سره مرکب وی نو مبنی به وی. **جواب** : کـه پکښې عامل نه وی نـو سبب دتـحـقیق دعامل به هم نه وی اوغلا می کښ سبب دتحقق دعامل نشته دے په مبنی کـښ غـلا مـی داخل شواومبتدأ اوخبر ترینه خارج شول . **سوال** : پـه مثال کښ .ا.ب .ت.ث.ذکر کـول صحیـح نـه دی ځـکـه بـحـث زمونږ په اسم مبنی کښ دے داخو حروف دی ؟ **جواب** : په دیـکښ دوه اعتباره دی(۱) اعتبار اسماء (۲)اعتبار مسمیات نودلته ددے حروفو نه مراداسماء دی

نه مسمیات ځکه دا حروف هجاء دی پدے اعتبار سره.

**ومثل واحد واثنان ومثله** ترجمه: اوداسماء عددنه واحد اواثنان اوثلاثه اسم مبنی دی دوی په ترکیب کښ نه دی واقع.

**وکلفظة زیدوحده فانه الخ** : ترجمه: او دامذکوره اسماء هرکله چه ددوی ترکیب مع الغیر نه وی راغلے نودابه مبنی علی السکون بالفعل وی مثلا اب.زید.واحد .اثنان.ثلاثه .اومعرب بالقوه دی هرکله چه ددوی ترکیب دعامل سره اوشی نوبیابه معرب وی مثلا جاء نی واحد.جاء نی الف .جاء نی زید.وغیره وغیره دوی مرفوع دی بنابرفاعلیت اومعرب دی.

**وشابه مبنی الاصل** پدے عبارت سره داسم مبنی دویم قسم ذکرکوی چه اسم به هله مبنی کیږی چه مشابهت یی راغلے وی دمبنی اصل سره یا دماضی سره یا دامر حاضرسره یا دحرف سره.

**سوال** : کلمه داوپه عربی کلام کښ دترددپاره راځی اوتقسیم دوضاحت دپاره وی نو ذکر داو دلته کښ صحیح نه دی ؟ **جواب** : دلته او دتقسیم دپاره دے نه دتردیددپاره ځکه پدے سره دلته داسم مبنی دویم قسم بیانوی.

**سوال**: تعریف بیامانع نه شو ځکه چه غیرمنصرف پکښ داخل شو ځکهچه غیرمنصرف دمبنی اصل سره مشابه دے چه هغه فعل دے ؟. **جواب** : غیرمنصرف داسم مبنی نه خارج دے ځکه چه دامشابهت مونږ په تاثیرداعراب کښ وایواوغیر منصرف مشابهت دفعل سره پهوجوددفرعیتینو کښ دے نه په منع داعراب کښ. **سوال** : اسم فاعل خومشابهت لری دفعل مضارع سره اواسم فاعل خومعرب دے ؟. **جواب** : مشابهت داسم به دهغه مبنی اصل سره به راغلے وی چه هغه په خپل اصل باندے باقی وی اومضارع خودمبنی نه نقل شویده معرب ته.دلته دمبنی اصل معنیٰ داده چه اصل وی په بناء کښ چه هغه ماضی.امرحاضر.اوحروف دی نه دا چه اصل ئیی بناء وی چه هغه مضارع ده.

**بان یکون فی الدلالة الخ**

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنفؒ داسم مبنی دمشابهت دمبنی اصل سره درے وجوه بیانوی (۱) اسم مبنی به مشابه وی دمبنیء اصل سره په احتیاج کښ مثلاحرف چه محتاج دے ضم دکلمه اخریٰ ته یالکه اسم اشاره چه محتاج ده خپل مشارالیه ته .

(۲) اسم مبنی به مرکب وی ددریو حروفونه په کم سره مثلا کم برائے کنایه شو په شان دعن اسم مشابه دحرف سره په عدد دحرفوکښ یاداومن شو. (۳) اسم به متضمن وی حرف لره مثلا احدعشر الیٰ تسعه عشر. **احد عشر** اسم مبنی دے ترتسعه عشر پورے ځکه دااسم متضمن دے معنیٰ دحرف لره چه دا په اصل کښ احدوعشرالیٰ تسعه وعشرنو احداسم دے او عشر هم اسم دے او په مینځ کښ ئیے حرف عطف واودے هغے لره متضمن دے اوقاعده داده چه متضمن مبنی لره مبنی وی .والتفصیل فیمابعد ان شآءالله

**وهـذاالـقسم لایصیر معرباًاصلا** . هرکله چه داسم مبنی دوه اقسام شول یوقسم .ماوقع غیرمرکب مع غیره اودویم قسم .ماشابه مبنی الاصل .نوپه مذکوره بالامتن کښ مصنف ددواړواقسامو په مینځ کښ فرق ذکرکوی چه په قسم اول کښ اعتبارین دی (۱)اعتباردبناء(۲)اعتباردمعرب نودقسم اول مبنیٰ عارضی وقتی شوه او قسم ثانی کښ اعتبارواحددے چه بناده په جمیع اوقاتوکښ نوشوه بنادده اصلی دائمی ددے وجے نه مصنفؒ وائی لایصیرمعرباًاصلا.

**وحکمه إن لایختلف آخره بأختلاف العوامل.**

**تشریح** :. غرض ددے عبارت نه داړے چه مصنفؒ حکم داسم مبنی بیانوی چه حکم داسم مبنی دادے چه اخیرداسم مبنی به نه مختلف کیږی په اختلاف دعواملو سره.

**سوال** : چه ده حکم اضافت شوے دے ضمیر دمبنی ته نوتقدیردارنگه شوای حکم المبنی اودااضافت به داستغراق دپاره وی نو ددے منعیٰ داشوه چه ټول احکام داسم مبنی دادی چه عدم اختلافدحرف اخر دے اودامعنیٰ صحیح نه ده ځکه دمبنی ډیر احکام دی ماسوا دعدم اختلاف دحرف اخیرنه. **جواب** : دلته اضافت دعهددپاره دے چه هغه بعض احکام داسم مبنی دلته بیانوی. **سوال** : حکم مستعملیږی په مرکب کښ اومبنی خواسم مفرددے ځکه چه مبنی قسم داسم نه دے اواسم قسم دکلمے دے اوپه تعریف دکلمه کښ ما حـ نومبنی هم مفرد شو؟ . **جواب**:. دلته حکم په معنیٰ داثرسره دے نـ ـضمیر ـشو ای اثراسم المبنی.

**سوال**: داثر نسبت مؤثر ته کیږی اودلته کښ خونسبت مبنی ته شوے دے ؟ **جواب** :

دانسبت مجازا دے ځکه دااثرمرتبه دے په اسم مبنی باندے **سوال**: په تعریف داسم مبنی کښ تثنیه اوجمع مذکرسالمه داخل شو ځکه دهغے اخرخو هم نه مختلف کیږی چه نون دے په احوال ثلاثو کښ مثال دتثنیه لکه جاء نی الرجلان رأیت رجلین .ومررت برجلین .اومثال دجمع مذکرسالم لکه جاء نی مسلمون .رأیت مسلمین .مررت بمسلمین .نودیته اسم مبنی ولے نه وائیے ؟حالانکه داخو معرب دی . **جواب**:. داخرنه مرادحرف اخر دے او حرف اخر ددوی نون نه دے دا جدا مستقله کلمه ده او دتثنیه حرف اخر الف او یا دی او دجمع حرف اخرواو او یا دی اودا مختلف شوی دی .**سوال** : العوامل .جمع ده او اقل دجمع ثلاثه وی نو که په اسم باندے درے عامله داخل شی نو هله به مبنی وی اوحال دادے چه امرددے بالعکس دے ؟ .

**جواب**:. دلته جنس عوامل مراد دی یو وی اوکه ددینه زیات وی .

**وحرکاته تسمیٰ ضماوفتحا وکسرا وسکونه وقفا .**

**ترجمه** : او حرکتونه دحرف اخر داسم مبنی مسمیٰ کولے شی په ضمے ،فتحے اوپه کسرے سره اوسکون دحرف اخر داسم مبنی مسمی کولے شی په وقف سره

**تشریح** : وجه تسمیه ؛ضمه په ضم دشفتینو سره پیدا کیږی نو ځکه ورته ضمه وائی او فتحه په انفتاح دشفتینو سره پیدا کیږی نو ځکه ورته فتحه وائی او کسره په انکسار دشفت سفلیٰ سره پیدا کیږی ځکه ورته کسره وائی. اووقف اودریدلوته وائی اوپدے سره هم سابندیږی ځکه ورته وقف وائی.

**تفصیل** : دلته ځلور صورتونه دی چه په هغے کښ درے اتفاقی دی اویو صورت مختلف فیه دے (۱) حرکت اعرابی اودهغه نه تعبیرپه لقب اعرابی سره اوشی مثال : جاء نی زید، رأیت زیدا ،مررت بزید .(۲) حرکت بنائی چه تعبیر ترینه په لقب بنائی سره اوکړے شی :مثال: رأیت هٰؤلاء یالکه حیث یالکه رویدوغیره (۳) حرکتِ اعرابی چه تعبیر ترینه په لقب بنائی سره اوشی . مثال : جاء نی زیدُ چه دزید رفع ته ضمه اوئیلے شی ،رأیت زیدا چه دزیدنصب ته فتحه اوئیلے شی اوجر دمررت بزید ته کسره اوئیلے شی داصور مذکوره اتفاقی دی بین البصریین والکوفیین (۴) چه دحرکت بنائی نه تعبیرپه لقب اعرابی سره اوشی :مثلا: دحیث ضمے ته رفع اوئیلے شی پدے صورت کښ اختلاف دے بصریان وائی ناجائزدے اوکوفیان وائی

جائز دے .

**وھو علیٰ ثمانیۃانواع .المضمرات واسماء الاشارات والموصولات وبعض الظروف .**

**تشریح** : ھرکله چه مصنف فارغ شو دتعریف داسم مبنی اودھغے دحکم اودبیان دحرکاتونه نوشروع ئیے اوکړله په بیان داقساموداسم مبنی کښ نواوئیل ئیے وھو علیٰ ثمانیه انواع الخ اوداسم مبنی په اته قسمه دے .

وجه دحصر په اتو اقسام داسم مبنی کښ داده : چه دااسم مبنی به خالی نه وی یابه دامبنی وی دوجے دمناسبت نه دمبنی اصل سره اویابه دوجے دعدم ترکیب نه وی که قسم ثانی وونو اصوات دی اوکه قسم اول وونو بیابه خالی نه وی یابه ئیے مناسبت دماضی اوامرحاضر سره وی اویابه ئیے مناسبت دحرف سره وی که مناسبت ئیے دماضی اوامرحاضر سره وونو اسماء افعال دی اوکه مناسبت ئیے دحرف سره وونو بیابه خالی نه وی یابه په تضمن کښ وی اویابه په احتیاج کښ وی اویابه وضع ددے په شان دحرف وی نو کنایات دی اوکه مناسبت ئیے په تضمن کښ وونو مرکبات دی اوکه مناسبت ئیے په احتیاج کښ وونو محتاج الیه به خالی نه وی یابه مذکور وی اویا به نه وی که مذکورنه وونو بعض ظروف دی اوکه مذکور وونو یابه جمله وی یابه غیر جمله وی نو که جمله وه نو داموصولات دی اوکه غیر جمله وه نو بیابه خالی نه وی یابه پکښ قرینه داشارے وی اویابه قرینه دغیبوبت اوتکلم اوخطابت وی که قرینه دداشارے وه نو اسماء اشارات دی اوکه قسم ثانی وونو مضمرات دی ,

**سوال** :. ھرکله چه دظروفو سره قید دبعض اولګولی شو نودارنګه داسماء اشاراتو سره هم داقید لګول پکار دی ځکه چه ذان اوذین عند البعض معرب دی دارنګه په موصولاتو کښ هم داقید لګول پکار دی ځکه چه ایّ اوایّه معرب دی دارنګه داقید په کنایاتو کښ هم لګول پکار دی ځکه چه فلان اوفلانه معرب دی . **جواب** : دابعض حلات دی اواکثر ددوی مبنی دی اودبعض حلاتو لره اعتبار نشته اواکثر لره حکم دکل وی اوپه ظروفو کښ اکثر معرب وو اوبعض مبنی وو ځکه قید دبعض ذکرکول لازم وو.

**فصل** :المضمر اسمٌ وضع ليدل علىٰ متكلمٍ اومخاطبٍ اوغائبٍ **تقدم ذكره** **لفظاً او معنىً** اوحكماً. هركله چه مصنف فارغ شو داجمال داقسامو داسم مبنى نه نوشروع ئيے اوكړه په تفصيل كښ. **تفصيل** : دلته يو شو مباحث دى . (۱) معنى لغوى دضمير .(۲) معنى اصطلاحى دضمير. (۳) وجه دتقديم دضمير په نوروباندے . (۴) علت دبناء دضمير . (۵) وجه دمخالفت دتفصيل داجمال نه په ذكر دمفردسره . (٦) بيان دقيودااتو.

**مبحث اول** : (۱) معنى لغوى دضمير مضمر دضمير نه دے ضميرپټ ته وائى اودے هم په غالب ځايونو كښ پټ راځى. (۲) ياضمير دضمور نه دے ضمور وئيلے كيګى قليل الحم ته (مانده) اوحروف دضميرهم قليل وى په نسبت داسم ظاهر سره . **مبحث ثانى** : معنى اصطلاحى مصنفؒ ذكر كړے ده پدے قول خپل سره چه المضمر ماوضع الخ.

**مبحث ثالث** : دضمير بحث مقدم كړے شوپه نورو اوقسامو داسم مبنى باندے ددووجونه . (۱) ددے وجے نه چه بناء دضمير اتفاقى ده (۲) ضميراعرف دمعارفونه دے .

**مبحث رابع** :علتونه دبنادضمير دوه دى (۱)ضمائرمناسب دى دحرف سره په احتياج كښ اوحرف خومبنى وونوضمائرهم مبنى شول ځكه چه حرف محتاج دے ضم دضميمے ته .

**سوال** :. معنى داحتياج په ضمير دغائب كښ شته چه مرجع غواړى هغے ته محتاج دے نه ضمير دمتكلم اومخاطب؟. **جواب** :. (۱)ضميردمتكلم اومخاطب حمل دے په غائب باندے طرداللباب . (۲) ضميردمتكلم اوضميردمخاطب محتاج دى حضورته نوپدے كښ هم معنىٰ داحتياج شته دے.

دويمه وجه دبناء دضمير داده چه ضمير وضع دضمير په شان دوضع دحرف ده.

**مبحث خامس** : تفصيل مخالف دے داجمال نه پدے شان سره چه په اجمال كښ المضمرات ذكر ووپه صيغه دجمع سره اوپه تفصيل كښ المضر په صيغے دمفرسره ذكردے ؟نوددے يو جواب داد ے چه په المضمر كښ الف لام جنسى دى جنس مضمر مراددے نومطابقت شته اومخالفت نشته . **دويم جواب** داد ے چه مخالفت ئيے ځكه كړے دے چه دلته تعريف دضميركوى اوتعريف دجنس په جنس سره كولے شى اوتعريف دافرادونه شى كولے نوددے وجے نه ئيے په تفصيل كښ په المضمرات سره نه دے ذكركړے .

## مبحث سادس: فائده دقيودواتو :

پـه قيد داسم سره خارج شو كاف دوبلك اوپه قيد دمتكلم سره لفظ دمتكلم او قيد مخاطب سره لفظ دمخاطب اوپه قيد دغائب سره لفظ دغائب دضمير نه خارج شول اوپه قيد دتقدم ذكره سره اسماء غائبه (يعني اسم ظاهر)دتعريف دضمير نه خارج شول .**سوال** :. په ضمير كښې لفظ دمتـكـلـم داخل شو اوسره ددينه چه داخو ضمير نه دے . **جواب** : دلتـه قيّدحيثيت مرادد ے چـه من حيث انه يحكى عن نفسه بصيغه انادارنگه لفظ دمخاطب كښې قيدحيثيت مراددے چـه مـن حيث انه يخاطب معه بصيغة انت دارنگه لفظ دغائب كښې قيد دحيثيت مراددے چه مـن حيث انـه يـخبـر عـنـه بـصيـغة هـونو انااوانت اوهوضمائردى نه لفظ دمتكلم اومخاطب اوغـائـب .فتـدبر. اودا قيد چه تقدم ذكره دے داصفت دغائب نه دے چه دضمير غائب مرجع به مخكـښې ذكر وى اودا مـرجـع دد ے بيـاپـه در ے قسـمـه ده يابـه دحيثيت دلفظ نـه وى مرجع دضـمـيـرغـائـب دابـه يـاحـقيـقي وى مثال ددے ضرب زيدٌ غلامه.اويابه حكمي وى ددے مثال ضرب غـلامـه زيدٌ.يا بـه دحيثيت دمعنى نه وى داهم دوه قسم دے يابه دلفظ معين نه مرجع مـعـلـوميږى مثـال: اعـدلـوا هواقرب للتقوى هوضميرعدل ته راجع دے چه مبتدااعدلودے اويـابـه دسيـاق سباق نه مرجع معلوميږى مثال : ولابويه لكل واحدمنهما السدس ضميردابويه ميت ته راجع دے چه دسياق سباق نه معلوميدے شي ځكه ميراث دميت تقسيميدے شي.

اويابه حكمي مرجع وى يعني فرضي اوروستوبه ددے تفسيرشوے وى دلتفسيربه خالي نه وى يـابـه پـه مـفـردسره وى يابه په جمع سره وى كه قسم اول وونوضميرمبهم ورته وائى لكه ربّه رجلًا جواداًاوكه قسم ثاني وويابه تفسيرپه مذكرسره شوے وى نوضميرشان ورته وائى مثال قل هـوالله احـداويـابـه تفسيرپه مونث سره شوے وى نوضميرقصه ورته وائى انهازينب قائمةٌ اويابه تـفسيـرپـه مونث اومذكردواړوسره شوے وى نوضميرشان به وى كه عمده پكښې مذكروو مثال هوضرب زيدٌ هنداً اوضميرقصه به وى كه عمده پكښې مونث وى مثال هي ضربت هندٌ زيداً.

**وهومتصل ومنفصل** الخ. اوداضميرمنقسم دے قسمينوته يومتصل دے اوبل منفصل دے.

**تشريح** : **سوال** : هـومبتـداده اومتـصـل اومـنـفـصـل خبرين دى لازم شوحمل دواحـدمتعددلره اودانا جائزده. **جواب** :. هـومبتـداده اوخبرددے محذوف دے چه منقسم دے

اومتصل اومنفصل هرواحدخبردمبتدامحذوف دے چه احدهمامتصل وثانیهمامنفصل دے نوحمل دواحدپه واحداوشونه حمل دواحدپه متعددباندے. **سوال**: تقسیم په ضمیرکښ مخکښ اوشونوبیاځرنګه دلته تقسیم قبلوی؟. **جواب**: هلته تقسیم باعتبارضمیروودلته په اعتباردماقبل سره دے چه اتصال اوانفصال دی. **سوال**: ضمیرمتصل دے ولے مقدم کړوپه منفصل باندے؟. **جواب**: وضع دضمائروپه ایجاباباندے اواختصاراباندے ده اومتصل ضمیراخص دے دمنفصل نه ځکه مقدم کړے شو.متصل په منفصل باندے.

**سوال**:. په تفصیل کښ بیاهم دده تقدیم پکاروو. **جواب**: منفصل اصل دے په اعتباردمعنی سره ځکه وجودی دے اومتصل عدمی دے او وجود اشرف وی دعدم نه.

## داضمیرمتصل بیاپه دری قسمه دے:

**(۱) مرفوع نحوضربت الی ضربن معلوماً(۲).ومجهولا ومنصوب نحوضربنی الی ضربهنّ**

دامثال داتصال بالفعل شوواننی الی انهنّ دامثال داتصال بالحرف شو(۳). ومجرورنحوغلامی دامثال داتصال بالاسم شوولِیَ دامثال داتصال بالحرف شوالی غلامهنّ ولهنّ. **سوال**: دا دریم تقسیم بیاځرنګه اوشوضمیرکښ دانه په اعتبارذات دے اونه په اعتباردماقبل دے **جواب** دادریم تقسیم په اعتبارداعراب سره دے. **سوال**: اعراب خاصه داسم ده نواسم مبنی ځرنګه مرفوع اومنصوب اومجروروراتلے شی. **جواب**: دا محلی دے اواعراب محلی په مبنی کښ راځی دوی دمعرب په ځائے قائم دی اوپه معرب کښ دری واړه قسمه اعرابه راځی لکن فرق دادے دمعرب اومبنی په معرب کښ اعراب په دوه قسمه راځی ۱ - لفظی اعراب۲.تقدیری اعراب اوپه مبنی کښ یوقسم اعراب راځی چه محلی دے. بیا دا دری قسمونه: (۱) مرفوع. (۲) منصوب . (۳) مجرور. په ضمیرمتصل کښ راځی اوپه ضمیرمنفصل کښ دوه راځی مرفوع منصوب اومجرورمنفصل نه راځی ځکه دهومنفصل کیدے شی چه په عامل متقدم شی اودلته نشی کیدے ځکه تقدیم دمجروربه راشی په عامل جاره باندے یاتقدیم دمضاف الیه به راشی په مضاف باندے اودامنع دے. **سوال**: په عبارت کښ اشکال دے مصنف داسے عبارت ونیلے دے مرفوع نحوضربت ضمیرمرفوع ضربت دے اوحالانکه ضربتُ

خو ضمیر ندے بلکه ضمیر په کښې یو جزدے. **جواب**: **دلته عبارت په تقدیر د ضمیر سره دے ای ضمیر ضربت.**

**سوال**: الی راځی د پاره د مدد حکم لکه په دے قول د الله تعالی کښې: **واتموا الصیام الی اللیل** نو لیل داخل فی الصیام ندے ځکه الی د پاره د مدد حکم د صوم دے تر لیل پورے نو دلته ضربن بنْدے الی داخل شوے دے دا به هم په ماقبل کښې داخل نه وی والامر بالعکس. **جواب**: الی بمعنی مع ای مع ضربن ۲. بالغاً متعلق د الی دے. یا منتهیا متعلق دالی دے فلا یرد ما یرد.

**سوال**: د طریقے د صراف ولے خلاف اوکړے شو هغوی د صیغے د غائب نه شروع کوی.
جواب: د نحاتو بحث مباحثه د معرفے او نکرے نه ده او اعرف په معارفو کښې ضمیر د متکلم وو ځکه شروع کوی. او صراف مباحثه د صیغو نه کوی او اصل په صیغو کښې صیغه د غائب مذکر ده نو هغوی د صیغے د غائب مذکر نه کوی او دا ځکه اصل ده چه خالی ده د زوائدو نه په نسبت سره مخاطب او متکلم ته.

**فائده**: ضمیر متصل په فعل پورے هم متصل کیدے شی لکه ضربت په حرف پورے هم متصل کیدے شی لکه اننی. او په اسم پورے هم متصل کیدے شی لکه غلامی **ومنفصل وهو مایستعمل وحده**. ضمیر منفصل په دوه قسمه دے ۱. مرفوع ۲ و منصوب مثال د مرفوع انا الی هن مثال د منصوب ایای الی ایاهن په دے کښې مجرور منفصل نه راځی کما مرَ.

**فذلك ستون ضمیراً** نو دا ټول شپیته ضمائر شو چه دال دی په نوی ۹۰ الفاظو باندے.

**تفصیل** د دے دادے عقل تقاضا کوی چه ضمائر دے نوی ۹۰ شی په دے اعتبار سره چه د هر واحد د پاره دے اتلس اتلس ۱۸ صیغے شی اتلس د مرفوع متصل شپږ د متکلم او شپږ د مخاطب او شپږ د غائب. دا رنګه په دے طریقه اتلس د مرفوع منفصل او اتلس د منصوب متصل او اتلس د منصوب منفصل او اتلس د مجرور متصل نو دا مجموعه نوی ۹۰ جوړ شو په ضرب د اتلسو سره په پینځو کښې لکن د متکلم دوه صیغے قائم مقام شوے د څلورو په ځاے باندے لوجے د عدم التباس نه او په تثنیو د مخاطب او غائب کښې هم اکتفاء اوکړے شوه په دوو باندے سو په څلور و تثنیو کښې دوه پاتے شوے نو شپګ صیغے ترینه ساقطے شوے نو دولس صیغے پاتے شوے دوه د متکلم پنځه د مخاطب او پنځه د غائب نو مجموعه دولس شوے

**بيادولسو** لره چه ضرب وركړے شي په پنځوكښ نوشپيته صيغے شوے ځكه مصنفؒ وائي **فذالك ستون** ضميراً ليكن دابه دال وي په تسعون باندے معاني شپيته اوالفاظ نوي(٩٠).

**واعلم ان المرفوع المتصل خاصة يكون مستترا في الماضي للغائب والغائبة الخ**

**تشريح** : هركله چه مصنفؒ فارغ شودبيان داقساموداضمير نه نوشروع ئيے اوكړه په بيان محل داستتاردضمير كښ چه دا په كومو صيغوكښ مستتركيگي نو مصنفؒ اوئيل چه **واعلم ان المرفوع المتصل الخ**

**تفصيل**:ضمير مرفوع متصل مستتركيگي په فعل كښ اوپه صفت كښ نه مرع منفصل اونه منصوب اونه مجرور ځكه چه داضمير مرفوع متصل كالجزاء دے دفعل نه لفظااومعناجميعا هرچه لفظادے نو په دليل داسكان دلام كلمے دفعل سره چه متصل شي پورے ضمير مرفوع متصل اوهرچه معنادے نودا ځكه چه داموقوف عليه دمعنى دفعل دے ځكه بغير دفاعل نه فعل نه وي اوهرچه ضمير منصوب اومجروردے نودانه مستتر كيگي ځكه چه دادفعل نه اجزاء نه دي نه لفظا اونه معناځكه چه دوى فضله دي اوهر چه مرفوع منفصل دے نودا هم نه مستتر كيگي ځكه چه داجزء دفعل معنادے اولفظانه دے اوبل په ضمير مرفوع منفصل كښ انفصال دے اواستتارخومنافي دے دانفصال سره.ليكن ضمير متصل دماضي په څوارلسو صيغوكښ په دووصيغوكښ مستتركيگي (١)صيغه واحدمذكرغائب لكه ضرب اي هو(٢)صيغه واحد ه مؤنثه غائبه لكه ضربت اي هي دابه په سبيل دجواز سره وي ځكه ددے دووصيغواسنادفاعل اسم ظاهر ته كيدے شي مثال ضرب زيداوضربت هند نوكه په سبيل دوجوب سره شي نولازم به شي پدے صورت كښ تعدددفاعل اوداخوباطله ده اوباقي دولسوصيغوكښ ابراز دضمير به وي على سبيل الوجوب لكه الف په ضربا كښ اوواوپه ضربوا كښ شو اوتاپه ضربتاكښ شوه وغيره وغيره. **سوال** : په باقي صيغوكښ داهم مستترشي صيغے به په يوه طريقے سره شي. **جواب** : بيابه التباس لازم شي بينهم. **سوال** : عكس دے اوكړے شي. **جواب** : غائب اوغائبه اسبق دي اوضعيف دي اواستتارخفيف دے اوضعيف لره خفيف پكاروواوباقي صيغے قوي اوابرازثقيل وونوثقيل دقوي دپاره پكاروي نو ځكه عكس اونكړے شو امثله مذكوردي په كتاب كښ.

**وفی المضارع المتکلم مطلقا.** **تشریح** : اوضمیرمرفوع متصل په مضارع پینځو صیغوکښې مستترکیږی : ۱-صیغه د واحدمذکرغائب. ۲- واحدمونث غائبه.۳- صیغه د واحدمذکرحاضر۴. واحدمتکلم ۴-متکلم مع الغیر لکن پدوی کښې په اولنودووصیغوکښې علی سبیل الجوازپشان دماضی ځکه ددوی اسناداسم ظاهرفاعل ته هم کیږی یضرب زیدٌ اوتضرب هندٌ الخ. ... اوپه دریوصیغوکښې علی سبیل الوجوب استتاردضمیرپه وی ځکه چه مخاطب اومتکلم په وضع دواضع پاتے شی ورنه مخاطب به مخاطب نشی لکه ته وائی تضرب زیدٌدارنګه متکلم به متکلم پاتے نشی لکه ته وائی اضرب زیدٌ اونضرب زیدون.

**دلیل** د استتاردوی وجوددقرائن دے په استتارباندے پدوی کښې چه یاء ده په یضرب کښې اوتاده په تضرب کښې په هو اوپه هی باندے اوتاده په تضرب مخاطب کښې په انت باندے اوهمزه ده په اضرب متکلم کښې په اناوان په نضرب متکلم مع الغیرکښې په نحن باندے.اوپه باقی صیغودمضارع کښې ابرازدضمیردے الخ.

**وفی الصفة مطلقا.** اوپه اسم صفتی کښې هم استتاردضمیرکیدے شی مطلقا چه واحدوی اوکه تثنیه وی اوکه جمع وی اوکه مذکروی اوکه مونث وی مثال زیدٌضاربٌ ای هو الزیدان الضاربان ای هما الزیدون الضاربون ای هم الخ. (۱)- اسم صفتی اسم فاعل(۲).اسم مفعول(۳.)صفت مشبه(۴).اسم تفضیل دی چه صفت مشبه اواسم تفضیل ته اشاره مصنف کړے ده په غیرهماسره. **سوال** : په الضاربان او الضاربون کښې آلف اوواوضمیربارزشی پشان د الف دضربا اویضربان اودواودضربوا اویضربون.

**جواب** : په افعال کښې الف اوواوضمیرونه دی بارزاوعلامه دتثنیه اودجمعے هم ده اوپه اسم صفتی کښې صرف علامه دتثنیه اوجمع ده اوضمیرونه ندی. **سوال** : فرق څه چے داخویوشان الف اوواو دی؟ **جواب**: دافعال الف اوواونه بدلیږی په دخول دعواملوسره مثلالم یضربالم یضربوالن یضربا لن یضربوا ځکه دامبنی دی اوحکم دمبنی دادے ان لایختلف اخره بدخول العوامل. اوداسماء صفتیوالف اوواوبدلیږی په دخول دعوامل سره مثلاجاء نی الضاربان رئیت الضاربین ومررت بضاربین دارنګه جمع جاء الضاربون الخ.ځکه دامعرب دی که ضمبرددے مبنی وے نو اختلاف به پکښې نه راتلو فالفرق بینهماظاهر.

**ولایجوز استعمال المنفصل الاعندتعذر المتصل کایّاك نعبد الخ.**

پدے عبارت سره مصنف مواضع داستعمال دضمیر ذکرکوی چه هغه محصور اومعدود دی:

**تفصیل** : اصل په استعمال کښ ضمیر متصل دے ځکه دے اخصر اواقصر دے اومنفصل اطول دے نو په کومو مواضعو کښ چه ضمیر متصل مستعملیږی نو هغه ډیر مواضع دی دهغے ذکر ځکه دهغے ذکر ممکن ندی اوپه کومو مواضعو کښ چه استعمال دمنفصل کیږی دهغے ذکر کوی ځکه هغه یو څو مواضع دی چه هلته تعذر دمتصل وی نو منفصل استعمالیدے شی. (۱) اول ځاے دهغه مواضعو نه چه استعمال دضمیر متصل پکښ متعذر وی کله چه ضمیر مخکښ کړے شی په عامل خپل باندے ځکه اتصال په اخر کښ کیدے شی نه په اول کښ مثال ایاك نعبد په اصل کښ نعبدك وو دحصر دپاره ضمیر په نعبد چه عامل دے په ضمیر کښ اومتصل دے دا ضمیر مقدم کړے شو نو تعذر دمتصل شو نو منفصل مستعمل شو.

(۲) دویم ځاے چه فصل راغلے وی په مابین دفعل اوضمیر کښ دپاره دیو غرض داغراضو نه نو دلته تعذر دمتصل به وی ځکه سره دفعل نه اتصال متعذر وی مثال ماضربك الا انا.

(۳) دریم ځاے چه عامل په ضمیر کښ معنوی وی مثال انازید دلته تعذر دمتصل وی ځکه اتصال امر لفظی وی اوعامل امر معنوی وی اواتصال دامر لفظی دامر معنوی سره محال وی.

(۴) څلورم ځاے چه عامل په ضمیر کښ حرف وی مثال ماانت قائما. دلته تعذر دمتصل ضمیر وی ځکه حرف عامل ضعیفه دے اواتصال دضمیر امر قویه دے اواتصال دضعیف د قوی سره محال وی. سوال : اننی اولی دواړه ضمیرونه دی متصل دی اوعامل پکښ حرف دے دلته اتصال متعذر ندے. جواب : دا قاعده په ضمیر مرفوعه کښ ده نه په منصوبه اومجروره کښ ځکه ضمیر مرفوعه قوی دے اوضمیر منصوبه اومجروره فضله دے ددوی اتصال دحرف سره کیدے شی نه دضمیر سره. ددے تفصیل نور کیدے شی په مطولاتو کتابونو دعلم نحوے کښ.

**واعلم انّ لهم ضمیرا یقع قبل الجملة تفسّره الخ.**

پدے عبارت سره مصنف بل قسم دضمیر ذکرکوی چه هغه مسمی دے په ضمیر شان

اوضـمیرقصه سره. دضمیرشان اوضمیرقصه دپاره شرائط اربعه دی:(۱)دد ے ضمیرمرجع به په ماقبـل کـښ نـه وی.(۲)دده تـفسیربـه پـه مـابعدکښ په جملے سره شوے وی نه په مفردسره .
(۳)ضـمیردغائب به وی (هو)(هی)(۴)په امرعظیم کښ به وی داسے نشی وئیلے په ضمیرشان کښ هوطار ذبابٌ. **ددویم شرط** تـفـصـیـل دادے: چـه دد ے ضـمـیـربه تفسیرپه مابعدکښ په جمـلـه سره شـوے وی کـه پـه مفردسره تفسیردد ے ضمیرشو ے وونو هغه ته ضمیرمبهم وائی مثـال رُبّـه رجـلاجـواداً فـی ضـمیرشان اوضمیرقصه بیاداجمله به خالی نه وی یابه مذکوروی په تـفسیـرکـښ نـوضـمیـرشـان مثـال قـل هوالله احد هوضمیرشان مبتداالله مبتدا ثانی احدٌ ورلره خبرمبتـداثـانـی سـره دخبـرنه جملـه اسمیه خبریه مفسره خبرشودهو یابه داجمله په تفسیرکښ مـونث وی نـودضمیرقصه مثال هـی ضـربـت هندٌ انهازینب قائمة .اوکـه دواړه پـه جـمله کښ وویـعـنـی (مـذکراومونث)نوکه عمده پکښ مذکروونودابه بیاهم ضمیرشان وی مثال هوضرب زیدٌ هندا اوکه عمده پکښ مونث وی نودابه ضمیرقصه وی مثال هي ضربت هندٌ زیدا.

**ویدخل بین المبتدأ و الخبر صیغة مرفوعٍ منفصلٍ الخ.**

مـصـنف پـدے عبارت سره بـل قسـم دضمیرذکرکوی چه هغه ته ضمیرفصل وائی دد ے ضمیر فصل دپاره هم شرائط دی چه مستفاد دی دعبارت مافی الکتب نه :

(۱) شرط اول دمبتدأ اوخبرترمینځ به وی.

(۲) دویـم شرط ضـمـیـرمـرفـوع مـنـفصل به وی نه مرفوع متصل اونه مجرورمتصل اونه منصوب مطلقا. (۳) مطا بق به وی دمبتداسره افراداوتثنیةً وجمعاً وتذکیراوتانیثا.

(۴) ضـمـیـرفـصل به هله بین المبتدأو الخبرواقع کیږی چه خبرمعرفه وی حقیقتا یاحکما (یعـنـی چه اسم تفضیل مستعمل په من سره وی) سوال : مثـال اول دضمیرفصل چه زیدٌ هو الـقـائم دے مطابق دے دممثل سره ځکه زیدٌمبتداده او القائم ورله خبردے اوهوضمیرپه مینځ کښ واقـع دے لـکـن مـثـال دثـانـی چـه وکان زیدٌ هوافضل من عد دامطابق ندے ځکه زیداسم دکان دے مبتدأنده اوافضل من عمروخبردمبتدأندے. جواب : اول دلتـه تعمیم مراددے چه مبتدأ اوخبرقبل العوامل وی اوکه بعد العوامل وی فالاول للاول و الثاني للثاني.

**دویم جواب :** دمبتـدأ اوخبـرنه مرادمسند اومسنداليه دی دلته دواړه امثله مسند اومسند

الیه دی. سوال : مصنف صیغه دمرفوع اووے نو ضمیر به ئے وئیلے وو؟ **جواب** : په ضمیرفصل کښې مذهبین دی:اول مذهب دخلیل نحوی۲.مذهب دجمهورونحاتو دے. **مذهب دخلیل** نحوی دادے: چه دضمیرفصل دپاره محل داعراب نشته دے داحرف دے په صورت ضمیرباندے اوجمهورنحات وائی دامبتداء وی اومابعدورلره خبروی محل داعراب ورلره شته دے نوصیغه ئے ځکه اووے په مذهب دخلیل داضمیرندے.

**فوائدقیود** : داضمیربه مرفوع ځکه وی چه دامبتداده په مذهب دجمهورونحاتو باندے اومبتدامرفوع وی. قید(۲).منفصل به ځکه وی ضمیرچه واقع شی په مبتداکښې نوواجب الانفصال وی (۳) قید مطابق للمبتدأ .دمبتدأ سره به مطابق وی نه دخبرسره ځکه مبتدا اصل رکن دکلام دے نه خبر. (۴) قید : چه خبر به معرفه وی ځکه داضمیرفصل ددے دپاره راوړی چه فصل دخبردصفت نه راولی او التباس رانشی دخبردصفت سره اودا التباس هله راځی چه خبرمعرفه وی که خبرنکره شی نوبیا التباس دخبردصفت سره نه راځی ځکه دموصوف اوصفت مطابقت وی په تعریف اوتنکیرکښې.

سوال : په دریم مثال کښې استشهاد دقرآن کریم نه دے: وکنت انت الرقیب علیهم.دلته التباس دخبرچه الرقیب دے دصفت سره نه راځی چه الرقیب دِ صفت داسم دکان شی چه ضمیرمرفوع متصل دے(ت) ځکه ضمیرموصوف ندے نو الرقیب صفت نه شونولے ضمیرفصل أنت راوړے شو. جواب : دلته التباس نه راځی اوضمیر فصل ئے راوړے دے نوپه کوم ځائے کښې چه التباس راځی نو هلته به لازماضمیرفصل راوړلے شی اشاره ده چه داقاعده وجوبی ده. سوال : ډیرمواضع داسے دی چه هلته مبتدااوخبردواړه معرفے وی اوضمیرفصل نه وی بین المبتدأ و الخبر مثلا: الله الهنا.آدم ابونا.محمد نبینا.

**جواب** : دا شرائط مذکوره دضمیرفصل دپاره دی نه داچه دمبتدااوخبردپاره دی دااختصاص من جانب دے(فتدبر)

**اجمالی خلاصه اسباق سابقه**

اوبعض قواعد بعون الله .

مبنی په دری قسمه ده : (۱)مطلق مبنی .(۲)منبی اصل.(۳) اسم مبنی

(۱) **مطلق مبنی** دیتـه وائـی چـه په اختلاف دعواملوسره ددے په اخرکښ اختلاف نه راځی ددے دحرف اخرحرکت اوسکون دعامل دوجے نه نه وی. (۲)**مبنی اصل** دیتـه وائی چه خپله بناء کښ (چاته محتاج نه وی) اودا دری دی :۱- فعل ماضی۲- امرحاضر۳- جمله حروف.

(۳) **اسـم مبنی** دا هغـه اسم دے چـه دمبنـی اصل سره مشـابهت لری اوددے اقسام اتـه ۸ دی:(۱)ضـمـائـر.(۲)اسـمـاء اشـارات.(۳)اسـمـاء مـوصـولات.(۴)اسماء افعال.(۵) اسماء اصوات. (٦)اسماء کنایات. (۷)اسماء مرکبات. (۸) بعض ظروف.



## تصاريف ضمائر

| (۱) مرفوع متصل | ضمیر | (۲) مرفوع منفصل | (۳) منصوب متصل | ضمیر | (۴) منصوب منفصل |
|---|---|---|---|---|---|
| ضربتُ | تُ | انا | ضربَنی | ی | ایَّای |
| ضربنا | نا | نحن | ضربنا | نا | ایَّانا |
| ضربتَ | تَ | انت | ضربك | ك | ایَّاكَ |
| ضربتما | تما | انتما | ضربكما | كما | ایَّاكما |
| ضربتم | تم | انتم | ضربكم | كم | ایَّاكم |
| ضربتِ | تِ | اَنتِ | ضربكِ | كِ | ایَّاكِ |
| ضربتما | تما | انتما | ضربكما | كما | ایَّاكما |
| ضربتن | تنَّ | انتنَّ | ضربكنَّ | كنَّ | ایَّاكنّ |
| ضرب | هومستتر | هو | ضربه | ه | ایَّاه |
| ضربا | الف | هما | ضربهما | هما | ایَّاهما |
| ضربوا | واو | هم | ضربهم | هم | ایَّاهم |
| ضربتْ | هی | هی | ضربها | ها | ایَّاها |
| ضربتا | تا | هما | ضربهما | هما | ایَّاهما |
| ضربن | ن | هنَّ | ضربهنَّ | هنَّ | ایَّاهنَّ |

(۵) ضمیر مجرور متصل با حرف جر.(٦) ضمیر مجرور متصل با اضافت.

| لي | یائے متکلم | داري | ی متکلم |
|---|---|---|---|
| لنا | نا | دارنا | نا |
| لكَ | كَ | داركَ | كَ |
| لكما | كما | داركما | كما |
| لكم | كم | داركم | كم |
| لكِ | كِ | داركِ | كِ |
| لكما | كما | داركما | كما |
| لكنَّ | كنَّ | داركنَّ | كنَّ |
| له | ه | داره | ه |
| لهما | هما | دارهما | هما |
| لهم | هم | دارهم | هم |
| لها | ها | دارها | ها |
| لهما | هما | دارهما | هما |
| لهن | هنَّ | دارهنَّ | هنَّ |

(نوټ) ضمیر مجرور منفصل په کلام دعربو کښې مستعمل نه دے.




## التمرين لبحث المضمرات

| | | |
|---|---|---|
| انايوسف | اياك نعبد | هذااخی قدمناالله علينا |
| هؤلاء بناتی | قال الذين لايرجون لقائنا | هذاذكرمباركٌ |
| اعلم مالاتعلمون | اولئك هم المفلحون | ظلمناانفسنا |
| ولكم جمال | هو الذی خلقكم | هذان ساحران |
| انعمت عليهم | | اعدلواهواقرب للتقوى |
| قل هوالله احد | اهدنا | انهالاتعمى الابصار |

(۱) قاعده : دضميرنه مخكښ دمرجع ذكرضروری دے دابه يالفظی وی حقيقتا(۲).اويابه لفظی وی حكما(۳).يابه معناً وی(۴).يابه حكمافرضاوی.

(۲) قاعده : كه مرجع ماقبل نه وه نوپه مابعدكښ به وی نودابيامسمی كولے شی په ضميرشان سره په مذكركښ قل هو الله احد اوپه ضميرقصه سره په مونث كښ انهازينب قائمة.

(۳) قاعده : كله دمبتدا اوخبرترمينځ يو ضميرراځی هغے ته ضميرفصل وائی مثال اولئك هم المفلحون اودهغے دپاره شرائط دی ددے ذكرمخكښ شوے دے.

(٤) قاعده : كه دضميرنه بعدتفسيرپه تميزسره شوے وی هغے ته ضمير مبهم وائی فسواهنّ سبع سمٰوات ربّه رجلا جوادا.

(۵) قاعده : دضميردخپل مرجع سره په دووڅيزونوكښ مطابقت ضروری دے. [۱]

تذکیروتانیث مثال حامدٌهوقائم زینب هی قائمةٌ .[۲] واحدتثنیه جمع مثال زیدٌ ضرب هندضر بت الرجلان ضربا. الرجال ضربوا النساء ضربن.

(٦)**قاعده** : ضمیرچه واقع شی په مابین دمرجع اوخبرکښ نورعایت دخبراولی دے مثال العلم هی نعمةٌ.

(۷) **قاعده** : دضمیرچه مرجع مذکر اومونث دواړوکښ یووی اوضمیرترینه روستوراشی نوکله لحاظ دمذکرکیدے شی اوکله دمونث مثال دمذکر:ومن یکسب خطیئة او اثما ثم یرم به بریئا.مثال دمونث اذارأوتجارة اولهو اانفضو االیهاوتر کوك قائما.تمت بحث الضمائر.

**فصل** اسماء الاشارة ماوضع لیدل علی مشار الیه تاو لاء بالمدو القصر لجمعهما.

هرکله چه مصنف فارغ شودبحث دمضمراتونه نوشروع ئے اوکړه په بحث داسماء اشاراتوکښ نووے وئیل دارنګه اسماء الاشارات الخ.

علت د بنا په اسماء اشارات کښ دوه دی : (۱) دبعض اسمِ اشارات وضع په شان دوضع دحرف ده مثال لکه ذادوه حرفیزدے (ذ)(ا)اوحرف هم دوه حرفیزراځی لکه من اوعن شوددے مناسبے دوجے نه اسماء اشارات مبنی شو اوباقی حمل دی په ذات باندے طرداللباب.

(۲) وجه اسماء اشارات محتاج دی په تعین دمدلول خپل کښ اشارے ته اوحرف محتاج دے په دلالت کولوکښ په خپله معنی باندے ضم دکلمے اخری ته ددے مناسبت دوجے نه اسماء اشارات مبنی شو.اسماء اشارات پینځه الفاظ دی دپاره شپږومعانیوپه اشتراك دجمع سره بین المذکرو المونث.اوهغه شپږمعانی دادی: چه مشارالیه به خالی نه وی یابه مذکروی یابه مونث وی بیا هرواحددوینه په دری قسمه دے واحد،تثنیه،جمع.نو معانی شپږ او الفاظ ورته پینځه جمع ددوی مشترکه ده بین المذکرو المونث.دهغه پینځو الفاظو نه اول لفظ ذادے:پدے سره اشاره کولے شی مفردمذکرته.

## اختلاف مذاهب فی اصل ذا

(۱) مذهب داخفش دادے چه اصل د ذا ذیٌ وونویامدغم فیه حذف شوبرائے تخفیف نوذیٌ شوبیا یاپه الف دله شوه نوذا شو.

(۲) مذهب دکوفیانودے چه اصل دذاذَ وو بدون الالف بیازیادت دالف په اخردده کښ

اوشـونـوذا شـو. (٣) مـذهـب دبعض نحاتودے هغوی وائی چه اصل دده ذَوِیُ وونویاحذف شوه برائے تخفیف نوذِ شونوبیاواوپه الف بدل شونوذا شو.

(٣)- لفظ داسماء اشاراتونه ذان وذین دی ذان حالت رفعی کښ اوذین په حالت نصبی وجری کښ ددے په اعراب اوبناء کښ اختلاف دنحاتودے دری مذاهب دی:

(١) بـعـض نحات وائی: دا معرب دے اودلیل دادے چه ددوی په حالت رفعی کښ الف وی اوپـه حـالـت نـصبی اوجری کښ بدلیږی په یاء سره لکه په عاموتثنیوکښ داسے کیږی نوداپه هـغـوی باندے قیاس دی. (٢) بعض نحات وائی ذان اوذین مبنی دی دلیل ددوی دپاره هغه دے چه مخکښ تیرشوے دے په علت البناء د اسماء اشارات کښ.

(٣) مـذهـب دابـو اسـحاق الزجاج دے هغه وائی چه مطلق تثنیه مبنی ده داوی اوکه نورے وی ځـکـه دامـتـضـمن وی حرف لره اواسم چه متضمن وی حرف لره هغه مبنی وی مثلارجلان دے اصـل ددے رجـلٌ ورجلٌ دے اصل دزیدان زیدٌ وزیدٌدے. دلتـه مـصـنف داپـه مبنیاتوکښ ذکرکـړے دے اشاره ده دے خبرے ته چه مختارمذهب دده په نزدباندے دویم دے چه دامبنی دی.

**جواب**: داول مـذهـب نه دادے: چه په تثنیه عامه کښ اختلاف چه راځی نولوجے دعامل نـه راځـی اوپـه ذان اوذیـن کـښ لـوجـے وضـع دواضـع نـه دے قیاس ستاسودذان اوذین په نـوروعـامـوتثنیوباندے قیاس مع الفارق دے.ابو اسحاق الزجاج ته جواب دادے: چه په تضمن دحرف سره اسم مبـنـی ګـرځی هغه په تضمن حقیقی سره وی اودلته داستاتضمن وهمی دے نوداعلت نشی جوړیدے دپاره دبناء.

**دریـم لـفـظ**: تـا اووے اوذی، اوتـه، اوذه،اوتهـی،اوذهـی،دی چـه داوضع شوی دی دپاره دواحدمـونـث.پـدے کـښ اختلاف دے پدے اعتبارسره چه اصل پکښ تاء دے اوکه ذی دے دری مذاهب دی: (١) اول مـذهـب دادے چـه اصـل پـکښ تاء دے دلیـل تثنیه ددینه جوړه ده تارفعا اوتین نصبا اوجرا. (٢) مـذهـب اصـل پـکـښ ذی دے دلیـل دامطابق دذادے اوهغـه اصـل ووپـه مـذکـرکـښ نـوذی اصل دے په مونث کښ. (٣) مذهب دادے چه دواړه اصل دی وجه داصالت دتا هغه ده چه اول مذهب ذکرکړے ده اووجه داصالت دذی هغه ده چه دویم مذهب

ذکر کړے ده او صاحب د تحریر سنبټ بله وجه ذکر کړے ده داصالت دتا او ذی هغه داده چه دوی دواړه مخکښې ذکرشوی دی نو دد ے وجینه دااصل دے. .. او(۴) لفظ : د تان اوتین دی چه تان په حالت رفعی کښې دے اوتین په حالت نصبی اوجری کښې دے . .. پنځم لفظ داولاء دے رکن پدے کښې دوه لغته دی (۱) اولیٰ مقصورالیکن داالف په صورت دیاکښې لیکل ے شي دا مذهب دحجازیانو دے.

(۲) لغت داولاء ممدوداد ے دابه په همزه سره لیکلیشی دامذب دبنی تمیم دے لیکن داپنځم لفظ داسماء اشارات که مقصوراوی اوکه ممدوداوی مشترك دے بین جمع مذکروجمع المؤنث.

**سوال** : داسماء اشارات په تعریف کښې دور دے او دا باطل دے نوتعریف صحیح نه شو ځکه چه په محدود کښې اشاره ذکرده اوپه حد کښې مشارالیه ذکرد ے او،مشارالیه داشاره نه دے اومشتقی کښې مبدأوی نوتعریف داشاره په اشاره سره اوشو. **جواب** : دور نشته دے ځکه دلته یوه معنی مرادنه ده بلکه هغه اشاره چه ممدودکښې ده معنی اصطلاحی مراده اوکوم اشاره چه په حد اوتعریف کښې ده لغوی معنی مراده ده فتغیر الجهة فاندفع الدور.

**سوال** : په تعریف داسم اشاره کښې ضمیرد غائب او الف لام عهدذهنی داخل شوپدے سره اشاره کیدے شي. **جواب**: مرادځمونږه دمشارالیه نه دلته اشاره حسی ده اوضمیر او الف لام سره اشاره ذهنی نه کولے شي. **سوال** : ستاقاعده ورانه شوه پدے قول د الله تعالی باندے:ذلکم الله ربکم کښې اشاره الله تعالی ته ده او هغه محسوس ند ے. **جواب** : اشاره حسی عامه ده حقیقی وی اوکه حکمی وی دلته حکمی ده اشاره ځکه الله تعالی لوجے دزیادت تمکن داسم دالله تعالی نه په اذهانو دمومنانو کښې په منزله دمحسوس نازل کړے شوے دے.

**سوال** : دماتن په عبارت کښې لفظ دماراغلے دے نودالفظ دمابه خالی نه وی یابه عبارت وی داسماء نه اویابه عبارت وی داسم نه دواړه احتمالین نه صحیح کیږی هرچه احتمال اول دے ځکه نه صحیح کیږی چه ضمیرپه وضع کښې ورته راجع دے اودهغے مفرد دے مطابقت رانغے په مابین دضمیراودمرجع کښې اودامطابقت لازم وی.

**دویم احتمال** هم نه صحیح کیږی ځکه اسماء الاشاره مبتداده اوماخبرد ے اوعبارت داسم

**نه به شي نو مطابقت** نه راځي دمبتداوخبراودا هم ضروري وي.

**جواب :** کلمه دماعبارت وایم داسماء نه لیکن پدے کښې معنی دکل واحده **نو مطابقت** راځي دضمیراومرجع کښې. **دویم جواب** : کلمه دما عبارت رانم داسم نه اومطابقت بین المبتدأ والخبرشته دے ځکه چه په جمع کښې اعتبارین دی (۱) اعتبار دحروف سره جمع دلالت کوی په جنس باندے (۲) اوپه اعتباردعلاماتو دجمع سره دا جمع دلالت کوی په افرادوباندے نودلته اعتباراولحاظ حروفودجمع شوے دے نو مطابقت راغے بین المبتدأ والخبر نودواړه اعتبارین احتمالین په لفظ دماکښې صحیح دی. **سوال:** په عبارت کښې ذلك ذکردے اوپدے سره اشاره کولے شي واحدمذکرته اودلته تماموا اسماء اشاراتو ته اشاره شوے ده او هغه جمع ده نو مطابقت نشته دے. **جواب :** دا اسماء اشارات مؤول دی په تاویل دمذکورسره اومذکورمفردمذکروی نو مطابقت راغے داسم اشاره اومشارالیه.

**وقد یلحق باوائلهاهاء التنبیه نحوهذا الخ.**

پدے عبارت سره او روستنو عبارتونو سره داسماء اشارات خاص احکام ذکرکوی یو حکم دهغې نه دادے چه په اول داسماء اشاراتو کښې هاء التنبیه راځي دباره دتنبیه دمخاطب مثال لکه هذاهذین. **سوال :** دلته عبارت ویلحق باوائلهاندے صحیح ځکه حرف تنبیه په اول داسماء اشارات کښې راځي اولحوق ذکردشي دے په اخردشي پورے. **جواب:** دلته مرادلحوق نه دخول دے اودخول ذکردشے دے په اول دشيء کښې نوداعبارت په مجازباندے حمل دے چه ذکردخاص دے اومرادترینه عام دے. **سوال :** څه باعث دے چه حقیقت ترك کړے اومجازاختیار کړے؟. **جواب :** اشاره ده چه دالحوق په طریقه دعروض سره دے نه په طریقے داصالت سره اوپدے باندے دلالت لحوق کوی نه دخول نو ذکر دلحوق اوشواومرادترینه دخول. **سوال :** څه نه معلومو ے چه دالحوق دلالت کوی په عروض باندے؟ **جواب:** دلفظ دیلحق نه معلومیږی چه داهابه ملحقه وی اواسماء اشارات به ملحق به وی اوملحق به مقدم وی دملحق نه معلومه شوه چه اسماء اشارات مقدم دی اوداهاموخره ده عارضه ده

**ویتصل باواخرهاحرف الخطاب الخ.** پیوست کیږی په اخرداسماء اشارات پورے حرف خطاب چه هغه کاف دے اوداحروف خطاب هم داسماء اشارات پشان پینځه الفاظ دی دپاره

دشپږومعانيو چه هغه دادي: كَ. كما. كم. كِ. كما. كنَّ.تثنيه مشتركه ده بين المونث و المذكر مجموعه ددوی پينځويشت جوړشو چه حاصل دی دضرب دپينځو حرفودخطاب نه په پينځوداسماء اشاراتو كښ او هغه دذاك نه واخله ترذاكن پورے دی وكذا البواقی. سوال : دځه نه معلومے وے چه ذاك حرف دے اواسم ندے؟ جواب : دده حرفيت ددينه معلوم دے چه دده په ځاے اسم ظاهرنه واقع كيږی.

واعلم ان ذا لـلقرب وذلك للبعيدو ذاك للمتوسط. ذا د قريب دپاره راځی ځكه قلت دحروفودلالت كوی په قلت دمسافت باندے اوذالك دبعيددپاره راځی ځكه كثرت دحروفودلالت كوی په كثرت دمسافت باندے اوذاك دمتوسط دپاره راځی ځكه دده حروف دذانه زيات دی اودذلك نه كم دی اوتوسط دحروفودلالت كوی په توسط دمسافت باندے. سوال : عبارت داسے پكاروو چه ذاك په مينځ دذلك اوذاك كښ ذكركړے وے ځكه توسط يوه مرتبه ده بين القريب والبعيداول قريب وی بيامتوسط وی بيابعيدوی. جواب : معرفت دمتوسط موقوف دے په معرفت دقريب اودبعيدپورے اول به معرفت دقريب اودبعيداوشی روستوبه معرفت دمتوسط كيږی لكن دافرق چه مصنف كړے دے په مابين داسماء اشاراتو كښ نودامسئله اتفاقی بين جميع النحات نده ددے وجينه داپه كافيه ابن حاجب په صيغے دقيل سره ذكركړے دے. ويقال ذاللقريب وذالك للبعيدوذاك للمتوسط اشاره ده چه دامذهب دابن حاجب ندے نو حواله غير وركړه هغه وائی چه دوی ديوبل په معنی كښ مستعمليدے شی.

## معانی اسماء الاشارات

| ذا | ذان | ذين | تاوذی وته | تان | تين |
|---|---|---|---|---|---|
| واحدمذكردپاره | تثنيه مذكر حالت رفعی كښ | تثنيه مذكرحالت نصبی وجری كښ | وتهی الخ تول دواحد مونث دپاره | دتثنيه مونث دپاره حالت رفعی كښ | دتثنيه مونث دپاره حالت نصبی وجری كښ |

اولاء ممدودا اولیٰ مقصورا دجمع مذكر اودجمع مونث دپاره.

**اشـاره قـريـب** : هـذاَ ، هـذان هـذيـن ذانك . هـذه ، هـاتـان هـاتيـن . هـولآء.
(رفعاً، نصباوجرا) (رفعا ، نصباوجرا)

**اشاره بعيد** : ذلك، ذينك، تلك، تانك، تينك اولئك.

**اشاره متوسط** ذاك الخ.داسماء اشارات (استعمال طرق ثلاثه دى)

(۱)ك اولام ورسره نه وو نودادقريب دپاره به وى مثلا هذا.

(۲) الف اوكافِ ورسره په اخركښ وو نوبيادبعيددپاره به وى مثلاذلك.

(۳)كه په اخركښ حرف كاف وونودمتوسط دپاره به وى مثلا:ذاك،ذاكما،ذاكم، ذاكِ،ذاكما، ذاكنَّ.

## امثلة مايتصل باخرهاحرف الخطاب

| اسم اشاره مفردمذكر | اسم اشاره تثنيه مذكر | اسم اشاره جمع مذكر | اسم اشاره مفردمونث | اسم اشاره تثنيه مونث | اسم اشاره جمع مذكر ومونث |
|---|---|---|---|---|---|
| ذالك | ذانك ذينك | اولئك | تاكَ | تانك ،تينك | اولاك |
| ذالكما | ذانكما،ذينكما | اولئكما | تاكما | تانكما ،تينكما | اولاكما |
| ذالكم | ذانكم ،ذينكم | اولئكم | تاكم | تانكم ،تينكم | اولاكم |
| ذالكِ | ذانكِ ،ذينكِ | اولئكِ | تاكِ | تانكِ، تينكِ | اولاكِ |
| ذالكما | ذانكما،ذينكما | اولائكما | تاكما | تانكما ،تينكما | اولاكما |
| ذالكن | ذانكن ،ذينكن | اولائكن | تاكن | تانكنَ، تينكنَ | اولاكن |
| | رفعا ، نصباوجرا | | | رفعاً،نصباوجرا | |

### التمرين لبحث اسماء الاشارات

ذالكنّ الذى لمتننى فيه. ذٰلك الكتاب لاريب فيه

ذالكم خيرلكم ان كنتم تعلمون فذانك برهانان من ربك

واولئكم جعلناعليهم سلطانامبينا قال هؤلاء بناتى هنَّ اطهرلكم.

اولئك على هدى من ربهم قل هذه سبيلى ادعو الى الله.

ان هؤلاء يحبون العاجلة ويذرون ورائهم يوماثقيلا.

**فصل اسماء الموصول الموصول اسم لايصلح ان يكون جزأتامامن جملة الابصلة بعده الخ.** دريم قسم داقساموداسم مبني نه اسم موصول دے علامه دبناء پدے کښ مشابهت دے دحرف سره په احتياج کښ حرف محتاج دے ضم دکلمه اخرى ته په دلالت کښ په معنى خپله باندے اواسم موصول محتاج دے په مابعدکښ ذکردصلے ته اوحرف مبني وونوداهم مبني شو.تعريف لغةً موصول پيوست شوى ته وائى اوپه اصطلاح کښ هغه اسم دے چه نه تاميږى جزدجملے يعنى مسنداومسنداليه يافاعل يامفعول به وغيره بغيرذکردصله نه.په تعريف کښ مصنف ذکردصلے کړے دے پدے کښ اشاره ده چه موصول بغيردصلے نه جزء واقع کيږى لکن تام جزء نه واقع کيږي مثال قام الذى ضربك نو الذى ضربك جزتام دجملے دے چه مجموعه فاعل دے اويوا ځے الذى بغيردضربك نه جزء دے دکلام لکن تام ندے.او دا الابصله وعائد پدے کښ اشاره ده چه بعض اسماء غير دى د موصول نه جزأ تام د صلے نه واقع کيږى مثال جاء نى زيدٌ، زيدٌ جزء تام د جملے دے يعنى فاعل دے بغير ده صلے نه (يعنى محتاج نه دے صلے او عائد ته) او دلته د صلے نه مراد معنىٰ لغوى د صلے داده جملته مذکوره بعدشئى لايتم هذاشئى الابها او موصول کښ چه کومه صله ذکر ده دهغے معنى اصطلاحي ده اعتراض دفع شودلته دورلازم شوځکه صله په موصول کښ ذکرده. **جواب:** دلته جهت بدل دے نونه لازميږى دور.

**و الصلة جملة خبرية.** اوصله به جمله خبريه وى نه انشائيه ځکه صله مربوط وى دموصول سره اورابط جمله خبريه نه قبلوى نه انشائيه ځکه انشاء ايجادمالم يوجدته وائى نو رابط دغيربه څرنګه قبول کړى اوکچرے جمله انشائيه صله واقع شوے وه نوپه هغے کښ به تاويل دجملے خبريه کولے شى.اونفس صله به ځکه وى چه صله سره بيان دموصول کيږى اودابيان نه حاصليږى مګرپه جملے سره. ... پدے عبارت سره مصنف جواب ورکوى سائل ته چه ته وائى چه صله دموصول به جمله وى اوجمله مستقل بنفسهاوى مشتمله وى په مسند اومسنداليه باندے ربط دچاسره نه لرى اوصله دموصول سره ربط لرى نو مصنف جواب ورکړے دے پدے عبارت سره چه جمله کښ به عائددربط دپاره ضرور وى ولابدّ من عائد.

**سوال :** عوائد څلوردى :(١)ضمير.(٢)کون د خبر تفسيردپاره دمبتدأ مثال : قل هو الله احد.(٣)

**الف لام** مثال نعم الرجل.(۴) وضع داسم ظاهرپه ځاے دضمیرباندے مثال : **الحاقة ما الحاقة** دلته کوم عائدمراددے. **جواب**:عائدپه صله دموصول کښې به ضمیروی کماقاله ابن حاجب و العائدضمیرله مثال:جاء الذی ابوه قائم،اوجاء الذی قام ابوه دوه مثالین راوړی دی اول مثال دجملے اسمیه دویم مثال دجملے فعلیه.وهو الذی للمذکر الخ.اسماء موصوله دوه قسمه دی:اسماء موصوله خاصه ۲.اسماء موصوله عامه.اسماء موصوله خاصه دادی: ۱- الذی للمذکر.۲- الذان و الذین لمثناه۳. التی للمؤنث التان و التین لمثناه. ۵- الذین لجمع المذکر۶. اللاتی و اللواتی واللاء و اللائی لجمع المؤنث.الذی اصل دده لذی دے الف لام پرے داخل شو اَللَذِیُ شولام په لام کښې مدغم شو الذی شوپدے کښې نورلغات هم دی: اَلَّذِیّ ،اَلَّذِبحذف الیاء وابقاء کسر الذال اَلَّذْبحذف الیاء وسکون الذال.او اسماء موصوله عامه دا دی:

(۱)من (۲)ما (۳)ایُّ وایَّة (۴) الف لام (۵)ذو (۶)ماذا :

**تفصیل اشتراک من وما** :

(۱) دواړه دموصولاتونه دی.(۲) دواړه مبنی دی.(۳) احد هما په ځاے د بل مستعمليږی. (۴) دواړه دمذکراومؤنث اوتثنیه اوجمع دپاره دی معناً.(۵)ددواړونه تعبیرپه الذی او اللتی سره کولے شی **افتراق من وما** .من مستعمليږی غالباپه ذو العلم کښې اوذوی العقول کښې اوپه غیرذوی العلم اوغیرذوی العقول کښې قلیلامثال دمن په ذوی العلم اوذوی العقول کښې:من ذا الذی یشفع عنده الاباذنه اومثال دغیرذوی العلم اوذوی العقول ومنهم من یمشی علی بطنه الایه.اومامستعمليږی په عکس دمن باندے.مثال دغیرذوی العلم اوذوی العقول ماانزل الیك وما انزل من قبلك دذوی العلم اوذوی العقول فانکحوا ماطاب لکم من النساء مثنی وثلث الخ.اوپه دواړوکښې هم استعمال ددوی موجوددے سبح لله من فی السموات ومن فی الارض دا مثال شو دمن دپاره او سبح للهمافی السموات ومافی الارض دامثال دماشو : (۱) من موصوله راځی لکه اکرمت من جائك (۲)اواستفهامیه هم راځی لکه من غلامك (۳) اوشرطیه هم راځی لکه من تضرب اضرب (۴)موصوفه هم راځی کما فی قول الشاعر:

کفی بنا فضلاعلیٰ من غیرنا    حب النبی محمد ایانا

دا خلور اقسام دمن شول . **اوما اسمی** په شپږقسمه راځی .(۱) ماموصوله لکه ماانزل الیك

(۲)استفهاميه لکه ماتلك بيمينك يموسىٰ(۳) شرطيه لکه ماننسخ من اٰيت .(۴)تامه لکه فنعما هی .(۵)موصوفه لکه والسماء ومابنا ها.(٦)صفتيه قليلا ماتشکرون. الف لام دواړه دموصولاتونه دی داپشان دالف لام حرفی ندی چه ذکردی پدی قول دمصنف کښې ومن خواصه دخول اللام په هغے کښې دنحاتو اختلاف دے سيبويه وائی لام خاصه داسم ده.خليل نحوی وائی الف لام دواړه خاصه داسم دی اوفراء وائی همزه وحدهاخاصه داسم ده کمامرفی اول الکتب فی علامات الاسم.او الف لام اسمی دواړه موصولی اسمی دی بدون الاختلاف.ددوی نه به تعبيرپه مذکر کښې په الذی سره اوپه مؤنث کښې به ترينه تعبيرکيدے شی په التی سره اوصله ددوی به اسم فاعل اواسم مفعول وی .دليل ئيے دادے چه الف لام اسمی کښې دوه اعتباره دی (۱)اعتبارصورت (۲)اعتبار معنیٰ.

نو په اعتبارصورت سره دوی مفرددی په شان دالف لام حرفی نو هغه خو مفرددی نودوی هم مفرددی .اوپه اعتبارمعنی سره جمع ده ځکه دوی صله غواړی اوصله سره دموصول نه نه وی مگر جمله وی نو حاصل شو په کښې دوه اعتبارهن وصورتا مفرد دی اومعناجمع دی نو مدخول هم داسے غواړی چه صورتا مفردوی اومعناجمع وی اوهغه نه مگراسم فاعل اواسم مفعول دی. **اسم فاعل اواسم مفعول** دواړه صورتا مفرددی ځکه دادواړه داسم جامد سره مشابه دی په عدم تغييرکښې په حالت دغيبوبت اوخطاب اوتکلم کښې مثال لکه انا ضارب، انت ضارب ،هو ضارب .چه داپه شان دانارجل ،انت رجل ،هورجل په شاشنته دے اواسم جامدخو مفرد وو نودا هم مفرد شول .اومعنااسم فاعل اواسم مفعول جمله ده ځکه جمله ديته وای چه مشتمله وی په ذات اووصف باندے اوپه اسم فاعل اواسم مفعول کښې دادوړه وصفه شته دے مثال لکه جاء الضارب زيدا.ای الذی يضرب زيد االخ.

ذو:دا هم دموصولاتونه دے دده نه تعبيرپه الذی اوالتی سره کوکے شی لکن ذومقيد دے په قيد دبنی طی سره اشاره ده چه ذوپه نزددقبيلے بنی طی سره دموصولاتونه دے اومبنی دے په نزدجمهورونحاتو باندے هغوی وائی ذوپه معنی دصاحب سره دے معرب دے.

**فرق دذومعرب اومبنی**(۱) ذوبه دمعرب نه بعدمفردراځی اود ذومبنی نه بعدبه جمله راځی .(۲) د ذوبه دمعرب نه به تعبيرکولے شی په صاحب سره اوذومبنی نه به تعبيربه په الذی

سره کولے شی.(۳)ذوصاحبی معرب دے اوذوطائی مبنی دے مثال ذو الطائی (شعر)

فان الماء ماء ابی وجدی وبیری ذوحفرت وذوطویت

ای الذی حفرته و الذی طویته.

**ویجوزحذف العائد الخ.** مصنف پدے عبارت سره دفع دسوال اوکړه سوال داواریدیدوپه تعریف داسم موصول کښں اووئیلے شوولابدمن عائد چه عائدبه په صله دموصول کښں لازمی وی،نوپه بعض صورتونوکښں په صله دموصول کښں عائدنه وی نو مصنف دفع دسوال اوکړه چه ویجوز حذف العائدلکن دامطلقا نشی حذف کولے بلکه ددے دپاره **شروط اربعه** دی :(۱) دا عائد به فضله وی. (۲)داضمیردغائب به راجع وی موصول ته والافلامثال سمع الله لمن حمده. (۳)ذ الانه بعد به ضمیرمنفصل وی جاء نی الذی ماضربت الایاه.(۴) په صله کښں به دوه ضمیرونه وی مثال جاء نی الذی ضربته فی داره. **وماذا** : داهم داسماء موصولاتونه دے اوممکن ده داذاپس دمااستفهامیه نه واقع وی ورنه بیاداسم اشارے نه دے مثال ماذاصنعت ای ایّ شیء صنعته جواب ددے الاکرام دے ای صنعت الاکرام په نصب دالاکرام سره یا په رفع دالاکرام سره ای هو الاکرام و التفصیل فی المطولات. **واعلم ان ایّاو ایّةً معربةٌ** مصنف پدے عبارت سره دفع دسوال کوی سوال داسے واردیږی چه ایٌّ اوایةٌ تادموصولاتونه شمارکړل اوحالانکه داخومعرب دے مصنف جواب ورکوی یوحالت کښں مبنی وونودهغے دوجے نه دلته په موصولاتوکښں ذکرکړو .ایٌّ اوایةٌ کښں شلورحالات دی:په دری صورتونوکښں معرب اوپه یوحالت کښں مبنی وی چه مضاف وی اوصدردصلے مذکورنه وی.مثال دصورت دمبنی

| د (ایٌّ) امثله | د(ایّةٌ)امثله |
|---|---|
| دحالت رفعی مثال: جاء نی ایهم قائم | دحالت رفعی مثال جاء تنی ایتهنّ قائمةٌ |
| دحالت نصبی مثال: رئیت ایهم قائمٌ | دحالت نصبی مثال: رایت ایّتهنّ قائمةٌ. |
| دحالت جری مثال: مررت بایّهم قائمٌ | دحالت جری مثال: مررت بایّتهنّ قائمةٌ. |

پدے صورت کښں ایٌّ اوایةٌ مضاف دی اوصدردصلے محذوف دے.

(۲)استـفـهـامـيـه لـكـه مـاتـلك بيمينك يموسىٰ(۳) شرطيه لكه مانسخ من ايٰت .(۴)تامه لكه فـنـعـمـا هـي .(۵)مـوصـوفـه لـكـه والسماء ومابنا ها.(٦)صفتيه قليلا ماتشكرون. الف لام دواړه دموصولاتونـه دي داپشـان دالف لام حـرفـي نـدي چـه ذكردي پدي قول دمصنف كښي ومن خـواصـه دخـول اللام په هغـے كښي دنحاتواختلاف دے سيبويه وائي لام خاصه داسم ده.خليل نحوي وائي الف لام دواړه خاصه داسم دي اوفراء وائي همزه وحدهاخاصه داسم ده كمامرفي اول الـكـتـب فـي علامات الاسم.او الف لام اسمي دواړه موصولي اسمي دي بدون الاختلاف.ددوی نـه بـه تـعـبـيـرپـه مـذكر كښ په الذی سره اوپه مؤنث كښ به ترينه تعبيركيدے شي په التي سره اوصلـه ددوی بـه اسم فـاعـل اواسـم مـفـعـول وی .دليـل ئيـے دادے چه الف لام اسمي كښ دوه اعتباره دي (۱)اعتبارصورت (۲)اعـتبار معنىٰ.

نـو پـه اعتباردصورت سره دوی مفرددی په شان دالف لام حرفي نو هغه خو مفرددي نودوی هم مـفرددي .اوپه اعتباردمعني سره جمع ده ځكه دوی صله غواړی اوصله سره دموصول نه نه وی مـگر جمله وی نوحاصل شو په كښ دوه اعتبارهن وصورتا مفرد دي اومعناجمع دي نو مدخول هم داسـے غـواړی چـه صـورتا مفردوی اومعناجمع وی اوهغه نه مگراسم فاعل اواسم مفعول دي. **اسم فاعل اواسم مفعول** دواړه صورتا مفرددي ځكه دادواړه داسم جامد سره مشابه دي په عـدم تـغـيير كښ په حالت دغيبوبت اوخطاب اوتكلم كښ مثال لكه انا ضارب، انت ضارب ،هو ضـارب . چـه داپـه شان دانارجـل ،انت رجـل ، هـورجـل په شاشنته دے اواسم جامدخو مفرد وو نـوداهـم مـفـرد شـول .اومعنااسم فاعل اواسم مفعول جمله ده ځكه جمله ديته وای چه مشتمله وی پـه ذات اووصف باندے اوپه اسم فاعل اواسم مفعول كښ دادوړه وصفه شتـه دے مثال لكه جاء الضارب زيدا.اى الذي يضرب زيد االخ.

ذو:دا هـم دموصولاتونه دے دده نـه تـعـبـيـرپـه الذي اوالتي سره كوكـے شي لكن ذومقيد دے پـه قيد دبني طي سره اشاره ده چه ذوپه نزددقبيلـے بني طي سره دموصـولاتونه دے اومبنى دے په نزدجمهورونحاتوباندے هغوی وائي ذوپه معني دصاحب سره دے معرب دے.

**فرق دذومعرب اومبني**(۱) ذوبـه دمـعـرب نـه بـعـدمـفـردراځي اود ذومبني نه بعدبه جمله راځي .(۲) د ذوبه دمعرب نه به تعبيركولے شي په صاحب سره اوذومبني نه به تعبيربه په الذي

سره کولے شی.(۳)ذوصاحبی معرب دے اوذوطائی مبنی دے مثال ذو الطائی (شعر)

فـــان الـــمـــاء مـــاء ابـــی وجـدی وبیـــری ذوحــفــرت وذوطــویـــت

ای الذی حفرته و الذی طویته.

ویجوزحذف العائد الخ. مصنف پدے عبارت سره دفع دسوال اوکړه سوال داواریدوپه تعریف داسم موصول کښې اووئیلے شولابدمن عائد چه عائدبه په صله دموصول کښې لازمی وی،نوپه بعض صورتونوکښې په صلـه دموصول کښې عائدنـه وی نو مصنف دفع دسوال اوکړه چه ویجوزحذف العائدلکن دامطلقا نشی حذف کولے بلکه ددے دپاره **شروط اربعه** دی :(۱) دا عائد به فضله وی. (۲)داضمیردغائب به راجع وی موصول ته والافلامثال سمع الله لمن حمده. (۳)ذ الانـــه بـــعـــد بـــه ضمیرمنفصل وی جاء نی الذی ماضربت الایاه.(۴) پـه صـلـه کښې به دوه ضمیرونه وی مثال جاء نی الذی ضربته فی داره. **وماذا** : داهم داسماء موصولاتونه دے اوممکن ده داذاپس دمااستفهامیه نه واقع وی ورنـه بیاداسم اشارے نـه دے مثال ماذاصنعت ای ایّ شیء صنعته جواب ددے الاکرام دے ای صنعت الاکرام په نصب دالاکرام سره یا په رفع دالاکرام سره ای هو الاکرام و التفصیل فی المطولات. واعلم ان ایّاو ایّةٌ معربةٌ مصنف پدے عبارت سره دفع دسوال کوی سوال داسے واردیږی چه ایٌ اوایةٌ تادموصولاتونه شمارکړل اوحالانکه داخومعرب دے مصنف جواب ورکوی یوحالت کښې مبنی وونودهغے دوجے نه دلته په موصولاتوکښې ذکرکړو.ایٌ اوایةٌ کښې شلورحالات دی:په دری صورتونوکښې معرب اوپه یوحالت کښې مبنی وی چه مضاف وی اوصدردصلے مذکورنه وی.مثال دصورت دمبنی

| د (ایٌ) امثله | د(ایّةٌ)امثله |
|---|---|
| دحالت رفعی مثال:جاء نی ایهم قائم | دحالت رفعی مثال جاء تنی ایتهنّ قائمةٌ |
| دحالت نصبی مثال:رئیت ایهم قائمٌ | دحالت نصبی مثال:رایت ایّتهنّ قائمةٌ. |
| دحالت جری مثال:مررت بایّهم قائمٌ | دحالت جری مثال:مررت بایّتهنّ قائمةٌ. |

پدے صورت کښې ایٌ اوایةٌ مضاف دی اوصدردصلے محذوف دے.

**دری صورتونه دمعرب دایٌّ اوایةٌ** (۲)(۱) اول صورت چه دواړه مضاف نه وی اوصدردصلے مذکوروی

| ایٌّ | ایَّةٌ |
|---|---|
| دحالت رفعي مثال. جاء نی ایٌّ هو قائم | دحالت رفعي مثال: جاء نی ایَّةٌ هی قائمةٌ |
| دحالت نصبي مثال: رأیت ایاهوقائم. | دحالت نصبي مثال: رأیت ایَّتهی قائمةٌ |
| دحالت جری مثال: مررت بایٍّ هوقائمْ. | .دحالت جری مثال: مررت بایةٍ هی قائمةٌ. |

(۳) (۲) دویم صورت مضاف هم نه وی اوصدردصلے هم مذکورنه وی :

| ایٌّ | ایَّةٌ |
|---|---|
| دحالت رفعي مثال: جاء نی ایٌّ قائم | دحالت رفعي مثال: جائت نی ایَّةٌ قائمْ |
| دحالت نصبي مثال: رأیت ایّاقائم | دحالت نصبي مثال: رأیت ایّة قائم. |
| .دحالت جری مثال: مررت بایٍّ قائمْ | دحالت جری مثال: مررت بایةٍ قائمْ. |

(۴) (۳) دریم صورت مضاف وی اوصدردصلے هم مذکور وی :

| ایٌّ | ایَّةٌ |
|---|---|
| دحالت رفعي مثال: جاء نی ایهم هو قائم | دحالت رفعي مثال. جاء تنی ایَّتهن هی قائمةٌ |
| دحالت نصبي مثال: رأیت ایَّهم هوقائم. | دحالت نصبي مثال: رأیت ایَّتهن هی قائمةٌ |
| دحالت جری مثال: مررت بایهم هو قائمْ. | دحالت جری مثال: مررت بایتِهن هی قائمةٌ. |

**وجه دحصرپدیے صوراربعوکی**

**ایٌّ وایَّةٌ**

| دواړه مضاف وی | | یابه نه وی | |
|---|---|---|---|
| (۱)صدردصله به مذکوروی نو معرب ایهم هوقائم | (۲)صدردصله به مذکورنه وی مبنی ایهم قائمٌ | (۳)صدردصله به مذکور وی معرب ای هوقائم | (۴)صدردصله به مذکور نه وی معرب ای قائم |

## اقسام صله

| ۱ | ۲ | ۳ |
|---|---|---|
| صله موصول جمله فعلیه | صله جمله اسمیه | شبه جمله |
| سافر الذی اقام فی منزلی | حضر التلمیذ | رئیت الرجل الذی فی الدار |
| التی تجادلك فی زوججها | الذی هو مجتهد | (دشبه جملے نه مرادظرف دے) |

**اسماء موصوله** صیغه صیغه

(۱) . اَلَّذی دواحدمذکردپاره (۲). اَلَّذان دتثنیه مذکردپاره رفعا اَلَّذَین نصباوجرا.

(۳) . اَلَّذِیْنَ دجمع مذکردپاره. (۴). اَلَّتی دواحدمونث دپاره.

(۵) . اَلَّتان دتثنیه مونث دپاره رفعا (٦). اَلَّتین دتثنیه مونث دپاره نصباوجرا.

(۷) .اَلَّاتی دجمع مونث دپاره. (۸).اَلّواتی دجمع مونث دپاره.

(۹) .ما برائے غیرذوی العقول غالبا، واحد،تثنیه وجمع مذکر،ومونث.

(۱۰) مَنْ برائے ذوی العقول غالبا، واحد،تثنیه وجمع مذکر،ومونث.

(۱۱) .ایُّ برائے ذوی العقول غالبا، واحد،تثنیه وجمع مذکر،ومونث.

(۱۲) .ایَّةٌ برائے ذوی العقول غالبا، واحدمونث.

(۱۳) . الف لام چه مدخول ددے اسم فاعل وی.

(۱۴) ذو بمعنی الذی درلغت بنی طی.(۱۵) .ماذا.

(۱)**فائده:** داسماء موصوله تثنیه اوجمعی نه علاوه تمام الفاظ مبنی دی تثنیهٔ اوجمع کښں اختلاف دے کماتقدم (۲)**فائده** الذین اولاء دمذکرذوی العقول دپاره راځی (۳)**فائده** من ما او الف الام ذوبمعنی الذی همیشه به په یو حالت باندے وی په واحد،تثنیه اوجمع اومذکراومونث کښں تبدیلی پکښں نه راځی.

قاعد ه ذا موصولی دپاره درے شرائط دی (۱)دما استفهامیه یامن استفهامیه نه پس به واقع کیږی پدے قاعدے باندے ذا رئیت غلط دے (۲)ذاکښں به داسم اشاره معنی مرادنه وی لهذاماذاالکتب کښں ذا اسم اشاره ده موصول ندے (۳)ذا دما اومن سره متصل کلمه واحده نه وی لهذادماذا اتیت اوم[illegible] کښں ذا موصولیّ ندے. قاعده : صله به همیشه دموصول نه پس راځی

**قاعده :** مـوصـول خاص دپاره دعـائـدضـمیرمطابقت ضروری دے اوموصول عام کښں دوه وجی جائزدی (۱)دلـفـظ رعـایـت(۲)دمعنی رعایت مثال ومـن الـنـاس مـن یـقـول امـنابالله وباليوم الاخروماهم بمومنين **قاعده :** مـوصـول اسمی کښی حذف دلام جائزندے اوباقی حذف کیدے شی.**قاعده :** اسماء موصوله په ترکیب کښں فاعل،مفعول،مبتداء،خبر، موصوف، صفت وغیره وغیره جوړیږی. **قاعده :** داسم موصول نه چه روستـوجارمـجـرور راشـی نـومتـعـلـق صرف اوصرف فعل پورے وی مثال : قدمکر الذين من قبلهم.**قاعده :** عـائـدمـوصـول چه فضله وی نو حذف دهغـے جائز دے مثال الله يبسط الرزق لمن يشاء ای يشاء ه وتعزمن تشاء وتذل من تشاء.

## التمرين لبحث اسماء الموصول

| | |
|---|---|
| ايُّهم اشدعلى الرحمٰن عتيا | سبحان الذى اسرى بعبده |
| الذى جاء بالصدق | و الذى يأتيانهامنكم |
| قدسمع الله قول اللتى تجادلك فى زوجها | و اللائى يئسن |
| ماعندكم ينفد | ومن يقنت منكن لله ورسوله. |
| وقال الذين كفروا ربنا ارنا الذين اضلانا | مثلهم كمثل الذى استوقدنارا |
| مثل الجنة التى وعد المتقون | فانظرماذاترى |

**فصل اسماء الافعال** ..........وهيهات زيدٌ اى بعُدَ

څلورم قسـم داسم غیرمتـمـکـن نه اسماء افعال دی اسماء افعال دیته وائی چه په معنی دفعل مـاضـی سره وی یاپه معنی دامرحاضرسره وی. **سوال :** ستـاپـه تعریف کښں اسم فاعل داخل شو حالانکه زیدٌضارب اَمس دلته اسم فاعل بمعنی الماضی دے اواسم فعل ورته نه وائی.

**جواب :** دلتـه په تعریف کښں یوقید محذوف دے چه هغه په اعتبارداصل وضع سره دے یعـنـی اسم فاعل دلالت کوی په ماضی په اعتباردقرینه سره اواسم فعل به دلالت کوی په فعل ماضی اوامرحاضریاندے په اعتبارداصل وضع سره.

**سوال :** دریـم قسـم داسم فعل هم شته دے چه هغه بمعنی المضارع دے. چه اوف بمعنی اتـزجـر اوه بـمعنی اتوجع دے اوداقسم تاذکرنکړو؟. **جواب :** دوی هم بمعنی الماضی دی اف تـزجـدت دے اوه بـمـعـنـی تـوجـعـت دے اوپـه مـضـارع کـښں مجازامستعمل دے ځکه

مقصوددوی نه اخبارندے بلکه اشناء ده اواسب دانشاء سره مضارع حالی ده. **سوال :** هرکله چه دااسماء افعال په معنی دفعل سره دی چه فعل ماضی اوامرحاضردی نوعین افعال ولے ندی؟ **جواب :** د دوی اوزان د افعالوداوزانونه مغایردی. (۲)-: په بعض اسماء ددوی باندے تنوین تنکیرراځی لکه صه اومه اودادلیل داسمیت ددوی دے ځکه تنوین خاصه داسم ده.(۳) :- بعض اسماء ددی نه منقول دی دظرف نه اوبعض دمصدرنه منقول دی داهم دلیل ددوی داسمیت دے.په اسماء افعال کښ دوه تقسیمه دی(۱).بمعنی الامر الحاضر(۲).بمعنی الماضی(۱)سماعی(۲)قیاسی دواړه مصنف ذکرکړی دی.کوم اسماء افعال چه په معنی دامر حاضردی هغه مصنف مخکښ کړل په هغه اسماء افعال باندے چه په معنی دماضی دی ځکه چه داډیردی او العزت للتکاثر.سماعی اسماء افعال روید هیهات که بمعنی الامر الحاضروی اوکه بمعنی الماضی وی اوقیاسی اسماء افعال ته مصنف اشاره کړے ده پدے قول سره :

**او كان على وزن فعال بمعنى الامروهومن الثلاثي قياسيٌ.**

**قاعده** دثلاثی مجردنه فعال بمعنی امرحاضرمشتق کول صحیح دی.لکه نزال په معنی دانزل اوتراك په معنی داترك ضراب په معنی داضرب کتاب په معنی داکتب حلال په معنی دحل . **سوال :.** ستاقاعده منقوضه ده په قوام اوقعادباندے داپه معنی دقم اواقعد ندی.

**جواب :** اسماء اُفعال دثلاثی مجردنه په وزن دفعال سره کثیرراځی اوددے وجینه دیته قیاسی وئیلی دی اودانده چه هرځاے اسم په وزن دفعال وی نوپه معنی مراددامرحاضرسره به وی.

**قوله ويلحق به فعال مصدراً معرفةً الخ** پدے عبارت سره مصنف دفعال امری ملحقات ذکرکوی اوهغه دری دی (۱) فعال مصدری(۲)فعال صفتی(۳)علمی.ددے تفصیل دادے چه فعال په پینځه قسمه دے :

(۱) فعال امری چه په معنی دامرحاضرسره وی لکه نزال په معنی دانزل .

(۲) فعال مصدری چه په معنی دمصدرمعرفه سره وی لکه فجارپه معنی د الفجورسره.

(۳) فعال صفتی چه په معنی دصفت سره وی لکه فساق بمعنی فاسقة .

(۴) فعال علمی غیرذوات الراء چه داعیان مونثه دپاره علم وی لکه غلاب،قطام.

(۵) فعال علمی ذوات الراء چه داعیان مونثه دپاره علم وی لکه حضار.

**د دوی احکام** قسم اول اتفاقا مبنی دے.

قسم ثانی اوثالث دا هم مبنی دی دوجی دمشابهت ددوی نه دقسم اول سره چه فعال امری دے په وزن اواشتقاق کښ هرچه په وزن کښ دے نوداظاهردے اوهرچه په اشتقاق کښ دے نوفعال امری یعنی نزال معدول دانزل نه اوفجار معدوٙل د الفجورنه اوفساق معدول دے فاسقة نه اوهرچه قسم رابع دے نوددے په اعراب اوبناء کښ اختلاف دے پدے کښ دوه مذهبه دی:اول مذهب دحجازیینودے اودویم مذهب دبنبی تمیم دے حجازیین وائی مبنی دی لوجے دحمل ددوی نه په فعال امری باندے اوبنی تمیم وائی معرب دی ځکه اصل په اسماء کښ اعراب دے اوحمل په نظائروباندے ضروری ندے مصنف هم ورته مبنی وئیلی دی اوهرچه قسم خامس دے نودااتفاقی مبنی دے.ځکه ددے په اخرکښ حرف راء ده اوهغه ثقیله ده کالمکررفی المخرج ده نوکه معرب شی نوزیات ثقل به راشی ځکه په معرب کښ سلوك په طرقو متعددووی اوکه مبنی شی نوثقل به کم وی ځکه په مبنی کښ سلوك په طریقه واحده وی.اوسلوك په طریقه واحده اسهل وی دسلوك نه په طرقو متعددوباندے پدے فعال کښ چه مذکوردی :دادری قسم :(۱)فعال مصدری(۲)فعال صفتی(۳)علمی.که ذوات الراء وی اوکه غیرذوات الراء وی دادهٔ اسماء افعال نه ندی دلته ذکرکړی دی دوجے دمشابهت دفعال امری سره عدلاً وزنةً کماقال به المصنفؒ وهذه الثلاثة لیست من اسماء الافعال انماذکرت الخ

**(۱)اقسام اسماء افعال**

| ۱ | ۲ | | | ۳ |
|---|---|---|---|---|
| مرتجله | منقوله | | | معدوله |
| هغه اسماء افعال دی چه | جارمجرورنه (۱) | ظرف نه (۲) | مصدرنه (۳) | په وزن دفعال راځی |
| وضع شوی وی دپاره دمعنی | علیك نفسك | دونك الکتاب | رویدزیدا | مثلاقَتالِ ضرابِ حذارِ |
| دفعل مثلا امین،هلم،هات | ای الزمها | ای خذه | ای امهله. | نزال |

## [۲۰]اقسام اسماء افعال

| (۱)بمعنی فعل ماضی | (۲)بمعنی امر حاضر | (۳)بمعنی فعل مضارع |
|---|---|---|
| (۱)هيهات بمعنی بعد | (۱)رويدابمعنی امهل | (۱)قد،قط.بمعنی يكفی |
| (۲)شتان بمعنی افترق | (۲)هلم بمعنی ائت | (۲)زه بمعنی استحسن |
| (۳)سرعان بمعنی سرع اواسرع | (۳)دونك هابمعنی خذ | (۳)بخ بمعنی ارضی |
| | (٤)عليك بمعنی الزم | (٤)واها وی بمعنی اتعجب |

داټول مبنی برسكون دی

**فائده** : اسماء افعال په دوه قسمه دی:مشهورداكوم چه ذكرشو(۲).اوغير مشهور لكه اسماء افعال غيرمشهوره. (۳)اسماافعال غيرمشهور.

| (۱) | (۲) | (۳) |
|---|---|---|
| اوه. بمعنی توجعت | عليك زيدا بمعنی الزم | بس.بمعنی اسكن مثال بس ناقه ای اسكن الناقة للتحليب |

| (٤) | (۵) | (٦) |
|---|---|---|
| حی بمعنی اقبل: حی علی الصلوة | هيت بمعنی اقبل هيت لك | مكانك :بعنی اثبت يازيد.ای اثبت مكانك يازيدُ |

(۷)امامك بمعنی خذامامك زيداً ای خذه. (۸)دونك بمعنی خذدونك زيدا ای خذه.

(۹)اليك بمعنی اذهب اليك عنی ای اذهب عنی. (۱۰)امين بمعنی استجب.

(۱۱) وی بمعنی اتعجب ويل لبكر.(۱۲)صه بمعنی اسكت صه عن الكلام.

**فائده** : په اسماء افعال كښ هاء اكثربغيردفرق نه كوی بعض علماء. اوبعض علماء فرق كوی دواحدمونث اودواحدمذكردپاره هاء استعمالوی.اودجمع مذكردپاره هاؤم لكه هاؤم اقرؤواكتابيه.اودجمع مونث دپاره هاؤن استعمالوی.

**فائده** : اسماء افعال وضع شوی دی دپاره داختصارلكه رويدامذكر ومونث اوواحدتثنيه دجمع دپاره وضع شوی دی اواستعماليږی په خلاف دامهل باندے.

**فائده** : داستعجاب لپاره لکه هیهات هیهات لماتوعدون دامعنی دبعُدنه نه حاصلیده

**فائده** : عـمـل داسماء افعال په دوه قسمه دے:١ .عمل رفع په مابعدکښ ٢ .نصب په مابعد کښ بنابرمفعولیت اوهغه اسماء افعال ماسوادد ے دریونه دی: مثلارویداوغیره وغیره

**فائده** : اسـمـاء افـعـال چه په مـعـنـی دکوم فعل دهغه عمل به کوی لکن په فعل باندے مـعـمـول پـه بـعض اوقات کښ مقدم کیدے شی اوپه اسماء افعال بطاندے معمول نشی مقدم کیـدے دامذهب دجمهورودے امام کساء وائی تقدیم جائزدے دمعمول په اسماء افعال باندے دهغـے دپاره به عامل مقدره راویستلے شی مثال:کتاب الله علیکم کتاب الله علیکم معمول باندے بلکه علیکم بل مقدم مقدردے.

**دویم فرق** دادے چه اسماء افعال علامت دتذکیروتانیث،جمع،وتثنیه نه قبلوی.

**فائده** : په محل داعراب داسماء افعال کښ دری مذاهب دی:(١)لامحل لهامن الاعراب (٢) داسماء افعال محل اعراب بنابرابتدائیت دے اوفاعل ددوی قائمقام خبردے.
(٣) محل اعراب نصب بنابرمفعول مطلق دے دفعل مقدره دپاره (ایضاح النحو)

**فائده** : اسم فعل کچرے مشترك ووبین المعنین نودفعل په اعتبارسره استعمالولے شی مثلاحیهـل الثریده بمعنی ائت الثرید. اوکه حیهل په معنی داقبل سره وونوصله کښ به علی راځـی مثـلا حیهـل عـلی الخیر بمعنی اقبل علی الخیراوکه داشرع په معنی سره وومثلااذاذکر الصالحون فحیهل بعمر.(اوضح المسالك)

**فائده** : اسماء افعال مضاف نه واقع کیږی.

**فائده** : کـوم اسماء افعال چه په معنی دامرحاضرسره دی په جواب کښ به مضارع مجزوم راځـی کـچـرے واقـع شی نومجزوم به نه راځی مثلا مکانك دونك په دوی کښ جزأ اول به اسم فعـل وی اوجزء ثـانـی بـه پـه خپـل حـالـت وی مکان اسم فعل اوك ضمیرمجرورتاکید مرفوعا اومنصوبادواړه صحیح دی.تمت بحث اسماء افعال بعون الملك الجلال.

**فائده**:اسماء افعال په دوه قسمه دی (١)مشهورداکوم چه ذکرشو(٢)غیرمشهورلکه.....

---

**فصل** الاصوات کل اسم ............... کنخ لاناخة البعیر.

**سوال** : تـعـریف دے جامـع نـدے خارج شـوترینه هغه اصوات چه جاری کیږی په لسان

دحیواناتو او طیوروباندے هغه ئے دلته ولے ذکرنکړل؟

**جواب:** داصوات نه مراد دلته هغه اصوات چه جاری په لسان انسان باندے.

**سوال:** زید،عمر، بکرته اصوات اووایه ځکه داپه لسان دانسان باندے جاری کیږی.

**جواب:** اصوات هغه دی چه وضع پکښ نه وی اوپه دے کښ وضعه ده.

**سوال:** ستادتعریف نه واها اوصه اومه خارج شو.

**جواب:** اصوات هغه دی چه باقی به وی په صوتیت باندے اودوی داسے ندی.واهانقل شوے دے دصوتیت نه مصدریت ته اوصه اومه نقل شوی دی دصوتیت نه مصدریت ته نه اسم فعل ته چه په معنی داسکت اوامنع سره دی.

**سوال:** وی او وح اصوات دی اودلته ذکرنشو.

**جواب:** دلته ئے بعض ذکرکړی دی په تعریف کښ اومطلقاتعریف نه کوی.

**سوال:** علت دبناء په اصوات کښ څه دے؟

**جواب:** عدم ترکیب دے دوی په ترکیب کښ نه واقع کیږی اوکه واقع وی مثلازیدٌغاق یاکتبت غاق نوداحکایة دی.




**فصل المرکبات وهوك اسم الخ.** داشپږم فصل دے پدے کښ بیان دمرکباتو کوی کوم چه معدوددی داسماء مبنیونه.

**سوال:** المرکبات مبتدأده اوکل اسم خبردے دلته حمل دکل اسم په مبتدا باندے

صحيح ندے ځکه لازميږی حمل دواحدپه متعددباندے. **جواب۱ :** په المركبات كښې الف لام جنسی دے پدے سره دجمعيت معنی ختم شوه ده جنس مراددے نو حمل صحيح دے.
**جواب۲ :** المركبات مضاف اليه دفصل دے پدے اعتبارسره چه هغه مضاف اليه دهذامحذوف دے تقديردعبارت دارنګه شو هذافصل المركبات هذامبتدافصل مضاف المركبات مضاف اليه مضاف سره دمضاف اليه نه خبرشو دهذامبتداء سره دخبرنه جمله اسميه اوكل اسم مبتداده اومابعدورلره خبردے لهذالايردمايرد. **سوال :.** كلمتين مصنف اووے نو اسمين ئے ولے اونه وے؟ **جواب :** ددے دپاره چه په مركبات كښې هغه مركب داخل شی چه مركب وی داسم اوفعل نه لكه حضر موت،يابخت نصردارنګه هغه مركب پكښې داخل شی چه اول جزدهغه اسم وی دويم جزء صوت وی لكه سيبويه راهويه.
**فائده :** دا قيد چه ليست بينهمانسبت پدے سره خارج شوتابط شرا اوعبدالله كله چه داعلم اوګرځی دچادپاره ځكه په تابت شراكښې دمخكښې دعلميت نه نسب اسنادی وواوپه عبدالله كښې مخكښې دعلميت نه نسبت اضافی وو. **سوال :** تابط شرامركب دے اودمبنياتونه دے نوداولے خارج شو؟ **جواب :** دلته بيان دهغه مركب دے چه دهغه سبب دبناء تركيب وی اودلته دبناء سبب تركيب ندے. **فان تضمن الثانی حرفا.** پدے عبارت سره تفصيل دمركباتوكوی اوحكم بيانوی كچرے دمركب دويم جزأ متضمن ووحرف لره برابره خبره ده كه دغه حرف حرف عاطف وو اوكه بل حرف وو لكه احدعشرنو مبنی به وی جزئين په فتحه باندے هرچه دجزاول علت دبناء دده ځكه اخردده واسطه راغلے دے اواجزاء داعراب په وسط كښې جائزندی ځكه محل داعراب اخردكلمے وی.اوهرچه جزأثانی دے نوعلت دبناء دهغه تضمن دے حرف لره ځكه داحدعشرنه ترتسعه عشرپورے په اصل كښې احدوعشرووترتسعه عشرپورے لكن پدے اثناعشرددے قاعدے نه مستثنی دے اول جزأدده معرب دے ځكه دده مشابهت دے تثنيه سره په سقوط دنون كښې اوتثنيه معرب وی نوداهم معرب شه.اوجزء ثانی پشان داحدعشرمبنی دے. **وان لم يتضمن الثانی تاغيرمنصرف كبعلبك.**

اوكچرے دمركب دويم جزمتضمن حرف لره نه وو نوپدے كښې لغات اربعه دی :

پدے كښې افصح لغات اول جزمبنی برفتحه اوثانی معرب په اعراب دغيرمنصرف سره.

مثال جاء نی بعلبك رأيت بعلبك مررت ببعلبك اول جزء دد ے مبنی دے دلیل کمامرّ.
اودویـم جـزمـعـرب دے ځـکه متضمن حرف لره ندے اوغیرمنصرف دے جزء دے ثانی ځکه دوه سببین پکښی موجوددی:(۱).علمیت(۲).ترکیب.
(۲).لـغـت اول جزمـضاف اودویم مضاف الیه غیرمنصرف دواړه جزئین معرب دی مثال جاء نی بـعلبك رئيت بعلبك مررت ببعلبك (۳):لـغـت .داول جزء اعراب په اعتباردعامل سره دویم جزء همیشه منصرف مضاف الیه مجرور جاء نی بعلبك رئيت بعلبك مررت ببعلبك
۴:لغت دواړه جزئین مبنی برفتحه پشان داحدعشرلوجے دمشابهت نه.

مرکب امتزاجی

| مرکب بنائی، یامرکب تعدادی احدعشرتاتسعة عشر حکم جزئین مبنی برفتحه | مرکب صوتی سیبویه حکم اول جزء مبنی برفتحه، جزء ثانی مبنی برکسره. | مرکب منع صرف یامزجی بعلبك ،معدیکرب حکم لغات اربعه. |
|---|---|---|

اقسام مرکبات مطلقا(۱۰)



**فصل الكنايات هی اسماء تدل الخ.**

كنايات جمع دكنايه ده اوكنايه مصدردے معنى ددے ديوشى نه تعبيركول دپاره ديوغرض داغرض پـداسـے الفاظوسره چه په دلالت كښ صريح نه وى لكن دلته معنى مصدرى مرادنده بـلـكـه حاصل بالمصدرمراددے اى مايكنى به اودلته بعضى كنايه مراددى چه مبنى دى ورنه بـعـض كـنـايـه مـعـرب وى لـكـه فـلان وفـلانة داكـنـايـه دى داعـلام نه اسم كنايه دلالت كوى په عددمبهم باندے لكه كم وكذاداداعدادونه كنايه دى.

ياپه مبهم كلام دلالت كوى لكه كيت وذيت لكن اكثراستعمال ددوى په واوعاطفه سره وى لكه سمعت كيت وذيت بينى وبين فلان ذيت وذيت. حركت ددوى دتا.ضمه.فتحه .كسره درى واړه صحيح دى.

### علت دبناء داسماء كنايه

**كم** : په دوه قسمه دے:(۱)كم استفهاميه(۲).كم خبريه كم استفهاميه متضمن دے همزے داستفهام لره ددے وجينے نه مبنى دے ياوضع ددے پشان دحرف ده اوهرچه كم خبريه دے دامحمول دے په كم اسفهاميه باندے.

**كذا** : مركب دے دكاف تشبيه نه اوذااسم اشاره نه قبل التركيب دامبنى وونوبعد التركيب هم په هغه بناء باندے پاتے دے.

**كيت وذيت** : په ځاے دجمع واقع كيږى اودصاحب مفصل په نزدباندے جمع دمبنى الاصل نه ده ددے وجينه دوى مبنى دى.

**اعلم ان كم على قسمين.** دكم خبريه اوكم استفهاميه په يوڅوځيزونوكښ اشتراك دے اوپه يوڅوځيزونوكښ افتراق دے.

## وجوه اشتراك

(۱) دكم خبريه اوكم استفهاميه په تميزباندے من جاره بيانيه داخليږى مثال دكم خبريه كم من مال انفقته مثال دكم استفهاميه كم من رجل لقيته فرق په اعتباردقرينے سره وى.

(۲) په وجود دقرينے سره تميزددواړوحذف كيدے شى مثال كم مالك ، دلته دينارا محذوف دے اصل عبارت كم دينارامالك دامثال دكم استفهاميه دے.اوكم ضربت په اصل كښ كم

ضربۃ ضربت دامثال دکم خبریه دے قرینه په مثال اول کښ دخول دکم استفهامیه دے په معرفه باندے اوحالانکه کم استفهامیه په نکره داخلیږی نو معلومه شوه چه تمیز محذوف دے.اوقرینه په مثال ثانی کښ دخول دکم خبریه دے په فعل باندے اوحالانکه کم په فعل نه داخلیږی نومعلومه شوه چه تمیز محذوف دے.

(۳) کم خبریه اواستفهامیه دواړه تقاضا دصدارت کوی.

(۴) دواړه مرفوع محلا اومنصوب محلا اومجرورمحلا واقع کیږی.

## وجوه دافتراق

(۱) کم خبریه راځی دپاره دانشاء الکثیراوکم استفهامیه راځی دپاره دای عدد.

(۲) دکم خبریه عدد راځی مفردمجرورکم مال انفقته اوکله راځی جمع مجرور کم رجال لقیته اوکم استفهامیه تمیزراځی مفردمنصوب مثال کم رجلا عندك.

(۳) دکم خبریه نه روستو صیغه دمتکلم راځی اودکم استفهامیه نه روستو صیغه دمخاطب راځی. (۴) دکم خبریه تمیزداسماء اعدادونه په دوه قسمه راځی:۱ .دعدداقل تمیز پشان دجمع مجرور.۲- دعدداکثردتمیزپشان مفردمجرور.

اودکم استفهامیه تمیزفقط دعدداوسط پشان راځی مفردمنصوب و التفصیل فی المطولات.

**قوله واعلم ان کم فی الوجهین.**

پدے عبارت سره مصنفؒ دکم اعراب ذکرکوی.کم خبریه اواستفهامیه مرفوعا ومنصوبا ومجرورامحلاواقع کیږی په ترکیب کښ.

(۱)مرفوع محلاددے دپاره قاعده اوقانون دادے چه په کم باندے حرف جاره نه وی داخل اونه به مضاف پرے داخلیږی په مابعدفعل کښ استعدادنه وی چه پده کښ عمل اوکړی پدے صورتین کښ به کم وی مرفوع محلاوی.یامبتدأ.( ۲)-یاخبربه وی ددے مداربه په تمیزوی که تمیزظرف نه وونو مرفوع محلا مبتدابه وی مثال کم رجلااخوك وکم رجلاضربته. اوکه تمیزظرف وونو مرفوع محلاخبربه وی مثال کم یوماسفرك وکم شهرصومی. **۲.منصوب محلا** : هرکله چه دکم نه روستوفعل یاشبه فعل وو اوپه دوی کښ دعمل استعدادوونو کم به همیشه منصوب محلاوی اوددے دری صورتونه دی:

(۱)- مفعول به(۲). مفعول فيه(۳). مفعول مطلق. ددے دامدارهم په تميزباندے به وی كه تميزظرف ووّمثال كم يوماسرت وكم يوم صمت پدے صورتٌ كښ مفعول فيه به وی.

اوكه تميز مصدروونو مفعول مطلق به وی مثال كم ضربةً ضربت اوكم ضربةٍ ضربت اوكه تميزنه ظرف وواونه مصدروونو مفعول به به وی مثال كم رجلا ضربت وكم غلام ملكتُ.

مجرورمحلا : هركله چه پدے كښ حرف جرداخل شويامضاف مثال بكم رجلا مررتَ وعلى كم رجلا حكمتَ مثال مضاف غلام كم رجلا ضربت اوغلام كم رجل سلبتُ.

## تمرين لبحث اسماء الكنايات

| | |
|---|---|
| كم من فئة قليلة غلبت فئة كثيرة باذن الله | كم من ملك فى السموات |
| كم اهلكناقبلهم من القرون | كم اتينٰهم من اية بينة |
| كذادرهماعندى | كم مال انفقت، كم شهرصمت |

**فصل** الظروف المبنية على اقسام .

ظروف په يوڅو قسمه دی : (۱) ظروف مقطوع الاضافت مثال بعد .قبل .فوق ددوی مضاف اليه حذف كيدیے شی لكه للّٰه الامر من قبل ومن بعد چه اصل ددے من قبل كل شیء ومن بعد كل شیء دی هر كله چه مضاف اليه حذف شواومضاف قائم شو په ځائے دمضاف اليه باندے نو انتهاء دكلام پرے اوشوه نوددے وجے نه دوی ته ظروف غايات هم وئيلے شی .

**تفصيل** : ددے ظروفو څلور حالات دی

(۱) مضاف اليه ددے به مذكور وی .(۲)مضاف اليه ددے به محذوف وی په حذف نسيامنسيا.

(۳) مضاف اليه ددے به محذوف وی لكن په نيت كښ به معنی اولفظ دواړه باقی وی . حكم ددے دريوواړودادے چه دا به پدے حالاتوكښ ظروف غايات معرب وی .

(۴) چه مضاف اليه محذوف وی او په نيت كښ ئيے صرف معنی مراد اوباقی وی فقط .حكم ددے صورت دادے چه پدے حالت كښ به ظروف غايات مبنی وی په ضمے سره ځكه چه ددے مشابهت دے دحروفوسره په احتياج كښ اومبنی به په ضمے سره ځكه وی چه جبيره شی ددے دمافات دپاره (يعنی چه كوم مضاف اليه ترينه حذف شوے وو)

---

**قوله منها حيث** : په حيث كښ دوه مذهبه دی : (۱) جمهور. (۲) اخفش.

(۱) جـمـهـورنـحـــاة وائی دظروف مکانیه نه دے. (۲)اخفش.په دواړوکښې استعمالیږی په ظروف مکانیه کښې زیات اوپه ظروف زمانیه کښې لږ.
د حیث پـه اضافت کښې هم دوه مذهبه دی: جمهورنحات وائی اکثراضافت دده جملے ته کیږی مثـال : سنستدرجهم من حیث لایعلمون علت البناء حیث دحیث اضافت جملے ته کیږی لکن پـه حقیقت کـښې اضافت دده مصدرته کیږی کوم چه دده جملے نه اغستل کیږی اوداخبره ظاهره ده چـه هغه مصدرذکرنه وی نو حیث دغایات سره مشابه شواوهغه مبنی وونو حیث هم مبنی شو. ۲- بعض نحات وائی اضافت دده مفردته کیږی لکه په دے شعرکښې راغلی دی :

امـــاتـــری حیـــث سهیـــل طـــالـعـــا نـجـم یـضـیـئ کـالشهـاب سـاطـعـا

ای مکان سهیل لٰکن کله چه دده اضافت مفردته اوشی نوپه بناء اواعراب دده کښې اختلاف دے بعض نحات وائی چه پدے صورت کښې به معرب وی ځکه علت دبناء چه اضافت الی الجمله ووهغـه فـوت شـواو بـعـض نـحات وائی چه پدے صورت کښې به مبنی وی اودامشهورمذهب دے ځکه اضافت دده مفردته شاذاوقلیل دے اودے لره اعتبارنشته دے .

**قوله ومنها اذا وهی الخ.** اذا دزمانیـه مستقبل دپاره وضع دے اګرچه داخل په ماضی وی مثال اذاجاء نـصـرالله دلته ماضی په معنی دمضارع سره ده اوکله به داخل وی په ماضی اوپه معنی دمستـقـبـل بـه نه وی مثال حتی اذابلغ مغرب الشمس.علت دبناء په اذاکښې پشان دظروف غایات ده جملے ته مضاف کیږی.

**وقـدیکون للمفاجاة.** مـفـاجـات صیـغـه دمـصدرده من باب المفاعله کله چه اذادمفاجات دپـاره مستـعـمـل شی نـودشرط مـعـنـی بـه پـکـښې نـه وی دده وجینـه دده نـه روستوراتلل دمبتدأمختاردی دپاره دفرق په مابین داذاشرطیه اواذامفاجاتیه کښې.

**قـوله ومنهااذوهی للماضی الخ.** اذ دزمـانـے ماضی دپاره وضع دے اګرچه په مستقبل باندے داخل شوے وی اوکله په زمانے ماضی پورے خاص وی علت دبناء داذ وضع دده پشان دوضع دحـرف ده ددے وجـے نـه مبنی دے اوفرق داذا اواذ دادے چه په اذاکښې معنی دشرط ده اوپه اذکښې مـعـنـی دشرط نشـتـه دے ددے وجینه روستوداذنه جمله اسمیه اوجمله فعلیه دواړه راځی بغیردمختاروالی دیوے جملے نه.

**قوله منها اين و انىٰ للمكان و انىّ تقم اقم.** اين او انى دظرف مكان دپاره راځى ۲.داستفهام دپاره ۳.دشرط دپاره راځى اوانى په معنى دكيف سره هم راځى مثال: فأتوا حرثكم انى شئتم اى كيف شئتم.مثال دمكان انىّ لك هذا.

**قوله ومنها متى للزمان شرطا او استفهاما متى تسافر اسافر.**

هركله چه متى دپاره دشرط او استفهام راځى نو متضمن شو حرف شرط لره اوحرف استفهام لره نو مبنى شو مثال دشرط متى تصم اصم اومثال داستفهام متى تسافر اسافر داعبارت چه للزمان جارمجرور صفت دمتى دے ياخبردمبتدامحذوفے دے چه هودے اوشرطا اواستفهاما منصوب بناء برتميزدى يامنصوب بنابرحال دى.

**قوله ومنها كيف للاستفهام حالاً نحو كيف انت فى اىّ حال انت.**

علت دبناپه كيف كښ تضمن دے كيف حرف استفهام لره.بله معنى دكيف استعمال دده دے په شرط كښ په نزددبصريانو باندے لكن مطلقانه بلكه روستوبه ترينه مازائده راغلے وى لكه كيف ماتجلس اجلس اوبه نزددكوفيانو مطلقا مستعمليږى په معنى دشرط لكه كيف تجلس اجلس لكن داماتن دوجے دقلت اوشذوذنه ندے ذكركړے.

**قوله ومنها ايّان للزمان استفهاما نحو ايان يوم الدين علة البناء فى ايان ظاهر.**

**فرق دايان اومتى:** ايان صرف دزمانه مستقبل دپاره راځى په امورعظام كښ مستعمليږى اوسوال پرے كيږى لكه ايان يوم الدين.

متى راځى د زمانے عامے دپاره ماضى وى اوكه مستقبل وى اوكه امورعظامه وى اوكه نه وى نودمتى استعمال پكښ كيږى.

**قوله ومنها مذو منذ بمعنى اول المدة ان صلح جوابا الخ.**

مذ اومنذپه دوه قسمه دى :۱-حرفى ۲.اسمى.فرق دادے حرفى به هله وى چه روستوترينه اسم مجرورواقع شى اواسمى به هله وى روستو ترينه اسم مرفوع واقع شى مثال مارئيته مذاومنذ يوم الجمعه علت د بناء پكښ دا دے چه مذاومنذ اسمى پشان دمذاومنذحرفى دى اوحرفى مبنى دى نو اسمى هم مبنى شو استعمال دمذاومنذپه كلام دعربوكښ په دوه طريقوسره كيږى.

١- : بمعنى اول المده٢- بمعنى جميع المده.١- بمعنى اول المده سره مستعمليږي كله چه واقع شي په جواب دسوال د سائل كښ چه سوال شوے وي په متى سره مثال مارئيت زيدا جواب مارئيته مذاومنذيوم الجمعه يعني اول مدتي عدم رؤيتي اياه يوم الجمعه.

پدے معنى سره به ددينه روستو مفردواقع كيږي لكه صاحب كافيه وائي فيليها الفرد داددے دپاره چه اوله مده دزمانے راځي شئ واحد نه شيئين اونه اشياء.

**سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے قول چه مارئيته مذ اليومان الذان صاحبناه فيها.

**جواب**: مفردعام دے حقيقتاوي اوكه حكماوي دلته مفردحكمي دے چه لحاظ دوقت واحده شوے دے. ٢- وبمعنى جميع المده راځي چه كله واقع شوے وي په جواب دوسوال دسائل كښ چه سائل سوال كړے وي په كم سره.لكن پدے معنى سره به روستودينه عددمتصله واقع كيږي مثال كم مده.مارئيت زيداجواب مارئيته مذيومان ومنذيومان اي جميع مدتي الخ

**ومنهالدى ولدن بمعنى عند نحو المال لديك.**

ترجمه : بل قسم دظروف مبنيونه لدى اولدن دے اودادواړه په معنى دعندسره دي لكه وئيلے شي المال لديك ددے معنى المال عندك لكن دلدى اولدن دعندسره په استعمال كښ فرق دے كمافي الكتب اوپدے لدى اولدن كښ نورلغات هم راغلي دي چه دامجموعه ټول اته دي :

(١) لدى : په الف مقصوره سره په اخردده كښ.

(٢) لدن : په فتحه دلام اوضمه ددال اوسكون دنون سره.

(٣) لَدُنِ : بفتح اللام وسكون الدال مع كسره النون.

(۴) لدِنْ : بفتح اللام وكسر الدال مع سكون النون.

(۵)لَدَنْ : بفتح اللام و الدال وسكون النون. (٦) لَدْ : بفتح اللام وسكون الدال.

(٧) لُدْ : بضم اللام وسكون الدال. (٨) لَدُ : بفتح اللام وضم الدال.

**علت البناء** : بعض د دوى نه داسي دي چه وضع دهغوى پشان دوضع دحرف ده نولوجے دمناسبت دحرف نه چه مبني الاصل دے مبني دي مثال لكه لدنودادوه حرفيزدے پشان دمن حرف جاره اودانوريده حمل دي طرداً للباب.او استعمال دلدى اوددے نورولغاتوپه كلام دعربوكښ داسے چه دوى به مابعدته مضاف وي اواسم واقع بعدددوى نه مجروربه وي لكه المال لدى

زید.اوهرچه لدن فقط هرکله چه دده نه بعدغدوةً راشی نولدن ورته نصب ورکوی.

**دلیل اول** : داعـمـل دده سـمـاعـی دے.دلیـل۲:دلـدن مشابه دے دتنوین دزیتاسره او زیتا مابعدته نصب ورکوی بنابرتمیز نولدن به هم نصب ورکوی مابعدته لوجے دمشابهت نه.

**دریم دلیل** : دا خاصـه دلـدن ده لکه دبعضو کلماتو څه خواص وی لکن پدے شرط چه روستوترینه غدوه راشي ورنه مابعدته به مضاف وی اوجریه ورکوی لکه بکرة اوسحرة کښ.

ومنهاقط للماضی المنفی نحومارأیته قط.

**ترجمه**:بل قسم دظروف مبنیه نه قط دے اودارائحي دپاره دماضی منفی لکه مارأیته قط.

**تشریح** :. پـدے کـښ ډیرلغات دی:(۱) قَطُّ: بـفـتـح الـقـاف وضـم الـطـاء المشدده دالغت مشهوردے.(۲)قُطُّ : بضم القاف و الطاء المشددة.(۳) قَـطُ: بـفـتـح القاف مع سکون الطاء المخففة.(۴) قُطُ: بضم القاف و الطاء المخففة.(۵) قُـطْ: بـضـم الـقـاف مع سکون الطاء

**عـلـتُ البناء** : بـعـض نـحـات وائـی چـه طاء په مخففه ده وضع ددوی پشان دوضع دحرف ده لـوجـے دمـنـاسـبـت نـه دحـرف سـره مبـنـی شواودانورلغات پرے حمل دی طردالللباب. **سوال** : لـلماضی المنفی دابه یاصفت دفعل وائی اویابه صفت دزمانے دپاره وائی دواړه باطل دی هرچه بـطـلان داول ځـکـه مـعـنـی بـه داشی چه قط وضع دپاره دفعل ماضی دے نوشواسم فعل اونه ظرف اوحال دادے چـه داداسـمـاء ظرف نـه دے اوهـرچـه بـطـلان دثانی نومنفی ورته صفت نه صحیح کیـږی ځـکه زمانه ماضی خومنفی نده بلکه موجوده ده معنی به داسے شی چه قط دپاره دزمانے ماضی منفی دے یعنی چه زمانه ماضی موجود نده. **جواب** : للماضی صفت دفـعـل وائـیـم لـکـن مـتـعـلـق ددے یستعمل دے نه وضع معنی داشوه چه دا قط مستعملیږی دپاره دفـعـل مـاضـی مـنـفـی اودانـه چـه وضـع شـوے دے دماضی منفی دپاره مثال : مارأیته قط:دامارأیت ماضی منفی ده ځکه مانافیه پرے داخل دے اوقط ورته ظرف دے.

ومنها عوض للمستقبل المنفی نحولااضربه عوض.

ترجمه : اوبل قسم دظروف مبنیه نه عوض دے اودامستعملیږی دمستقبل منفی دپاره.

**تشریح** : عـوض مـسـتـعـمـلـیـږی دپاره دمستـقـبـل منفی مثال لکه اضربه عوض داعوض ظـرف دے دپـاره دلااضربـه اودامستـقـبـل مـنـفـی دے نـوغـرض دعوض استغراق دنفی دے

تولوازمنو اتیولره. **استعمال** : دعوض په کلام دعربو کښې په دوه طریقوسره دے:مبنی۲ .معرب مبنی به هله وی مضاف الیه حذف وی په لفظ کښې اومنوی وی په نیت کښې.معرب به هله وی مضاف الیه ذکروی اویا حذف وی په حذف نسیامنسیاسره نوحکم دعوض پشان دحکم دغایاتودے په اعراب اوبناء کښې.

**واعلم انه اذااضیف الظروف الی الجمله اوالی اذجازبناؤها علی الفتح الخ.**

**ترجمه** : پوهـ شه چه یقیناهرکله چه اضافت دظروف اوشی جملے ته اویااذته نوبناددوی اواعراب ددوی دواړه جائزدی لکن بناپه فتح سره.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شومصنف دهغه ظروفونه چه بناء دهغے واجب وه نوشروع ئے اوکړه په هغه ظروفوکښې چه بنادهغے جائزوی پس مراد د الظروف نه ظروف معربه دی مثلا یوم اوحین پدے کښې دوه اعتباره دی ۱ .اعتباردمعرب۲ .اعتباردبناء.اعتباردمعرب اواعراب په هغه وخت کښې چه ددوی اضافتً جملے ته اوشی اویااذته اوشی نواضافت ددوی عارضی دے نوکسب دبناء نه کوی دمضاف الیه جملے نه اوددوی اضافت اصل دے مفردته اومفردمعرب وی نودوی به هم معرب وی. اواعتباردبنا ددوی هرکله چه دوی مضاف شی جملے ته اومضاف شی اذته اواذمضاف وی جملے ته اوجمله خومبنی ده نودوی هم بناء کسب کړه په اضافت سره.

**حاصل** : جمله من حیث هیٰ هی یعنی چه واقع نه وی په محل دمفردکښې مبنی وی حتی چه جارالله الزمحشری داجمله دمبنی اصل نه شمارلے ده.مثال دهغه ظروفو چه مضاف وی جملے ته لکه یوم شوپدے قول دالله‌تعالی کښې هذایوم ینفع الصادقین صدقهم دایوم ظرف معرب دے اوروستوجملے ته مضاف دے نومبنی برفتحه دے.اومثال دهغه ظروفو چه مضاف وی اذته اواذمضاف دے جملے ته نوتقدیرداسے شو:یوم اذاکان کذااوحین اذاکان کذامضاف الیه چه کان کذا دے حذف شوددے په عوض کښې تنوین راوړے شو.

**وکذالك مثل وغیرمع ماوان وانّ الخ.** پشان دیوم اوحین مثل وغیره دی چه مااوان اوانّ ورسره ذکروی.

**تشریح** :. حکم دمثل اودغیرچه مااوانُ مفتوحه مخففه اویاانّ مشدده مفتوحه الهمزه ورسره ذکروی پشان دیوم اوحین دی په اعراب اوبناء کښې. هرچه اعتباردبناپه مثل اوغیرکښې

ځکـه دوی مشابـه دی دبـعض ظروفوسره چه اذ اواذا اوحیث دی چه څنګه دوی لازم الاضافت دی نـودغـه شان مثـل اوغیـرلازم الاضـافت دی.لکن فرق دادے چه اذ اواذااوحیث مبنی دی په طـریقـه دوجـوب سره ځکه دوی لازم الاضافت دی جمله ته اوهرچه مثـل اوغیـردی نوددوی بناء جائـزی ده ځـکـه ددوی اضافت لازم دے مفردته ځکه چه ددوی مضاف الیه به صورتاجمله وی اوحـقیـقتـابـه مـفـردوی نـوددے وجیـنه ددوی مشابهت دظروف مذکوره سره بعیددے نومبنی شوپه طـریـقـے دجـوازسره.اووجـه همدغه ده چه دوی مضاف کیږی جملے ته نو هغه دے په مـامـصـدریه سره اویاپه انْ مخففه اویاپه انّ مثقله سره مصدره وی نوداجمله به صورتاجمله وی اوتـاویـلابـه مـفـردوی پدے سره مشابهت زیاتیږی دمثل اودغیردظروف مذکورسره لکن بیاهم دامشـابهت بعیده دے.حاصل داشو:بناء ددوی دوجی دمشابهت نه شوه دظروفوسره چه اذا واذا اوحیث دی اواعراب ددوی ددے وجینه دے چه دااسماء دی اواصل په اسماء کښی اعراب دے.

**ومنها امس بالکسرعند اهل الحجاز.**

**بل قسم دظروف مبنیه نه امس دے په کسرے دسین سره اوداپه مذهب داهل حجازباندے.**

**تشریح** : پـه امـسِ کـښی دوه مـذهبـه دی:(۱).اهـل حـجاز(۲).بنی تمیم وغیره.اهل حـجازوائـی امس مبنی دے لکه دامذهب مصنف مختارکړے دے اوصاحب نحو میرامس په مبنیـاتـو کـښی شمارلے دے.اوپه مذهب دبنی تمیم وغیره باندے امس معرب دے اودامذهب ابـن حـاجب وغیره غوره کړے دے ددے وجینه ذکردامس په مبنیاتوکښی ندے کړے په بحث دظروفو کښی مثال نصرتكِ امسِ. نقشه:


ظروف مبنيه مع وجه الحصر
الزمانيه
المكانيه
مخصوص بالزمان
غيرمخصوص بالزمان
مخصوص مع الماضى
مع المضارع
مع استغراق
محتمل لمعنى اخر
غيرمحتمل
استغراق ماضى
استغراق مستقبل
اذ
نحوامس نحو
منفى قط،
عوض.
مفاجات
ظرفيت
كماقتلت نفسا بالامس
حال
مستقبل
اذاقبل زيدٌ
واذكراذانتم قليلٌ.
نحو كيف انت
اذامحتمل لمعنين
اى فى اى حال انت
مفاجات
ظرفيت
خرجت فاذا السبع واقف
اذاجاء نصرالله
غيرمحتمل لمعنى اخر
محتمل
نحومذ،منذ
محتمل لمعنى واحده
محتمل لمعنين
نحوايان برائے استفهام ، ١ .زمان ٢ . مكان
١ .استفهام ٢ . شرط
ايان يوم الدين
١ .قبل وبعدبرائے مكان
(متى)
قبلك مسجد وبعدك مدرسة
زمانا:
مكانا
٢ .وبراى زمان قبل كل زمان .بعد الصيف
متى تؤدى الصلاة
متى تجلس اجلس
غيرمحتمل
محتمل لمعنى اخر
(١)لدىٰ لدن (٢)حيث
اين
انّٰى
(٣)تحت(٤)فوق
استفهاما
شرطا
استفهاما
شرطا
(٥)قدام(٦)خلف مثاله اين المفر، اين تجلس اجلس،
انّى يكون لى ولد
انى تجلس اجلس.

## التمرين لبحث الظروف

| | |
|---|---|
| اذقال ربك | اذ السماء انفطرت |
| اذاجاء نصرالله | وماانزل من قبلك |
| لله الامرمن قبل ومن بعد | كيف تكفرون |
| متى نصرالله | ايّان يوم الدين |
| ومن حيث خرجت | انّى لك هذا |
| اينماتولوافثم وجه الله | مالك يوم الدين |
| نسلخ منها النهار | من لدنه اجراعظيما |
| واذكروا اذ انتم قليل | اين المفر |

## الخاتمة

في سائراحكام الاسم الخ.

ترجمه: داخاتمه ده په بيان دباقى احكامو داسم اولواحق دده كښى په غيرداعراب اوبناء نه اوپدے كښى لس فصول دى.

**تشريح**: دبابينونه چه باب دمعرب اوباب دمبنى وو نوشروع ئے اوكړه په خاتمه كښى چه پدے كښى هغه احكام بيانوى چه مشترك وى بين المعرب و المبنى اوپدے خاتمه كښى لس۱۰فصلونه دى: (۱) فصل اول په تقسيم داسم كښى معرفے اونكرے ته.

(۲) فصل په بيان د اسماء العددكښى.

(۳) فصل په بيان د تقسيم داسم كښى الى المذكرو المونث.

(۴) فصل په بيان د تعريف دتثنيه كښى.

(۵) فصل په بيان دتعريف دجمع كښى.(٦) فصل په بيان دمصدركښى.

(۷) فصل په بيان داسم فاعل كښى. (۸) فصل په بيان داسم مفعول كښى.

(۹) فصل په بيان دصفت مشبه كښى.(۱۰) فصل په بيان داسم تفضيل كښى.

سوال: سائرپه معنى دجمع سره راځى اودلته په خاتمه كښى ټول احكام دجمع نه بيانيږى؟

جواب: سائرپه معنى دباقى سره دے نه په معنى دجميع سره.

سوال : بیاغیرالاعراب ... ذکرکولوته ضرورت رانغــے ځکه دادماقبل نه معلوم شو
جواب : دائــے ذکرکړے دے دپاره درعـایت دمبتدی. سـوال : پـه فیهـاکښې دظـرف دپاره هاضمیر راجع دے خاتمه ته نوخاتمه ظرف شواوفصول مظروف شواوداخاتمه بعینه فصول دی نولازم شوظرفیت دشيء دپاره د نفس خپل اوداباطل دے. جـواب : اول په کلام دمصنف کښې ظرفیت موجوددے ځکه دافیهافصول مؤول دے په فهی فصول سره نو هی ضمیرراجع دے خاتمه ته چه مبتداده اوفصول خبردئے اومبتدأ اوخبر متحدان وی.

**دویم جواب** : دمـصـنف پـه کـلام کـښې ظـرفـیـت مـوجوددے اوپه ظاهریاندے حمل دے اوتـاویـل پـکـښې نشتـه دے لکن بیاهم اتحادموجوددے په مابین دظرف اومظروف کښې بلکه مـغـایـرت اعتبـاری پـکـښې مـوجـوددے پـدے شان سـره چـه فـصـول په هیئت اجتماعی سره واغستـے شـی نـوداخاتمه ده اوظرف دے اوچه په هیئت انفرادی سره واغستـے شی نو مظروف دے نواتحادپه مابین دظرف اومظروف کښې رانغـے.

**فصل** اعلم ان الاسم علی قسمین معرفة ونكرة.

ترجمه : پوهـ شه چه اسم په دوه قسمه دے یوه معرفه ده اوبله نکره ده .

**تشریح** : دافصل اول دے دهغه لسوفصولونه چه په تقسیم داسم کښې وو معرفه اونکره ته.
سوال : دلتـه تـقـسیـم داسـم مـعـرفـے اونکرے ته ولـے اوکړے شو؟ جواب : مـخـکښې په باب دمـعـرب اومبنی کښې ذکردمعرفـے اونکرے شوے وو مثلاپه بحث دمبتداء کښې وئیلے شوی وو چه اصـل پـه مبـتـداء کـښې تـعـریف دے اوهمدغه شان په بحث داضافت کښې وئیلے شوی ووچه اضافت معرفـے اوشی نواسم معرفه کیږی نودابحث سابقه مقتضی ووذکردمعرفـے اودنکرے ته چه دواړه ذکرشی. سوال : دا بحث به متصل په بحث دمعرب پورے ذکرکړے وے؟
جواب : پـه بـاب دمبـنـی کـښې مـضـمـرات اومبهمات ذکرووچه داقساموددمعرفـے نه دی نوددوی مـعـرفـت هم موقوف ووپه بحث دمعرفـے اونکرے پورے نوځکه ئے دباب دمبنی نه روستـوبـحـث دمـعـرفـے اودنکرے ذکرکړو. سوال : مـعـرفـه ولـے مـقدم شوه په نکره باندے؟جواب : معرفه اصل ده اوکثیرالاسعمال دهنوددے وجے نه مقدم کړے شوه په نکره باندے .

**المعرفة اسم وضع لشیء معین .**

**ترجمه :** معرفه یواسم دے چه وضع کړے شوے دے دپاره دمعین شے .

**تشریح :** هرکله چه مصنفؒ فارغ شودبیان داجمال نه نوشروع ئیے اوکړه په تفصیل کښ نواوس تعریف ذکرکوی دمعرفه نواوئیل ئیے المعرفة .

**فوائد قیودات :** لفظ اسم په تعریف کښ په منزله دفصل دے شامل دے مقصود اوغیر مقصود لره چه معرفه اونکره دی . اودا قول دمصنفؒ چه وضع لشیء معین نودافصل دے پدے سره دتعریف دمعرفه نه نکره خارجه شوه ځکه چه دهغے وضع دپاره دیوشی غیر معین وی

**وهی ستة اقسام :المضمرات،والاعلام،و المبهمات اعنی اسماء الاشارات والموصولات ، والمعرف باللام. :**

اودا معرفه په شپږقسمه ده چه یو دهغے نه مضمرات دی دویم اعلام دی اودریم مبهمات دی چه هغه اسماء اشارات اوموصولات دی اوڅلورم معرفه په الف لام سره ده .

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنفؒ اقسام دمعرفه ذکر کوی او هغه شپږاقسام دی چه اول دهغے نه مضمرات دی چه ددے تفصیل مخکښ په بحث دمبنی کښ تیر شوے دے سوال : مضمرات ولے مقدم کړے شول په نورو اقسامو دمعرفه باندے ؟ جواب : مضمرات اعرف المعارف دی نوددے وجے نه حقدار دتقدیم دی. دویم قسم اعلام دی ددے تعریف وروستوراځی.

دریم قسم مبهمات دی : اومراددمبهمات نه اسماء اشارات او اسماء موصولات دی .

**سوال :** اسماء اشارات اواسماء موصولات چه هرکله مبهمات شول نودوی شمارل په معرفه کښ اودمعرفے قسم ګرزول صحیح نه دی ځکه چه په مابین دابهام اوتعریف کښ منافات دے؟. **جواب :** ددے دوه جوابه دی : اول جواب دادے چه اسماء اشارات اواسماء موصولات مبهمدی په اعتباردوضع سره لیکن په اعتبار دداستعمال سره معین دی ځکه چه استعمال ددوی په امورو معینو کښ کیګی .

**دویم جواب** دادے چه اسماء اشارات بغیردمشارالیه نه اواسماء موصولات بغیر دصلے نه مبهمات دیاوهر کله چه مشارالیه داسمائاشارات سره اوصله دموصولات سره ذکر شی نوبیا

معین دی نو مبهمات چه دوی ته وائی نو داپه اعتباراول سره دے اودمعرفه داقسامونه ددے شمارل په دریم اعتبارسره دی . ... څلورم قسم دمعرفے نه هغه اسم دے چه معرف وی په الف لام سره لکن مراد دالف لام نه هغه الف لام دی چه دجنس دپاره وی اویا داستغراق دپاره وی اویادعهد خارجی دپاره وی ځکه چه پدے دریو اقسامودا لف لام سره تعریف حاصلیگی اوهر چه الف لام عهد ذهنی دی نو هغه مفید دتعریف نه دی . **سوال** : مصنفؒ داسے عبارت ولے اونه وئیلو چه اومادخله اللام ؟. **جواب** : ددے وجے نه اونه ویئلو چه پدے کښ بیا هغه اسم داخیلدل؛وچه الف لام پرے دتحسین دلفظ دپاره داخل شوی وی نه دحصول دتعریف دپاره .

**سوال**:.تعریف خو په میم سره هم حاصلیگی نو مصنفؒ هګه ولے ذکرنه کړلو؟ **جواب** : میم بدل رازی دالف لام نه نو معرفه په میم سره داخله شوه په معرفه باللام کښ نو ددے وجے نه مصنفؒ دا جدا قسم ونه ګرځولو.

---

**والمضاف الی احدها اضافة معنوية والمعرف بالنداء**

**ترجمه** : اوپنځم قسم داقسامو دمعرفے نه هغه اسم دے چه مضاف وی یو ددے مخکښ اقسامو دمعرفے ته په اضافت معنوی سره اوشپږم قسم معرفه په حرف ندا سره ده .

**تشریح** : مخکښ اقسام دمضمرات او اعلام اومبهمات اومعرف باللام وونو چه یو اسم مضاف شی یو ددے اقسامو ته نو هغه به هم معرفه کیږی دوجے دکسب داضافت دمضاف الیه نه .اومصنفؒ داضافت سرۀ قید دمعنویه اولګولودا احتراز دے دهغه اسم نه چه مضاف وی یوددے اقساموته په اضافت لفظی سره نوپدے سرۀ تعریف نه حاصلیږی.

**سوال** : لفظ دغیر اودمثل نه معرفه کیږی په اضافت سره معرفے ته **جواب** : دادوړه مثتسنٰی دی ددے قاعدے مذکورے نه ځکه چه دوی په ابهام کښ توغل کړے دے نودوی نه معرفه کیږی په اضافت سره معرفے ته . اوشپږم قسم هغه دے چه معرفه شوے وی په حرف نداء سره . **سوال** : یارجل خذ بیدی چه دا په قول داعمیٰ کښ واقع شی نو دا خوبیا هم نکره ده اوحال دا دئے چه حرف نداء ور باندے داخله شوے ده ؟ **جواب** : په حرف نداء سره نکره معرفه کیږی پدے شرط سره چه قصد دتعین ئیے متکلم کړے وی مثال لکه یارجل اوچه قصد یئے متکلم نه وی کړے دتعین نوبیانه معرفه کیږی په دخول دحرف ندا سره لکه یارجلا.الخ. **سوال** :

مصنفؒ مادخله حرف النداء ولے اونه وئیل؟ **جواب**: پدے کښں بیاپکښں هغه منادیٰ داخلیدله چه په ندیٰ سره متکلم قصد دتعین نه وی کړے ددے سوال جواب بعینه ماسبق دے.

**والعلم ماوضع لشیء معین لایتناول غیره بوضع واحد.**

**ترجمه**: علم هغه اسم معرفه ده چه وضع شوے وی دپاره دمعین شے چه نه به وی شامل غیرته په وضع واحده سره.

**تشریح**: پدے عبارت سره مصنفؒ تعریف دعلم ذکرکوی. **فوائد قیود**: ماوضع لشیء معین .داجنس دے شامل دے معرف اوغیرمعرف دواړوته. اودا قول چه لایتناول غیره الخ نوداپه فصل دے پدے سره باقی اقسام دمعرفے خارج شول ځکه چه هغه متناول دی غیر ته.

اومراد په علم سره مطفلق علم دی برابره خبره ده که منقول وی اوکه مرتجل وی مفردوی اوکه مرکب وی اسم محضه وی اوکه اسم لقب وی اوکه اسم کنیه وی اسم دذات دپاره وی اوکه دحدث دپاره وی اوکه اسم دوقت دپاره وی. **سوال**: اقسام دمعرفے خو ډیر وونوعلم ولے خاص شوپه تعریف سره؟ **جواب**: دمضمرات اومبهمات تعریف مخکښں شوے وواومعرف باللام اومعرف بالنداء مستغنی وودتعریف نه نو صرف علم پاتے شوچه هغه واضح هم نه وواوماسبق کښں یئے تعریف هم نه شوے نوځکه مصنفؒ دده تعریف اوکړلو،

**واعرف المعارف المضمرالمتکلم نحو اناونحن ثم المخاطب نحو انت ثم الغائب نحو هو الخ.**

**ترجمه**: په معرفه کښں ډیر اعرف هغه ضمیر دمتکلم دے لکه انا ونحن شوبیا ضمیر دمخاطب دے لکه انت شو بیاضمیر دغائب دے لکه هوشو الخ

**تشریح**: پدے عبارت سره مصنفؒ بیان کوی دمراتبو په مابین دمعارفو کښں پس اول اعرف ددوینه ضمیر دمتکلم دے ځکه چه دے دالتباس نه بعید دے.

**سوال**: اعرف صیغه داسم تفضیل ده نومعنیٰ داشوه هیڅ قسم التباس به په متکلم کښں نه راځی اوسره ددینه چه په متکلم کښں التباس راتلے شی مثلا چه دوه کسان من وراء الجداروی اوبو پکښں اوازاوکړی چه انا نومخاطب ته نه معلومیږی چه متکلم په دوی کښں کوم یو دے؟

**جواب**: دلته معنیٰ داعرف دا نه ده چه مالالبس فیه بلکه په معنی داقل اللبس سره دے

اوپه متکلم کښې التباس په نسبت دمخاطب اوغائب سره کم دے په **دویمه مرتبه** کښې اعرف ضمیردمخاطب دے ځکه چه پدے کښې وقوع دلبس قلیله ده. اوپه **دریمه مرتبه** کښې اعرف ضمیر دغائب دے ځکه پدے کښې التباس اواشتباه زیاته ده نو ځکه **دمخاطب اومتکلم نه کم** دے . او په **څلورمه مرتبه** کښې اعرف علم دے .اوپه **پنځمه مرتبه** کښې مبهمات دی اوپه **شپږمه مرتبه** کښې اعرف هغه معرفه باللام ده .اوپه **اومه مرتبه** کښې اعرف **هغه معرفه** باالنداء ده .اوهرچه مضاف دے نو په حکم دمضاف الیه کښې دے **سوال** : مصنفؒ بیان دتفاوت په مابین دمضمراتو کښې اوکړلواوپه باقی معارفو کښې یئے اونه کړلوددے څه وجه ده ؟جواب په مضمراتوکښې تفاوت موجودوواوپه نوروکښې نه وونو ځکه دهغے بیان اونه کړے شو .

**سوال**:. په مضاف کښې تفاوت شته دے چه اضافت یئے ضمیر ته اوشی نو دا خواعرف دے داضافت نه علم ته ؟ **جواب** : ددے تفاوت ذکر اونه کړے شو ځکه چه دمضاف تفاوت دمضاف الیه نه معلومیږی نوذکر کولو ددے تفاوت ته حاجت پاتے نه شو.

**والنكرة ما وضع لشیء غیر معین کرجل وفرس.**

: اونکره هغه اسم دے چه وضع کړے شوے وی دپاره دیو شے غیر معین لکه رجل اوفرس

**تشریح** : هرکله چه مصنفؒ فارغ شو دبحث دمعرفے نه نو شروع یئے اوکړه په بحث ددنکره کښې نو اووئیل ئیے چه نکره عبارت دے دهغه اسم نه چه وضع کړے شوے وی دپاره دیو شے غیر معین پدے شان سره چه دا شے به معهود نه وی په مابین دمتکلم اومخاطب کښې .

**فوائدقیود** : لفظ دماوضع لشیء الخ داجنس دے **شامل دے معرف اوغیر معرف** دواړوته چه معرفه اونکره دی اولفظ دغیرمعین **فصل دے**.چه پدے سره ترینه **معرفه خارج** شوه .

علامات دنکره شپږدی : (۱) حرف تعریف چه لام دے دابه پرے داخلیږی (۲) لفظ رب به پرے دا خلیږی. (۳)کم خبریه به پرے داخلیږی. (۴) حال به واقع کیږی . (۵) تمیز به واقع کیږی .

(٦) اسم دلا مشابه بلیس به واقع کیږی .




## تمرین بحث معرفه ونکره

یا نوح انه لیس من اهلك　　　یوسف اعرض عن هذا

الذین یؤمنون بالغیب　　　هم یوقنون .

علیٰ قلوبهم وعلیٰ سمعهم وعلیٰ ابصارهم غشاوة ولهم عذاب عظیم .

قل هو الله احد.　　　تبت یداابی لهب .

ان شانئك هوالابتر .　　　یاایهاالرسل .

ربکم الذی خلقکم والذین من قبلکم.

---

**فصل** اسماء العددماوضع لیدل علیٰ کمیت احاد الاشیآء.

ترجمه : اسماء العدد هغه الفاظ دی چه وضع کړے شوی وی دپاره ددلالت په یوه مرتبه دهر واحد واحد دمعدوداتو باندے .

**تشریح** :. هرکله چه مصنف ل فارغ شودبحث دمعرفه اونکره نه نوشروع ئیے اوکړله په بحث داسماء العدد کښ اوداسماء العددذکر ئیے پس دمعرفه اونکره نه ځکه اوکړلو ځکه چه په بعض تفسیر داسماء العددکښ نکره راوړے شی نوددوی دمعرفے اونکرے سره مناسبت وو.

**دلته معرفت دڅلورو اشیاؤ پکاردے :**

**(۱) تعریف داسماء العدد.**　　**(۲) اصول داسماء العدد چه څومره دی .**

**(۳) استعمال داسماء العدد . (۴) بیان دتمیز داسماء العدد.**

اول شــے ..چـه تـعـریف داسـمـاء الـعـدددے .نـو دا په لغت کښ جمع داسم ده اوددے معنی معلومه ده اوعددپه تعریف کښ مختلف اقوال دی.

(١) الـعـدد هـوالـكم المنفصل الذی لایکون لاجزائه حدمشترك .(٢) العدد هی کثرة مرکبة مـن الاحاد لکه عشره نو داعدددے ځکه چه دا یو کثرت دے چه مرکب دے دافرادونه .اومعنی اصـطـلاحی ددے مصنفؒ ذکرکړے ده پدے عبارت خپل سره چه ماوضع لیدلؒ الخ .مثال لکه عشره شونوداعدددے وضع دے دپاره ددے چه دلالت اوکړی په افرادو داشیاؤ باندے .

**سوال** : اسـمـاء الـعـددبه خالی نه وی یابه معرب اویا به مبنی وی .نو که معرب وی نو داخل پـه مـعـرب کـښ شـول اوکه مبنی وی نوداخل په مبنی کښ شول نودلته کښ یئے ذکرکولو ته ضرورت پاتے نه شو **جواب** : د اسمـاء العدددپاره نوراحکام هم شته دے سوا داعراب اوبناء نه مثـلا(١)ددے تمیز خلاف القیاس راتلل دثلاثه نه تر عشره پورے (٢)اضافت دمرکب مرکب ته (٣)اسم فـاعـل داسـمـاء الـعـدد نوددے دپاره اسماء العدد دلته ذکر کړے شول چه دااحکام نه په معرب کښ ذکروواونه په مبنی کښ ذکروو.

**سوال** : تـعـریف داسـمـاء الـعـددمـانـع نـه شو ددخول دغیر نه ځکه چه رجل اورجلان پکښ داخـل شـوځـکـه چـه دادواړه پـه کـمیت دلالت کوی ځکه چه رجل په واحد باندے دلالت کوی اورجلان په تثنیه باندے دلالت کوی اوحال دادے چه داخو اسماء العدد نه دی ؟ **جواب** : اسماء العددهغه اسماء دی چه ددوی موضوع له به نفس کم اومقدار وی بغیر دلحاظ دجنس نه اورجل اورجـلان لـکـه څـنگه چه دلالت کوی په مقدار باندے نودغسے دلاالت کوی په جنس باندے هم نودوی خارج شول دتعریف داسماء العددنه .

---

**واصول العدد اثنتاعشرة کلمة ومائة والف**

: اواصول داسماء العدد دولس کلمات دی اومائة والف ورسره هم دی

**تشریح** : مصنفؒ پدے عبارت سره دویمه خبره ذکر کوی چه هغے ته اصول العددوائی اوهغه دولس دی . (١) واحد (٢)اثـنـان (٣) ثـلٰـثـه(٤) اربـعـه (٥)خـمـسه (٦) سته (٧) سبعه (٨) ثمانیه (٩) تسعه (١٠) عشره (١١) مأته (١٢) الف .اوددینه علاوه نور فروع دی چه ددوینه جوړیږی .

**تفصیل** داشـو چـه اسـمـاء الـعـدد دوه قـسـمـه دی (١)اصـول (٢)فروع .اصول دیته وائی چه

ددوینه نور اسماء العدد جوړېږی اوفروع دیته وائی چه دوی دنورو نه جوړېږی اصول دولس کلمات دی واحد اثنان بغیر دتا نه اوثلاثه تر عشره پورے چه تاپکښ موجوده ده اومأتاوالف دی ددے دولسونه علاوه نور کلمات فروع دی ددے اصولونه دفروع جوړولو طریقے اووه دی:
(۱)طریقه چه زیادت دتا پکښ اوکړے شي لکه واحد اواثنان اصل دی چه ددوینه واحده اواثنتان جوړشی چه دا د دوی فروع دی چه زیادت د تا پکښ شوے دے. (۲) طریقه په اسقاط دتاء تانیث سره ده لکه ثلث اواربع چه داجوړشوی دی دثلاثه اواربعه نه په اسقاط دتاسره.
(۳)طریقه د تثنیه ده لکه مئین په فتحه دهمزه سره اوالفین چه دا دواړه دمأته اوالف نه جوړشوی دی (۴)طریقه جمع کول دی پدے شان سره چه دا اصل به جمع کولے شی نوفرع به ترینه جوړېږی لکه مئین په کسرے سره اواولوفچه دادمأته اوالف نه جمع راغلے ده (۵)طریقه دترکیب امتزاجی ده پدے شان سره چه داصول په مابین کښ به ترکیب امتزاجی کولے شی نوفروع به ترینه جوړشی.لکه ثلاثه و عشرنوددے دواړو په مابین کښ ترکیب امتزاجی اوکړے شو نوثلاثه عشر ترینه جوړشو.(٦)طریقه دترکیب اضافی ده پدے شان سره چه داصول په مابین کښ به ترکیب اضافی شوے وی نوفرع به ترینه جوړه شوے وی لکه ثلاث مأته نوددثلاث اضافت مأته ته شوے دے نوثلاث مأته ترینه جوړشو(۷)طریقه دترکیب عطفی ده یعنی په واسطه دعطف سره به ترکیب راغلے وی لکه ثلاثه وعشرون چه دلته ثلاثه معطوف علیه دیاوعشرون وربانده عطف دے نوپه واسطه ددے عطف سره ترینه ثلاثه وعشرون جوړشوے دے .**واستعماله من واحد الیٰ اثنین علی القیاس.**

: اواستعمال داسماء العددبه دواحد نه داثنین پورے موافق القیاس وی .

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنفؒ دریمه خبره ذکر کوی چه هغه استعمال داسماء العدد دے نو هرکله مصنفؒ دبیان داجمال نه فارغ شونوشروع ئیے اوکړله په تفصیل باندے نووائی چه دواحد نه تراثنان پورے به معدودمذکردپاره به عددمذکرراځی اومعدودمؤنث دپاره به عددمؤنث راوړے شی اودا موافق القیاس دے ځکه قیاس تقاضادتذکیر کوی دپاره دمذکراودتانیث کوی دپاره دمؤنث نودسرې دپاره بهٔ واحد وئیلے شي بغیر دتانه اودرجلان دپاره به اثنان وئیلے شی بغیر دتانه وهکذاللمؤنث بالتاء ای واحده اوواحد اواثنان به موافق القیاس

ئی په حالت د افراد او د ترکیب کښی لکه احدعشر او اثناعشر دا به دپاره دمذکر وی او احدیٰ عشره اواثنتاعشره دپاره دمؤنث اوپه حالت دعطف کښی به هم وی لکه احدوعشرون واثنان وعشرن دپاره دمذکر اوحدیٰ وعشرن واثنتان وعشرن دپاره دمؤنث.

## 〈۱〉 عدد حالت افراد

| واحد | فی رجل واحد | مفرد مذکر | موافق القیاس ای بالتذکیر فی المذکر |
|---|---|---|---|
| اثان | فی رجلین | تثنیة مذکر | موافق القیاس بالتانیث فی المؤنث |
| واحدةٌ | فی امرأة | مفرد مؤنث | موافق القیاس |
| اثنتان | فی امرأتین | تثنیة مؤنث | موافق القیاس |

عددحالت ترکیب بدون العطف

| احد عشر | بتذکیر الجزئین | ای احد عشر رجلا | موافق القیاس ای بالتذکیرفی المذکر |
|---|---|---|---|
| اثنا عشر | بتذکیر الجزئین | ای اثناعشر رجلا | موافق القیاس |
| احدیٰ عشرة | بتانیث الجزئین | ای احدیٰ عشرة امرأة | // // |
| اثنتاعشرة | بتانیث الجزئین | اثنتاعشرة امرأة | // // |

عددحالت ترکیب مع العطف

| احد وعشرون | بتذکیر الجزئین | ای احدوعشرن رجلا | موافق القیاس ای بالتذکیر فی المذکر |
|---|---|---|---|
| اثنان وعشرون | بتذکیر الجزئین | ای اثنان وعشرون رجلا | موافق القیاس وبالتانیث فی المؤنث |
| احدیٰ و عشرون | بتانیث الاول وتذکیر الثانی | ای احدیٰ وعشرون امرأة | موافقٌ القیاس |
| اثنان وعشرون | بتانیث الاول وتذکیر الثانی | ای اثنتان وعشرون امرأة | موافق القیاس . |

**ومن الثلاثة الی عشرة علی خلاف القياس اعنی للمذکر بالتاء.**

**ترجمه :** اواستعمال داسماء العدددثلاثونه ترعشره پورے خلاف القياس راځی

**تشريح :** د ثلاثة نه ترعشرة پورے عدد خلاف القياس راځی يعنی دمذکر دپاره به عدد مؤنث راځی اودمؤنث دپاره به عددمذکر راؤړے شی نو دامخالف القياس شو ځکه قياس تقاضاکوی چه دمذکر دپاره دمذکر راؤړے شی اودمؤنث دپاره دعددمؤنث راؤړے شی .نوپس په مذکرکښ به وئيلے شی ددے قاعدے مذکورے موافق ثلاثه رجال چه رجال مذکردے جمع درجل ده اوثلاثه ورله عددمؤنث راؤړے شوے دے دا به ترتسعة رجال پورے پدے طريقه سره وی اوپه مؤنث کښ به وئيلے شی ثلاث نسوه دلته نسوة عددمؤنث دے ځکه چه دا جمع دامرأه ده من غير لفظه اوثلاث عددورته مذکراؤړے شوے دے دابه ترعشر نسوه پورے پدے طريقه ويدليل ددے دادے چه ثلاثة جمع ده په اعتبار دمعنی سره اوجمع په تاويل دف جماعة سره مفرد مؤنث دے نوالحاق دعلامے دتانيث ورپورے واجب شو اوهرکله چه په مذکرکښ عددمؤنث شونوداعددبه په مؤنث کښ مذکر راؤ ړے شی ددے دپاره چه فرق راشی په مابين دمذکراودمؤنث کښ. **سوال :.** عکس دے اوکړے شی پدے شان سره چه دمومنث دپاره دے عددمونث راوړے شی اودمذکردپاره ده عددمذکرراوړے شی موافق القياس پدے سره هم فرق حاصليږی په مابين دمذکر اودمونث کښ.

**جواب :.** عکس اوکړه ځکه چه مذکراسبق دے دمونث نه خلقتانودے اول حق داردے چه په عددکښ ئے تاراوړے شی لوجے دتاويل مذکوره نه. **سوال :** ستاقاعده مذکوره منقوضه ده پدے چه عددواقع دے پدے قول د الله تعالی کښ : من جاء بالحسنه فله عشر امثالها دامثال معدود دے اومذکردے چه عشردے هم مذکرراوړے شوے دے نوپکارده چه عشرة امثالهاراوړے شوے وے. **۱- جواب :** امثال عبارت دے دحسناتونه اوداحسنات جمع ده حسنه ده اوحسنه مونث دے نودا امثال هم مونث دے نوځکه ورته عددمذکرراوړے شوے دے.

**۲ -جواب :** امثال اګرچه مذکردے خولکن مضاف دے مونث ته چه ضميرد هاء دے نوامثال کسب دتانيث کړے دے دمضاف اليه نه نومونث ګرځيدلے دے نوددے وجينه عددورته مذکرراوړے شوے دے.

وبعدا لعشرة تقول احدعشر رجلاً : ددے بیان اجمالاً مخکښ جدول کښ شوے دے.

**وبعد ذلك تقول عشرون رجلاوعشرون امرأة بلافرق بين المذكرو المونث الى تسعين الخ.**

**ترجمه:** اوروستو دمخکښ عددنه بیان دعقودکوی چه وئیلے کیږی به په مذکر اومونث دواړوکښ بلافرق داترتسعون پورے.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف بیان دعقودکوی چه هغه عشرون اوثلاثون اواربعون اوخمسون اوستون اوسبعون اوثمانون اوتسعون دی دمذکر اودمونث دواړودپاره یوشان مستعملیږی پدے شان چه مذکربه مستعملیږی ددوا ړودپاره مثال مذکورلکه عشرون رجلااودمونث دپاره لکه عشرون امرأة ترتسعون رجلا او امرأة پورے.

**دلیل :** ځکه که فرق اوکړے شی په علامه دتانیث سره چه تاده نوداتابه خالی نه وی یابه مخکښ دنون دعشرون اواخوات دعشرون نه راوړے شی اویابه روستودنون نه راوړے شی اودادواړه باطل هرچه اول صورت دائځکه باطل دے چه دانون حکماجزء دکلمے دے دعشرون نولامیږی اجراء دعلامه په وسط کښ اوهرچه بطلان ددویم صورت دے دائځکه چه اجرادعلامے دتانیث په کلمه اخری پورے ځکه دانون ددعشرون حقیقتاکلمه اخریٰ ده.

**واحد وعشرون رجلاواحدی عشرون امرأةً الخ.**

**تشریح :** اوپه عشرون کښ چه سواء راشی دواحدنه ترتسعه پورے لکه احدوعشرون رجلاالخ.نوپس پدے کښ دواحد اواثنان چه مرکب شی ورسره عشرون دابه په قیاس سره راځی اوثلاثون نه ترتسعه پورے چه مرکب شی ورسره عشرون دابه خلاف القیاس راځی په قانون دماسبق سره ددے دپاره چه فرع جاری په طریقه داصل باندے ځکه مرکبات فرع دمفرد.نوده اومفردات په قیاس سره وو واحد اواثنان نومرکبات به هم په قیاس سره وی اودثلا ثه سره چه عشرون مرکب شی دا به خلاف القیاس راځی ځکه داهم مرکبات دی.اومرکبات فرع دمفردات ده.

**ثم تقول مائة رجل ومائة امرأة و الف رجل و الف امرأة تابلافرق بين المذكرو المونث .** ترجمه: پس بیابه ته وائی چه مائة رجل اومائة امرأةالخ.

**تشریح :** په ماته او الف اوپه ماتان اوالفان کښ دمذکر اومونث څه فرق نه وی په مذکرکښ

بـه هم ماته وئيلے كيږي اوپه مونث كښې هم دارنګه ماتان او الف او الفان كښې به هم فرق نه وي بيـن الـمذكرو المونث ددے دوه وجے دي:۱ .داماته اوالف اوددوي تثنيے مشابه دي دعقودوسره چـه هـغه عشرون اواخوات دده دي په استعمال كښې په مراتب دعددباندے اوپه عقودوكښې فرق بين المذكرو المونث نه وو نوپدوي كښې به هم فرق نه وي. ۲- وجـه داده چـه په ماته كښې تاء مـوجـوده ده په اعتباردوضع سره پس كه دمذكراويادمونث دپاره بله تاراوړے شي نو لازم به شي اجتمـاع دتائيـنودتانيث اودامستكره ده نوددے وجينه بلافرق به وي بين المذكرو المونث او الف په ماته حمل دے اوپه تثنيه كښې هم دغه وجه ده.

**سوال** : په مائه تابرائے تانيث نده نو څرنګه به لازم شي اجتماع دعلامتي دتانيث.

**جواب** : صورة تادلته دتانيث دپاره ده يعني صورت ددے صورت دتاء دتانيث دے

**فاذا زاد علی المائة و الالف يستعمل علی قياس ماعرفت.**

**ترجمه** : پس هرکله چه په ماته او الف باندے عددزيات شي نودابه په قياس باندے وي كوم چه مخكښې معلوم شوے دے.

**تشريح** : مـراددزيـادت نـه زيـادت دواحـد اوداثـنـان ذے اودثلاثه نه ترعشرپورے اودارنګه مـركبات اوعـقـود هـركـلـه چـه دوي زيـات شـو په ماته اوالف باندے نودوي به په قياس سره وي دمذكردپاره به مذكروي اودمونث دپاره به مونث وي اودثلاثونه ترعشرپورے خلاف القياس به وي دمونث دپاره به مذكر وي عدد اودمذكردپاره به مونث وي عدداودهغے.

**واعلم ان ا لواحدو الاثنين لامميز لها الخ.**

**ترجمه** : پوه شه چه دواحداواثنان دپاره تميزنشته دے.

**تشريح** : پدے عبارت سره مـصنف شلـورمـه خبـره ذكركوي چه هغه بيان دتميزدے نـومـصنف وائـي چه په اعـدادوكـښې تـمـيـزدواحداواثنان نشته دے لوجے داستغنانه يعني په ذكـردمـميزسره استـغـنـاء راځـي دذكـردعـددنـه لكه اووئيلے شي لكه رجل اورجلان نودارجل استغناء راولي دذكردواحدنه اورجلان استغناء راولي دذكرداثنان نه.

**سوال** : ددے عبارت نه معلوميږي چه په عبارت دمصنف كښې تناقض دے پدے شان سره چه وائي ان الواحدو الاثنين لامميزلهاددے عبارت نه معلوميږي چه دواحداواثنان تميزنشته

دے اودویم عبارت دمصنف نه چه لأن المميز يغنى عن ذكر العدد معلومیږی چه دواحداواثنان تميزشته دے. ۱-جواب :. په عبارت دمصنف کښ تناقض نشته دے داول عبارت معنى داده چه لايذكر الواحدوالاثنان مع التميز. دویم جواب دادے: چه دواحداواثنان دپاره تمیزنشته دے اومراددے عبارت دمصنف نه چه لان المميز الخ هغه شے دے چه صالح به وی دپاره ددے چه تميزجوړشی اومراددادے چه تمیزبه وی دادواړه جوابونه مبنی دی په تاویل باندے په اول جواب سره تاویل په اول عبارت کښ اوشو اوپه دویم جواب سره تاویل په عبارت ثانی کښ اوشو.

واماسائر الاعدادفلابدلهامن مميز الخ.

**ترجمه :** اوهرچه باقی اسماء العدددی نوددوی تمیزبه لازماوی.

**تشریح :.** د واحداواثنان نه علاوه باقی چه څومره اسماء العدد دی داپه اعتباردتمیزسره په دری قسمه دی:۱.عدداقل چه دیته عددادنی هم وائی.۱.عدداقل اوعددادنی چه دثلاثونه ترعشره پورے ددے تمیزبه جمع مجروراځی لکه ثلاثه رجال وثلاث نسوه.

**دلیل:** مجروربه ځکه وی چه عدداقل کثیراستعمال اوکثرت استعمال سره تقاضادتخفیف کوی اوتخفیف په اضافت سره حاصلیږی ځکه پدے سره دتنوین اوقائم مقام دتنوین ساقطیږی نوددے تخفیف دحصول دپاره عدداقل به مضاف وی مابعدته چه تمیزدے اوعمل دمضاف په مضافٌ الیه کښ جروی.اوهرچه جمع ده ځکه چه داعددجمع ده معنادلالت په افرادوکوی نوتمیزجمع شوه دپاره دمطابقت دتمیزدعددسره.

**سوال :** ستا قاعده منقوضه ده په ثلاثه نسوه اوتسع مائه باندے پدے مثال کښ ثلاثه اوتسع عدداقل دے اوتمیزددے چه مفرددے چه مائة دے. **جواب :** داسوال مصنف په خپل عبارت سره دفع کړے دے چه الااذا کان المميز لفظ المائه الخ.حاصل دجواب دادے مائة چه کله تمیزدعدداقل واقع شی نودا د قاعدے مذکورے نه مستثنی به وی پدے شان سره چه دابه مفردوی ځکه که داجمع شی نوپس داجمع به خالی نه وی یابه په صورت دجمع مونث سالم کښ وی چه مئات دے اویابه په صورت دجمع مذکرسالم کښ وی چه مئین دے اودادواړه مستکره دی هرچه جمع مونث سالم ده داځکه چه دادثلاثه تمیزنه واقع کیږی ځکه دامائة تمیزدثلاثه واقع شوے دے اودثلاثونه رفع دابهام په مائة سره اوشوه لکن پدے کښ اوس هم

ابهام دے یعنی په مائة کښ نوروستو به تمیز غواړی نوکه جمع شي په جمع مونث سالم سره نووقوع دتمیزبه راشي اودامستکره دے په کلام دعربو کښ ځکه دے تمیزعادت نیولے دے په وقوع سره پس دهغه عددنه چه په صورت دجمع سالم مذکروی.

اوهر چه په صورت دجمع سالم مذکروی داځکه نه راځي چه په مائة کښ تاراغلے ده اودامشابه دتاء تانیث سره په صورت کښ نو هرکله چه جمع شي په مذکرسالم سره نوعلامات دجمع مذکربه راوړے شي نولازم به شي اجتماع دعلامتي دتذکیر اوتانیث اودناجائزدے نوځکه مائة به تمیزدثلاثه اوتسع واقع کیږی.

اوعدداوسط دیولسو۱۱ نه تریوکم سلو۹۹ پورے دے اوتمیزدده به منصوب مفردوی لکن داعدد اوسط په درے قسمه دے (۱)مرکبات بدون العطف لکه احدعشر ترتسعة عشر پورے (۲)مرکبات مع العطف لکه احدوعشرون (۳)عقود چه عشرون اوثلاثون الخ دی **دلیل** تمیزدعدد اوسط به مفردمنصوب وی هرچه په مرکباتو کښ ځکه دلته اضافت ممتنع دے اومخل دنصب دتمیزدپاره جربناء براضافت دے اوهغه دلته ممتنع دے ځکه که اضافت تمیزته دعدداوشی نولازم به شي جعل داسماء ثلاثه اسم واحد اوداباطل دے. **سوال** : ستاقاعده منقوضه ده په خمسه عشرك باندے دلته اجتماع داشیاء ثلاثه شي واحدراغلے دے. **جواب** : دلته مضاف الیه دعددنه دے نواجتماع والے پکښ رانغے. **سوال** : ستاقاعده منقوضه ده په ثلاثه مائة امرأة باندے. **جواب** :. داحمل په مائة امرأة باندے دے. ... اوهرچه عقوددی تمیزددوی به منصوب وی چه اصل په تمیزکښ نصب دے اومخل نصب ته جردے بنابراضافت اواضافت دلته متعذردے ځکه چه په اضافت سره دانون ساقطیږی اویاکه نه ساقطیږی نوداصحیح نده ځکه په اضافت سره نون دجمع مذکرسالم حقیقتا ساقطیږی اوداجمع مذکرحقیقتانده اوکه نه ساقطیږی نو هم صحیح نده ځکه صورتاجمع مذکرسالم ده نولازمیږی بقاء دنون دجمع مذکرسالم په اضافت سره اوداهم باطل دے.

اومفردبه ځکه وی چه هرکله تمیزمنصوب شواواصل په فضله کښ قلت دے اوقلت به کلمه راځي چه مفردشی.اوعدداکثردسلو ۱۰۰ نه ترالی مالانهایة له پورے اوتمیزدده به مفردمجروروی مجروربه ځکه وی عدداکثرمشابه دے دعدداقل سره په اصالت کښ

اوتمیزدعدداقل مجرورو نوتمیزدعدداکثربه هم مجروروی.اومفردبه وی ځکه پدے عددکښ ثقل دے ځکه دلالت په افرادکثیره باندے کوی نودثقل درفع دپاره تمیزدده به مفردوی.

**قاعده :** دعدداقل تمیزجمع قلت اوجمع مکسرخلاف القیاس راځی.

**قاعده :** کله تمیزحذف کیدے لکه اثنتی عشرة اسباطادلته تمیزفرق حذف دے ای اثنتاعشرة فرق اسباطا اواسباطابدل دے اثنتاعشرة نه ځکه که داتمیزشی نوعددمذکرپکاروو.

**قاعده:** د اثنان نه: ترعشرة پورے اسم فاعل مذکردپاره مذکراودمونث دپاره مونث راځی لکه ثانی ثالث رابع اوخامس سادس سابع تاسع عاشر.

**فائده :** دعدداقل امثله په قران کریم کښ ټول موجوددی.

مثال ثلاثه ثلاثة قروءٍ.

د اربعو مثال : اربعة اشهر.

اودخمسو مثال : بخمسة الاف من الملائکة منزلین.

دستو مثال : فی ستة ایام ثم استوی علی العرش.

دسبعو مثال : سبع لیال.

دثمانیو مثال : ثمانیة ایام.

د تسعو مثال : تسعة رهط. دعشروومثال: من عشرة مساکین.

## تمرین لبحث العدد

| | |
|---|---|
| سبع سمٰوات | احدعشر کوکبا |
| ان عدة الشهورعندالله اثناعشرشهراً | ثلاثین لیلة |
| اربعین لیلة | تسع وتسعون نعجة |
| الاتکلم الناس ثلاثة ایام | و المطلقات یتربصن بانفسهن ثلاثة قروء |

---

**الاسم امامذکر و امامونث فالمونث مافیه علامة التانیث لفظا اوتقدیراً.**

دافصل دے په بیان دتقسیم داسم کښ مذکر اومونث ته نواسم به یامذکروی اویابه مونث وی نومونث عبارت دے دهغه اسم نه چه پکښ علامه دتانیث موجوده وی لفظا اویاتقدیرا.

**تشریح** : سوال مذکردے ولے مقدم کړوپه مونث باندے ؟ **جواب ١:** مذکرمقدم په

مـونـث بـانـدے پـه خـلـقـت كـښ نـودے حقدارد تقديم دے په ذكركښ نو ځكه مذكرمقدم شوپه مونث باندے.

٢- **جواب** : تـعـريف دمـذكـرپـه عـدمـي سره دے چـه مالايوجدفيه علامه التانيث اوعدم دممكناتومقدم وي په وجوددممكناتوباندے نو ځكه مذكرمقدم شوپه مونث باندے.

**سوال** :. پـه تـعـريف كـښ مـونـث بيـاولـے مقدم شوه پـه مذكرباندے؟. **جواب** :١ مـصـنف قـصـدداختـصـاركـړے دے هـركـله چه تعريف دمونث مخكښ اوكړے شونودمذكرپه تعريف كښ اوونيلے شوو المذكرمايخالفه . ٢- **جواب** : مونث قريب وونوشروع په قريب سره اوشوه.٥ **جواب** :٣.مذكرعدمي دے اومونث وجودي دے اوتعريف د وجودي راجح وي دعارضي نه.

**وعلامة التانيث ثلاثة.**

پدے عبارت سره مـصـنف عـلامات دتانيث ذكركوي او هغه علامات دري دي ١ .تاده٢ . الف مـقـصـوره دے٣ .الف ممدوده دے.دامذهب دجمهورو نحاتودے اوپه نزددميرسيدسندباندے عـلامـات دتـانيـث څـلـوردي هـغـه وائـي چه تادوه قسمه ده ١ .ملفوظه٢ .تامقدره اودريم مذهب دبعض نحاتودے دوي هم څلورعلامات دتانيث وائي:

(١)تاء. (٢) الف مقصوره. (٣) الف مـمـدوده. (۴) يـاده پـه هـذي كـښ.چـه دااسم اشاره ده دمـونـث دپاره لكن پدے مذهب باندے صاحب شرح جامي ردكړے دے پدے عبارت سره چه وقـد زادبعضهـم اليـاء فـي قـولهـم ذي وتـي وزعـم انهـاللتانيث وليس ذلك بحجة لجوازن يكون صيغة موضوعة للمونث مثل هي وانت اوبعض جواب كوي ددے يانه چه مصنف نده ذكركړے ځكه چه دلتـه بيـان دهـغـه مـذكـراومـونـث كـوي چه دااقسام داسم متمكن نه وي اوذي اوتي اسم مونث غيرمتمكن دي.

**سوال** :. رحى اوارطى اوعصىٰ په ذوي كښ الف مقصوره شته ده اودوي خومونث ندي بلكه مذكردي. **جواب** :. مطلق الف مقصوره خوعلامه دتانيث نده بلكه الف مقصوره زائده علامه دتـانّيـث وايـواو الف درحـي اوعصى زائدندے اصلي دے ځكه دابدل دے دلام دكلمه نه اوالف دارطي دپاره دالحاق دے دحبلىٰ سره.

**سوال** : كسـاء اورداء اوعبـاء پـه دوي كـښ الف مـمدوده شته دے اودوي خومونث ندي بلكه

مذکردی. **جواب** :. مطلق الف ممدوده علامه دتانیث نده بلکه هغه الف ممدوده چه چه زائده وی اوکساء اورداء کښ همزه اصلی ده اوعباء کښ همزه برائے الحاق قرطاسی است.

**سوال** : عقرب مونث دے اوعلامه دتانیث پکښ نه لفظاشته اونه تقدیرا.

**جواب** :. لفظاعلامه دتانیث عامه ده حقیقی وی اوکه حکمی وی نوپه عقرب کښ حکماعلامه دتانیث موجوده ده څکه حرف رابع دده په حکم دتاء دتانیث کښ دے (و التفصیل فی المطولات) فلاتکن من ا لغافلین.

**ثم المؤنث علی قسمین.** بیادامونث په دوه قسمه دے یومونث حقیقی دے اوبل مونث لفظی دے.

**تشریح** :. زده کړه داخبره چه دلفظی دپاره دوه معنی دی (۱)مونث لفظی دیته وائی چه علامه دتانیث پکښ په لفظ کښ موجوده وی مثال لکه طلحه پدے معنی سره لفظی مقابل دتقدیری دے نومونث تقدیری دیته وائی چه علامه دتانیث پکښ مقدره وی مثال لکه ارض چه په اصل کښ ارضة وو(۲)معنی دلفظی چه په مقابل کښ حیوان دمذکرنه وی برابره خبره ده چه علامه دتانیث په لفظ کښ موجوده وی اوکه مقدره وی اولفظی پدے معنی سره مقابل دحقیقی دے چه هغه مونث دے چه په مقابل کښ به مذکرحیوان موجودوی.

**وقد عرفت احکام الفعل اذااسند الی المونث فلانعیدها.**

**ترجمه** : اوتاپیژندلی دی احکام دفعل چه کله مسندشی مونث ته په فعل دفاعل کښ نواعاده پدے مقام کښ مونږه نه کوو. **سوال** : په فصل دفاعل کښ مصنف تعریف دمونث حقیقی کړے وونوبیادلته ولے دااعاده اوکړه داخوندے مگرتکرار اوتکرارمستکره دے.

**جواب** : اعاده ده شی په هغه وخت کښ تکراروی چه په طریقه واحده سره وی اوددے تعریف اعاده په طریقه واحده سره نده بلکه په طریقینوباندے ده پدے شان سره چه ددے ذکرپه فصل دفعل تبعادے اوپدے مقام کښ قصدادے.

**فصل المثنیٰ اسم لحق اخره الف اویاء مفتوح ماقبلهاونون مکسورة لیدل علی ان معه اخرمثله نحورجلان ورجلین هذافی الصحیح.**

**ترجمه** : مثنی هغه اسم دے چه پیوست شوے وی په اخردمفردده پورے الف اویا چه ماقبل حرف ددے نه مفتوح وی اونون مکسوره په اخردده پورے ددے دپاره چه دلالت وکړی

پدے خبره چه دده سره ددے په مثل بل یو هم دے لکه رجلان اورجلین داپه صحیح کښ.

**تشريح** : هرکله چه مصنف فارغ شودتقسیم داسم نه مذکر اومونث ته نوشروع ئے اوکړه په بل تقسیم داسم کښ چه هغه دریوقسمونو ته شوے دے:(۱.)مفرد(۲).تثنیه(۳).جمع.لکن پدے دریوکښ تعریف دتثنیه اوجمع کوی اودمفردتعریف پریدی دپاره داختصاراوتعریف دده معلومیږی دتعریف دتثنیه اودجمع نه. **سوال** :. دتثنیه بحث ولے مقدم شوپه بحث دجمع باندے؟. **جواب** :. ددے دپاره وجوه اربعه دی:(۱).عدددتثنیه مقدم دے اوسابق دے په عدد دجمع باندے ځکه تثنیه دلالت کوی په دوه باندے اوجمع دلالت کوی په مافوق ددوه باندے اودوه سابق دی په مافوق ددوه باندے. ..(۲)- : تثنیه قریبه ده مفردته (۳)په تثنیه کښ همیشه صیغه دمفردسالمه وی په خلاف دجمع باندے چه په بعض افرادوکښ سالمه وی اوپه بعض کښ نه وی لکه جمع مکسر. (۴)- تثنیه کثیره ده په نسبت سره جمع ته.

**مصنف** دا قیدولګولوپه تعریف دتثنیه کښ چه لحق باخرمفرده نوداقیداحترازی دے پدے سره ترینه اثنین اوکلیهماخارج شوځکه ددوی دپاره مفردنشته دے وی ملحقات دثنیه دی اوتثنیه حقیقی نه وی.اوپدے قیدسره چه دیاء نه به ماقبل مفتوح وی غرض دمصنف دادے چه التباس دتثنیه رانشی دجمع سره په حالت نصبی اوجری کښ ځکه هلته ماقبل دیاء نه مکسوروی نوکه دلته هم کسره ورکړی نولازم به شی التباس اوداطریقه دجوړولودتثنیه په اسم صحیح کښ ده اودغیرصحیح بیان روستوراځی لکن بعضی شارحینوپدے عبارت دمصنف جرحه کړے ده ځکه داده دجاری مجری دصحیح دثنیه دجوړولو طریقه هم ده نو ځنګه مصنف وائی هذافی الصحیح. **سوال** :. ماقبل دیاء نه په تثنیه کښ به ئے مکسورکړے وواوپه جمع کښ به مفتوح کړے وونوپدے طریقه سره هم التباس رفع کیدو.

**جواب** : تثنیه کثیر الاستعمال ده اوفتحه خفیفه ده اوجمع قلیل ده اوکسره ثقیله ده نوخفیفه ئے کثیرته ورکړه اوثقیله قلیل ته ورکړه دپاره درعایت دتعادل. **سوال** :. داالتباس په ضمه سره هم رفع کیدے شونوضمه ولے ورنکړے شوه؟ **جواب** : پدے صورت لازمیدلوخروج دضمه نه کسرے تقدیری ته په حالت نصبی اوجری کښ اوداباطل دے.

**سوال** : نون دتثنیه ولے مکسورشوسره ددینه چه فتحه خفیفه ده؟ **جواب** :. حالت رفعی

دتثنیه په الف سره وواوالف ددوه فتحونه جوړ دے اوماقبل دالف نه هم فتحه ده نو لازمیږی توالی داربع فتحات اودامفیدد ثقل دے نو ددے دپاره چه ثقل لازم نشی کسره ورکړے شوه نون ته په تثنیه کښ اوحالت نصبی اوجری دامحمول دی په حالت رفعی باندے فلایردمایرد.

**اما المقصور فانکانت الفه منقلبة عن واو وکان ثلاثیاالخ.**

**ترجمه**: هرچه اسم مقصوره دے پس کچرے الف دهغه منقلب وودواونه اوداثلاثی وو الخ

**تشریح**: پدے عبارت سره مصنف بیان دتثنیه اواسم مقصوره کوی اواسم مقصورعبارت دے دهغه اسم نه چه په اخرکښ الف مقصوره وی مثال لکه عصی پس هرکله چه ددینه تثنیه جوړولے شی نوپه الف دتثنیه سره پدے کښ لازمیږی اجتماع دساکنینو نولازماپدے کښ به تغیرکولے شی او ددے اسم مقصوره دپاره څلورصورتونه جوړیږی:

(۱) الف مقصوره به دواونه بدل راغلے وی اوداسم به ثلاثی وی حکم ددے صورت دادے چه دغه الف به خپل اصل ته نقل کولے شی چه واودے په عصی کښ به عصوان وئیلے شی دپاره درعایت داصل حقیقتاوی لکه عصوان اوکه حکمالکه الی کښ به الوان وئیلے شی.

**فائده**: حکماواو دلته دیته وائی چه مجهول الاصل وی لکه الی شو.

(۲) چه الف بدل دیاء نه راغلے وی حقیقتاوی لکه رحیٰ اویاحکماوی لکه متیٰ.

(۳) الف بدل دواو نه راغلے وی لکن زیات وی په ثلاثی باندے.

(۴) چه الف بدل ددے دریونه نه وی راغلے حکم ددے دریوصورتونودادے چه دا الف به په یاء سره بدلولے شی هرچه په ثلاثی صورت کښ په یاء سره بدلولے شی الف ځکه درعایت داصل دوجے نه اوهرچه په صورت ثانی کښ دپاره دتخفیف دارنګه په صورت رابع کښ مثال دصورت ثالث لکه ملهیان چه تثنیه دملهیٰ ده اومثال دصورت رابع لکه حباریان اوحبلیان چه تثنیه دحباری اوحبلیٰ ده.

**واما الممدودة فان کانت همزته اصلیة تثبت الخ.**

ترجمه اوهرچه الف ممدوده دے کچرے وه همزه دده اصلیه نوپه خپل حال به ثابته وی په تثنیه کښ.

**تشریح**:. داسم ممدوده دپاره دلته دری صورتونه دی: (۱) همزه به اصلی وی.

(۲) دتانیث دپاره به وی. (۳) دواو اویاء نه به بدل راغلے وی. حکم دصورت اول همزه

دمفردبه ثابته وی په خپل حال باندے په تثنیه کښې قراء نه به جوړیږی قرء ان حکم دصورت ثانی همزه دمفردبه بدلیږی په واوسره. په تثنیه کښې مثال دحمراء نه به جوړیږی حمراوان. حکم دصورت ثالث پدے کښې بیادوه وجے دی:١ .اثبات دهمزے ځکه دواواویاء اصلی په بدل کښې راغلے وی نوفرض شوه چه اصلی ده نو حکم داصل ورلره ورکړے شونوثابته پاتے شوه٢ .په واو سره بدلیږی ځکه چه دامشابهت لری دهمزے دحمراسره دا همزه هم اصلی نده بلکه بدله راغلے ده نوپه واوسره دے بدله شی مثال کساء مفردنه کساء ان اوکساوان دواړه جائزدی.

**ویجب حذف نونه عند الاضافة تقول جاء نی غلاما زیدو مسلمامصرٍ.**

**ترجمه:** اولازم دے حذف دنون دتثنیه په وخت داضافت کښې لکه غلام زید ومسلمامصر.

**تشریح:** پدے عبارت سره بل یو حکم داحکامو دتثنیه نه بیانوی چه هغه تغیرپه تثنیه کښې په سقوط دنون سره اوداغرض دعبارت هم کیدے شی مصنف پدے عبارت سره جواب کوی دسوال دسائل سوال چه مخکښې ذکرشو چه دتثنیه په اخرکښې به نون وی نو ستاقاعده منقوضه شوه په غلامااومسلماباندے داتثنیے دی اوپه اخرکښې ئے نون نشته دے نو مصنف جواب ورکوی چه داحذف شوے دے په اضافت سره اودابه لازمه وی.

پس دانون دتثنیه لوجے داضافت نه حذف کولے شی ځکه دانون قائم مقام دے په مقام دتنوین باندے اوتنوین اونون دلیل داتمام دکلمے دے اوپه اضافت سره اتصال اوامتزاج لازمیږی دماقبل دمابعدسره پس هرکله چه تنوین اونون سره انقطاع دمابعدنه اوپه اضافت سره اتصال اوامتزاج راځی دمابعدسره نوپه مابین ددوی کښې منافات راځی نونون به حذف کولے مثال غلامازید چه په اصل کښې غلامان وو اومسلمامصر چه په اصل کښې مسلمان پس نون په اضافت سره حذف شواوهم دغه شان نون دجمع هم حذف کولے شی عند الاضافت

**وکذلك تحذف تاء التانیث ..............خصیان والیان** . **ترجمه:** همدغه شان تاء التانیث دخصیان او الیان حذف کولے شی.

**تشریح:** پدے عبارت سره مصنف دفع داعتراض کوی سوال دادے چه هغه اسم چه متلبس وی په تاء دتانیث سره په وخت دتثنیه کښې هغه تانه حذف کیږی نوستاقاعده منقوضه ده په خصیان او الیان باندے دلته تادتانیث حذف شوے ده چه مفرد ددوی خصیة او

الية راٸي پس مصنف جواب وکړوچه وکذلك تحذف الخ حاصل دادے چه په نورو اسماؤکښې تاء التانيث نه حذف کيږي اوپدے اسماؤوکښې حذف کولے شي له وجې دشدت اتصال نه داپه منزله دمفرددي او وجود دتاء التانيث په وسط دمفردکښ باطل دے نوددے وجې نه پدے دوو اسماؤوکښې داتا حذف شوه.

**واعلم انه اذااريد اضافة المثنیٰ الی المثنی الخ.**

**ترجمه :** پوهـ شه چه کله اراده داضافت اوکړے شي دتثنيه تثنيه ته.

**تشريح :** مصنف پدے عبارت سره دتثنيه بله يوه قاعده بيانوی:قاعده داده چه کله اراده اوشي ديوے تثنيه اضافت بلے ته نوداولي تثنيه نه به تعبيرپه جمع سره کولے شي پدے شرط چه اوله تثنيه به اسم ظاهروي اوضميربه نه وي ځکه ضميرنه مضاف کيږي اودادويمه تثنيه به ضميروي پس پدے وخت کښ مضاف اومضاف اليه دواړه تثنيه دي نو مصنفؒ وائي چه لازمه ده چه ده اولي نه تعبيرپه جمع سره اوشي مثال لکه قلوبکماداپه اصل کښ قلبان تثنيه وه نو هركله چه اراده دده داضافت اوشوه کماته نوجمع ترينه جوړه شوه بل مثال:لکه ايديهماايدی جمع په اصل کښ يدين وونو هرکله چه اراده دده داضافت اوشوهٔ کماته نوجمع ترينه جوړه شوه.اوعلت ددے مصنف په خپل عبارت سره ذکرکړے دے وذلك لكراهة اجتماع تثنيتين الخ حاصل دعلت دادے چه په مابين دمضاف اومضاف اليه شدت اتصال اوامتزاج دے هم لفظا اوهم معنااواجتماع ددووتثنيوپه ځاے کښ چه هلته شدت اتصال اوامتزاج موجودوي مستكره دے نوددے وجينه داولے تثنيه نه به جمع جوړولے شي.

دا قاعده مذكوره په تثنيه حقيقي پورے مختص نده په غيرحقيقي تثنيَه کښ هم داقاعده جاري کولے شي اوهغه داسے وي لکه معطوف اومعطوف عليه اوددوي په مابين کښې تثنيه وي اوهغه معطوف ته مضاف وي نوپدے کښ به هم دمضاف نه تعبيرپه جمع سره کولے شي اويامفردسره مثال لکه داقول دالله تعالی علی لسان داودوعيسي بن مريم نوداودمعطوف عليه اولفظ دعيسي ورباندے عطف دے نوداعين تثنيه نده بلکه کالمثنی ده نولسان ورته مضاف دے په اصل کښ لسانين وونوپس هرکله چه مضاف شونوتعبيرترينه په مفردسره اوشو چه لسان دے.

**فصل** المجموع اسم دل على احادمقصودة بحروف مفرده بتغيرمّاالخ.

ترجمه: جمع يواسم دے چه دلالت كوى په افرادمقصوده باندے په سبب دحروف دمفردسره چه پدے مفردكښ به څه تغيرشوے وى الخ.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دمثنى نه نوشروع ئے اوكړه په بيان دجمع كښ پدے فصل كښ مصنف ذكردامورثلاثه كوى :

(۱) تعريف الجمع.(۲) اقسام الجمع باعتبارلفظ.(۳) اقسام المجموع باعتبار المعنى.

اول تعريف ذكركوى پس وئيلى دى مصنف دارنگه الجمموع الخ.

مجموع صيغه داسم مفعول ده په لغت كښ جمع كړے شوى ته وائى اوپه اصطلاح كښ ماذكره المصنف بقوله الجموع اسم دل الخ پس پدے تعريف دجمع كښ لابدى ده دجنس اوفصل نه داقول دمصنف اسم دل على احادجنس دے شامل دے محدودته چه اسم جنس اواسم جمع ده څكه دادرى واړه دقبيلے داسم نه دى اودلالت كوى په احادباندے اوداقول چه مقصودة دے فصل اول دے پدے سره ماذكرخارج شو چه اسم جنس دے څكه په اسم جنس كښ احادمقصوده نه وى بلكه مقصودپكښ جنس وى مثال لكه نخل اوتمراوداقول چه بحروف مفرده فصل ثاني دے پدے سره ترينه اسم جمع خارج شو څكه اسم جمع كښ دلالت په حروف دمفردسره ندے مقصودڅكه داسم جمع دپاره مفردنه وى اودااسم جمع مصنفؒ په خپل دے عبارت سره خارج كړے ده چه فقوم ورهط ونحوه الخ.

**سوال** :. تعريف دجمع مانع ندے ددخول دغيرنه داخل شوپكښ هغه اسم چه مدخول دالف لام استغراقى وى مثال لكه ان الانسان لفى خسرپه الانسان كښ الف لام استغراقى دى اودلالت كوى په احادمقصوده باندے اوديته جمع نشى وئيلے. **جواب** :. مرادده دلالت نه مطلق دلالت ندے بلكه دامقيددے په قيددجمله اومجموعه من حيث المجموع يعنى هيئت اجتماعى به پكښ معتبروى اوهغه اسم چه مدخول دالف لام استغراقى وى هغه اسم ندے بلكه هغه چه دلالت كوى په افرادباندے نو هغه په طريقے دانفرادسره كوى.

**سوال** : دتعريف دجمع نه نسوة خارج شوڅكه دادلالت كوى په افرادباندے اوجمع ده لكن په حروفودمفرد دلالت نكوى څكه ددے دپاره مفردنشته دے. **جواب** : مفردعام دے چه محقق

وی اوکه مقدروی ددے دپاره مفردمقدرشته دے چه نساء دے په وزن دفُعال سره لکه غلام .

**ثم الجمع علی قسمین مصحح الخ.** : بیاداجمع په دوه قسمه ده یوه دهغه نه مصحح ده.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف تقسیم دجمع کوی قسمین ته ۱ .مصحح. ۲- مکسر او دا تقسیم دجمع په اعتباردلفظ سره دے پس جمع په دوه قسمه ده په اعتباردلفظ سره یابه په حروف دمفردکبنی تغیرشوے وی اویابه نه وی که تغیرشوے وونو مکسراوکه نه وونو مصحح اودیته جمع سالم هم وائی مثال داولی لکه رجال اومثال دثانی لکه مسلمون اومسلمات.

**سوال** : تعریف دجمع مصحح جامع ندے خپلو افرادولره خارج شوترینه مسلمون ځکه پدے کبنی صیغه دواحدمتغیره شوے ده په الحاق دواواونون سره په حالت رفعی کبنی اویاء اونون سره په حالت نصبی اوجری کبنی. **جواب** : جواب مراددتغیرنه دادے چه په اموردداخلوسره به وی اودیته په اعتباردامورخارجیوسره تغیرراغلے دے.

**ومکسر وهومایتغیرالخ.** : اوجمع مکسر هغه ده چه تغیرراغلے وی پدے کبنی.

**تشریح** :. تغیردواحدپه جمع مکسرکبنی په شپږقسمه دے : (۱) په زیادت سره به وی په حروفودمفردباندے په غیردتغیردشکل نه مثال:لکه صنو مفرداوجمع صنوان.

(۲) په نقصان سره به وی په حروفودمفردکبنی بغیردتغیردشکل نه مثال لکه تخم چه جمع د تخمةٌ ده. (۳) په تغیردشکل سره په حروفودمفردکبنی من غیرنقصان وزیاده لکه اُسدٌ چه جمع داسدده. (۴) زیادت به هم شوے وی اوتغیردشکل به هم راغلے وی مثال لکه رجال چه جمع درجل ده . (۵) نقصان به هم شوے وی اوتغیردشکل به هم راغلے وی مثال لکه رسل چه جمع درسول ده. (٦) زیادت به هم شوے وی اونقصان به هم شوے وی اوتغیردشکل به هم راغلے وی مثال لکه غلمان چه جمع دغلام ده.

**وجه التسمیة** : جمع مصحح ته مصحح ځکه وائی چه داده صحت نه ماخوذه ده نومعنی ئے ده چه صحیح کړے شوے اوپدے کبنی هم مفردپه صحت باندے پاتے وی نوپه اصل کبنی دامفردمصحح دے نودے جمع ته مصحح وئیل توصیف دشی دے بحال متعلقه اوجمع سالمه دیته وائی وجه دتسمیه داده چه سالمه ماخوذه ده ده سلامه نه اوددے معنی دسلامتیاده اوپدے جمع کبنی هم صیغه دواحدسالمه وی نوپدے کبنی هم توصیف دشی دے بحال متعلقه اوجمع

مکسر ته مکسر ځکه وائی چه داماخوذدے دکسرنه اوکسرماتوالی ته وائي اوپدے کښې هم صیغه دواحدماته شوے ده نودلته هم توصیف دشي دے بحال متعلقه ځکه مکسرمفرد ددے جمع دے.

**والصحیح علی قسمین الخ.** اوجمع صحیح په دوه قسمه ده یو دهغے نه هم مذکردے الخ.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف تقسیم دجمع صحیح کوی قسمینوته ۱.مذکر۲. مونث. **سوال :.** دعبارت دمصنف نه دامعلومیږی چه لحوق دواو اویاء اونون په په اخردجمع پوے شوے وی اودلته کښې خوداسے نده. **جواب :.** دلته په عبارت دمصنف کښې حذف دمضاف دے چه باخر مفرده دے اوماقبل دنون نه به مضموم وی په حالت رفعی کښې دپاره دمناسبت دواو.اوماقبل دیاء نه به مکسوروی په حالت نصبی اوجری دپاره دمناسب دیاء اوبله وجه داده که ماقبل دیاء نه مکسورنشی مضموم شي نو لازميږي ثقل اودویمه وجه داده چه لازميږی خروج دضمه حقیقی نه کسرے تقدیری ته اوکه فتحه ورکړے شي نوالتباس به راشی دتثنیه سره.

**اما المنقوص فتحذف یاء ه مثل قاضون و داعون.**

**ترجمه:** اوهرچه طریقه دجمع دجوړولو ده په اسم منقوص کښې نو حذف کولے به شي یاء دده لکه قاضون په قاضی اوداعون په داعی کښې وئیلے شي.

**تشریح :** داسم منقوص په اخرکښې یاء کله اصلی وی لکه مثال قاضی اوکله بدل راغلے وی دواونه لکه داعی نوپس په جمع کښې دایاء حذف کولے شي نو هرکله چه ددینه جمع جوړولے شي نوقاضیون اوداعیون به ترے جوړولے شي دلته هغه یاء داسم منقوص حذف شوه ځکه پدے باندے ضمه ماقبل دواوراغله اوهغه ثقیله ده په یاء باندے نوضمه ساقطه شوه بیا التقاء ساکنین راغله په مابین دواو اویاء کښې نودایاء حذف شوه نوقاضون اوداعون ترے جوړشو.

**و المقصوریحذف الفه ویبقی ماقبلهامفتوحالیدل علی الف محذوف مثل مصطفون.**

**ترجمه:** .اواسم مقصوره حذف کولے شي الف دده اوماقبل حرف دده نه به مفتوح کولے شي ددے دپاره چه دلالت اوکړی په الف محذوفه باندے لکه مصطفون په مصطفیٰ کښې.

**تشریح :** داسم مقصوره نه چه کله جمع مذکرسالم جوړولے شي نوپدے کښې به هم تغیرکولے شي پدے شان سره چه الف کوم چه په اخردالف مقصوره کښې موجوددے هغه به

حذف كولے شي دوجے دالتقاء دساكنين نه اوماقبل به مفتوح پاتے كولے شي دپاره ددے چه دلالت اوكړی په الف محذوفه باندے مثال لكه مصطفون چه په اصل كښې مصطفيون وو پدے كښې ياء پدے كښې متروك ماقبل حرف ترينه مفتوح چه فاء ده نوياء بدله شوه په الف باندے بيادوجے دالتقاء دساكنين نه چه الف او واودے الف حذف شونو مصطفون شو.

**سوال** : په صيغه دجمع مذكرسالم په مفردكښې تغيرنه وی راغلے اودلته تغيرراغلے دے په حذف دالف سره په اسم مقصوره كښې اوپه حذف دياء سره په اسم منقوص كښې نوداځرنګه جمع مذكرسالم.شوه؟ **جواب** : تغيردجمع مذكرسالم په مفردكښې منع دے دپاره دحصول دجمعيت اودلته روستودحصول دجمعيت نه راغلے دے.

**ويختص باولی العلم واماقولهم سنون وارضون وثبون وقلون فشاذ.**

ترجمه : اوخاص كيدے شي داقسم په اولوالعلم پورے اوهرچه داقول ددوی چه سنون الخ.نودا د قاعدے نه خلاف جمع شوے دے په جمع مذكرسالم سره.

**تشريح** : يعنی په واو اونون سره چه جمع كيږی نوداپه ذوی العقول پورے خاص ده تفصيل اوتشريح ددے داده چه كوم اسم چه جمع كيږی په واو نون اوياء سره نودابه دحالتينونه خالی نه وی(١) يابه داسم په ذات دلالت كوی اسم ذاتی به وی مثلالكه زيدعمروغيره شو(٢) يابه په ذات مع الوصف باندے دلالت كوی مثلاكاتب قائم وغيره شوپس كه قسم اول وونونوددے دپاره دری شرطونه دی : (١) شرط اول مذكربه وی نبه پكښې تاء التانيث لفظی وی اونه مقدره وی پدے قيدسره طلحه ترے خارج شودانه جمع كيږی په جمع مذكوره سره. (٢) علم به وی پدے قيدسره ترينه رجل خارج شواګركه مذكرعاقل دے لكن علم ندے نودانه جمع كيږی په جمع مذكوره سره . (٣)دريم شرط ذوی العقول نه به وی پدے قيدسره ترينه اعوج خارج شوپه دا علم داس دے لكن غيرذول العقول دے نوداهم جمع كيږی په جمع مذكوره سره.

**دليل دجمع** سالم دپاره داشروط ثلاثه ولے مقررشوی دی ځكه داجمع دتمامو جمعونه اشرف ده اومذكراوعلم اوذوی العقول اسم دتمامواسماؤنه اشرف وی نواشرف خاص شودپاره داشرف مثال دزيدجمع راځی زيدون اودمسلم جمع راځی مسلمون.اوكه قسم ثانی وويعنی اسم صفتی لكه اسم فاعل اواسم مفعول وغيره وغيره نودهغے دپاره پينځه شرطونه دی: (١)شرط

اول مذکرعاقل. (۲) دویم شرط چه په اسم صفتی کښی تا التانیث نه وی اودریم څلورم اوپینځم اوشپږم شرطونه مصنف ندے ذکرکړی په کتاب کښی. (۳)دریم شرط چه اسم صفتی به په وزن دافعل نه وی چه مونث ئی په وزن دفعال راځی لکه احمر چه دد ے حمراء راځی. (۴) چه اسم صفتی به په وزن دفعلان نه وی چه مونث ئے په وزن دفعلی راځی لکه سکران چه مونث دد ے سکری راځی. (۵) چه اسم صفتی به په وزن دفعیل نه وی چه په معنی دمفعول راځی لکه جریح چه په معنی دمجروح راځی.

**دلیل** : د اول شرط چه مذکرعاقل به وی دده علت په ماقبل کښی ذکرد ے.

اودلیل دشرط ثانی دا د ے کچر ے تاء التانیث ورسره شی نو لازم به شی التباس دهغه جمع سره چه ملتبس وی په تاء التانیث سره.اودشرط ثالث دلیل داد ے چه فرق راشی دافعل صفتی اوافعل تفضیلی ورنه لازم به شی التباس اودرابع شرط دلیل داد ے چه فرق راشی دهغه اسم صفتی چه وزن دفعلان چه مونث فعلی راځی دفعلان چه مونث فعلانه راځی ورنه لازم به شی التباس. او دشرط خامس دلیل داد ے چه مفردمختص ند ے په یوه نوعه پور ے نوجمع به هم داسے نه وی اوداقول چه"سنون اوارضون الخ"د ے نوداعبارت جواب د ے دسوال مقدره نه سوال داسے واردیږی چه ستاداقاعده منقوضه شوه په سننون اوارضون الخ باند ے چه ددوی مفردات سنه اوارض اوقلت اوسبته دی داخالی دی دامورثلاثه نه نه پکښی تذکیراونه پکښی علمیت اونه پکښی علمیت اونه دذویالعقول نه دی بلکه مونث نکرات غیرعقلاء دی اوحال داد ے چه دوی جمع شوی دی په جمع مذکرسالم سره.پس مصنف جواب ورکړ ے د ے په خپل د ے عبارت سره فشاذ دا خلاف القیاس دی.

**ومونث وهومالحق باخره الف وتاء نحومسلمات.**

**ترجمه:** اوبل قسم دجمع سالم نه مونث سالم د ے اوهغه داد ے چه پیوست شو ے وی په اخیردمفردد ے پور ے الف اوتاء لکه مسلمات چه جمع دمسلمه ده .

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دجمع مذکرسالم نه شروع ئے اوکړه په نوشروع ئے اوکړه په جمع مونث سالم کښی پد ے عبارت خپل سره چه ومونث الخ.

**وشرطه ان کان صفة** ترجمه : اوشرط دهغه اسم چه جمع کیږی په الف اوتاء سره کچر ے وو

اسم صفتی. **تشریح :** جمع مونث سالم اسم جامد اومشتقی دواړوکښې راځی اول بیان مصنف داسم مشتقی کوی اوبیابیان داسم جامد کوی.

**سوال :** ضمیرمجرورد شرطه راجع دے نو مطابقت نشته بین الضمیرومرجعه فی التذکیرو التانیث. **جواب :** ضمیرراجع دے اسم ته چه جمع کولے شی په الف اوتاء سره.اودامذکرنو مطابقت راغے تقدیردعبارت داسے شووشرط الاسم الذی اریدجمعه بالالف و التاء. **جواب ٢**- ضمیرراجع دے هغه مونث ته چه موجوددے په ضمن ددے نوع کښې چه جمع مونث سالمه ده اولفظ دمذکردے نوتقدیردعبارت داسے شووشرط المونث الموجودفی ضمن هذا النوع الذی هو الجمع المونث السالم.

پس زده کړه دخبره چه دااسم به خالی نه وی چه اراده دده دجمعیت شوے وی په الف اوتاء سره یابه اسم صفتی وی اویابه اسم غیرصفتی وی کچرے اول وونوپدے کښې دوه صورتونه دی :

١- ددے دپاره به مذکروی اویابه نه وی کچرے مذکرورلره وونوددے دپاره شرط دادے چه هغه به جمع شوے وی په واو نون مثلادمسلم جمع په واو نون سره راغلے ده لکه مسلمون ددے مونث مسلمه جمع شوے دے په مسلمات سره اوداشرط ددے دپاره دے چه مونث فرع دمذکرده نو هرکله چه مونث په الف اوتاء سره راشی نو معلوم میږی چه مذکردده په واونون سره راغلے دے ورنه زیادت دفرع به لازم شی په اصل باندے اودا باطل دے.

(٢)- صورت اوکه مذکرورلره نه وونوشرط به داوی چه دتاء التانیث نه به خالی نه وی اوکه اسم غیرصفتی وونوددے دپاره څه شرط نشته دے لکه هندجمع شوے دے په هندات سره اوزینب جمع شوے دے په زینبات سره اوطلحه جمع شوے دے په طلحات سره.خلاصه:دلته دری صورتونه مصنف ذکرکړه.

**صورت اول :** وشرطه ان کان صفت وله مذکران یکون مذکرجمع بالواووالنون نحو مسلمون.
**دویم صورت :** وان لم یکن له مذکرفشرطه ان لایکون مونثامجرداعن التاء کا الحائض والحامل. **دریم صورت :** وان کان اسماغیرصفت جمع بالالف والتاء بلاشرط کهندات.

---

**و المکسر صیغته فی الثلاثی تعرف بالسماع کرجال و افراس وفلوس الخ.**

اوجمع مکسر صیغه اووزن دده په ثلاثي کښې ډیردي په سماع باندے معلومیږي لکه الخ.

**تشریح** : زده کړه داخبره چه پدے عبارت سره مصنف بیان دصیغودجمع مکسرکوي اوتعریف پدے فصل کښې اول ذکرشوے دے اوپه جمع مکسرسره هم اسم جمع کیږي برابره خبره ده که ثلاثي مجردوي اوکه ثلاثي مزیدوي اوکه رباعي مجردوي اوکه رباعي مزید وي اوکه خماسي مجردوي اوکه خماسي مزیدوي نوپس داټول شپږ اقسام شوددے تفصیل دادے چه جمع په دوه قسمه ده اول قسم هغه ده چه یو اسم به جمع شوے وي په جمع مکسر باندے اودابه په یو خاص وزن سره نه وي قیاسابلکه دابه موقوفه وي په سماع پورے په هغه وزن به راځي چه سمع دعربونه شوے وي مثال لکه رجال جمع درجل اوافراس جمع دفرس ده اوفلوس جمع دفِلس ده اوداقسم دجمع به په ثلاثي مجردکښې راځي اودویم قسم هغه ده چه یواسم به جمع شوے وي په جمع مکسرباندے اودابه په یو خاص وزن سره وي اوموقوفه به نه وي په سماع پورے اوداقسم دجمع په غیرثلاثي مجردکښې راځي مثلاپه وزن دفعالل اوپه وزن دفعالیل باندے.

---

**ثم الجمع ایضاعلی قسمین جمع قلت الخ.** بیاداجمع په دوه قسمه ده لکه مخکښې چه دوه قسمونوته تقسیم شوے وو یوه جمع قلت ده اوبله جمع کثرت ده.

**تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف دویم تقسیم دجمع بیانوي په اعتباردمعنی سره نوجمع په اعتباردمعنی سره په دوه قسمه ده ۱ .جمع قلت۲ .جمع کثرت.جمع قلت دیته وائي چه اطلاق ددے کیدے شي ددریونه ترلسوپورے اوددي اوزان شپږدي:

(۱) افعل لکه افلس جمع دفلس ده. (۲)افعال لکه اقوال چه جمع دقول ده.

(۳) افعله لکه ارغفه چه جمع درغیف ده.

(٤) فعلة لکه غلمة چه جمع دغلام ده. (۵) جمع مذکرسالم. (٦) جمع مونث سالم هرکله چه دواړه دالف لام نه خالي وي اوسره دالف لام نه به په جمع کثرت داخل وي اوجمع کثرت دیته وائي چه اطلاق ددے کیدے شي دلسونه په پورته ترمالانهایت له پوے اوزان ددے جمع ماسواداوازونودجمع قلت نه دي لکن کله اطلاق داحد همایه اخرکیږي مثلاثلاثه قروء قروء جمع کثرت قرءٌ ده استعمال دقلت په ځاے شوے دے اوهغه اقراء دے دارنګه حروف مشبه

بالفعل حروف جمع كثرت ده حرف ده اواستعمال دقلت په ځاے شوے دے دارنګه اصحاب جمع قلت ده اواستعمال دكثرت په ځاے شوے دے.

**قاعده :** په كوم اسم كښ چه جمع قلت اوجمع كثرت دواړه موندلى كيږى مثال لكه غلام چه ددے جمع قلت هم شته دے چه غلمۀ دے اوجمع كثرت هم شته دے چه غلمان دے نوپه داسے اسم كښ جمع قلت حقيقت دے په عشر اوپه ماتحت عشركښ اوجمع كثرت پكښ حقيقت دے په مافوق دعشركښ اوبه ماتحت عشركښ مجازدے اوكوم اسم چه دواړه جمع نه لرى بلكه يوه لرى نوبيادا هم مشتركه ده په مابين دقلت اوكثرت كښ پدے شان چه په عشر اوپه مافوق عشركښ به استعمال دده هم حقيقت وى اوپه مافوق دعشركښ به هم حقيقت وى مثال لكه رجل شوپه كسرے دراء اوپه سكون دجيم سره بمعنى(خپه) ددے جمع قلت شته دے چه ارجل دے په وزن د افعل سره اوجمع كثرت ددے نشته دے نودامشترك بين القلت و الكثرت اوددے استعمال په دواړوكښ په طريقے دحقيقت سره دے اوعكس ددے رَجُلٌ دے چه ددے جمع كثرت شته دے چه رجال دے اوقلت ورلره نشته دے نوداهم مشترك بين القلت والكثرت اوستعمال په دواړوكښ په طريقه دحقيقت سره دے اوكوم لفظ چه جمع قلت اوكثرت دواړه لرى نوپه بعضى مواضعوكښ احد هماپه ځاے د اخرباندے مستعمليږى لكن دابه مجازى وى مثلاقرء شو چه دامشترك دے په مابين دطهراو حيض كښ اوددے جمع قلت هم شته دے چه اقراء دے اوجمع كثرت ئے شته دے چه قروء دے پس په قران كښ داجمع كثرت مستعمل شوے ده په ځاے دجمع قلت باندے ځكه مراددے نه درى افراددى چه هغه ياحيضونه دى لكه دامام ابو حنيفه قول دے اويامرادترينه طهرونه دى لكه دامام شافعى قول دے.تمت بحث الجمع بعونه تعالى.

**فصل** المصدراسم يدل على الحدث فقط.

دا فصل دے په بيان دمصدركښ مصدريواسم دے چه دلالت كوى په حدث باندے فقط.

**تشريح:** دا شپږم فصل دخاتمے دے په بيان دمصدركښ اوپدے كښ اموراربعه بيانوى:

(۱) تعريف دمصدر. (۲) اوزان دمصدر. (۳) عمل دمصدر.

(۴) بيان د دووضابطين تعريف دمصدر،مصدريواسم دے چه دلالت كوى په حدث باندے

فـقـط اومـعـنـی دحـدث ده قـائـم بـالـغیـراودے ئـے مشـتـق مـنـه دافعـالـووی اودمتعلقاتود افعالو مثلاضربا اونصرانه ضرب اویضرب اونصر ینصر اوضارب اوناصر مشتق دی.

**وابنیته من ثلاثی المجرد غیر مضبوط تعرف بالسماع.**

**ترجمه:** او اوزان دمصدردثلاثی مجردنه محصورندی دامعلومیږی په سماع سره دعربونه.

**تشـریح:** پـدے عبـارت سـره اوزان دمـصـدربیـانـوی دمـصـدراوزان پـه دوه قسـمـه دی:(۱).سـمـاعـی(۲)- قـیـاسـی. د ثـلاثـی مـجردنه سماعی راځی ددے دپاره څه قاعده اوقانون نـدے موضـوع په مختلف اوزانوسره راځی بیادامام سیبویه په نزدباندے دوه دیرش ۳۲وزنونه ددے دپاره راغـلـی دی اوهـغـه صـاحـب دمراح ذکرکړی دی په خپل کتاب مراح کښ اوصاحب دعلم الصیغه په خپل کتاب علم الصیغه کښ څلورڅلویښت ذکرکړی دی منظوماًاوپه مذهب دجمهورو صرافوباندے پدے کښ حصرنشته دے اودویم قسم دمصدرهغه دے چه دهغے دپاره څه خاص وزن وی اوپه سماع پورے څه تعلق نه لری دابیاعام دے که دثلاثی مزیدفیه نه وی اوکه درباعی مجردنه وی اوکه درباعی مزیدفیه نه وی مثال باب افعال اوانفعال اواستفعال دثلاثی مزیدفیه نه دی ددوی مصدرپه وزن دافعال انفعال اواستفعال سره راځی اودرباعی مجرد اورباعی مزیدفیه مصدرپه وزن دفعلل اوتفعلل سره راځی اوپدے نورابواب هم قیاس دی.

**فالمصدران یکون مفعولامطلقایعمل عمل فعله الخ.**

**ترجمه:** پس مصدرکچرے مفعول مطلق نه وی نودے عمل پشان دخپل فعل کوی اعنی الخ.

**تشریح:** پـدے عبـارت سـره مـصـنف عمل دمصدرذکرکوی لکن عمل دده مشروط دے پـدے شـرط سـره چـه دامصدربه مفعول مطلق نه وی ځکه دمصدرمناسبت دے دفعل سره په اشـتـقـاق کـښ اوفـعـل خـوعـمـل کـوی ځـکه وضع شوے دپاره دعمل نومصدرهم عمل کوی دوجـے دمـنـاسـبـت نـه دفـعـل سره لکن کچرے دامصدر مفعول مطلق وو نو عمل به فعل کوی ځکه فعل قوی دے په عمل کښ نوپه نزددوجوددعامل قویه عامل ضعیفه عمل نشی کولے البتـه کـه مـفـعـول مـطـلـق نـائـب فـاعـل اوفعل حذف شوے وو اوقائم مقام دنعل وونوبیاپدے صورت کښ داهم جائزده چه مصدرعامل شی ځکه دانائب دے دفعل نه.

**ولایـجـوز تـقـدیـم معمول المصدرعلیه.** تـرجـمـه : اوجـائـزنـده تـقـدیـم دمعمول دمصدرپه

مصدرباندے. **تشریح** :. پدے عبارت سره مصنف یوه ضابطه ذکرکوی چه مصدرعمل کوی لکن په عمل کښ ضعیف دے نودده معمول په ده باندے نشی مقدم کیدے مثلااعجبنی ضرب زیدعمراپدے مثال کښ زید اوعمردمعمولاتو دمصدرنه دی نوددوی تقدیم په ضرب نشی کیدے نوداسے وئیل چه زیدضرب عمرا اویاعمراضرب زیدداجائزندی اودامذهب دجمهوررو نحاتودے اورضی وائی چه تقدیم د بعضی معمولات دمصدرپه مصدرباندے جائزدی چه هغه ظروف دی ځکه ظروف کښ توسع موجوده ده چه هغه په نورو معمولاتوکښ نشته.

**ویجوز اضافته الی الفاعل الخ.** اوجائزدے اضافت دمصدرفاعل ته الخ.

**تشریح** : استعمال دمصدرپه کلام دعربوکښ په وخت دعمل کښ په دووطریقوسره دے منوّن اوغیرمنوّن پدے کښ اول استعمال دمصدر مختار اوغوره دے ځکه عمل دمصدردوجے دمشابهت نه دفعل سره دے اوکله چه مصدرمنون شی نومشابهت اومناسبت قویه به پیداشی دفعل سره ځکه دے به نکره شی اوفعل په حکم دنکره کښ دے مثال لکه کرهت ضربٌ زیدٌعمرا.اوچه کله غیرمنون شی نودا استعمال نفس جائز دے اګرچه دامشهور اوکثیر الاستعمال دے ځکه پدے کښ مشابهت قویه نه حاصلیږی دمصدردفعل سره اودلته دویمه طریقه ذکرکړے ده بیا اضافت دفاعل کله مصدرته کیږی اوکله مفعول ته اومراددمفعول نه عام دے مفعول به وی اوکه مفعول فیه وی اوکه مفعول له وی لیکن پدے کښ اضافت دمصدرفاعل ته اولی دے داضافت دمصدرنه مفعول ته ځکه اضافت دمصدرفاعل ته داسے دے لکه اسناددفعل فاعل ته اواضافت دمصدرمفعول ته داسے دے لکه اسناددفعل مفعول ته مجازدے نواضافت ددمصدرفاعل ته هم حقیقت دے اواضافت دمصدرمفعول ته مجازدے اوحمل دکلام په حقیقت اولی دے دمجازنه مثال ددے کرهت ضرب زید عمرادامثال داضافت دمصدرفاعل ته دے اومثال داضافت دمصدرمفعول ته کرهت ضرب عمروزیدٌ.

## صوردمصدرعامله (۳)

(۱) کله به معرف باللام وی مصدرعامله مثال عمك حسن التهذیب ابنائَه پدے مثال التهذیب معرف باللام دے اوابنائه لره ئے نصب ورکړے دے.

(۲) کله به مضاف وی مثال یصدنی شکرك المنعم پدے کښ شکرمصدرمضاف ك

منه الی اسم فاعل مصدراو المنعم مفعول به مصدر.

(۳) کلمه به منون وی مثال:واجب علیناتشجیع کل مجتهدپدے مثال کښې تشجیع مصدرمنون کل مجتهدورلره مفعول.

## التمرين لبحث المصدر

| | |
|---|---|
| لايخافون في الله لومة لائم | وقال رب ادخلني مدخل صدق واخرجني مخرج صدق |
| ان ناشئة الليل هي اشدوطأواقوم قيلا | ولولادفع الله الناس بعضهم ببعض |
| لايسأم الانسان من دعاء الخير | تخافونهم كخيفتكم انفسكم |

لايحب الله الجهربالسوء من القول الامن ظلم

**فصل الاسم الفاعل اسم مشتق بمعنى الحدوث** دافصل دے په بیان داسم فاعل کښې اسم فاعل هغه اسم دے چه مشتق شوے وی دفعل نه او وی په معنی دحروث سره.

**تشريح:** پدے فصل کښې مصنف دری ۳ څیزونه ذکرکوی : (۱) تعریف اسم فاعل. (۲)اوزان اسم فاعل. (۳)عمل اسم فاعل.اود هغے دپاره شرائط :

(۱) اوله خبره تعریف اسم فاعل : هغه مصنف ذکرکړے ده په خپل دے قول سره: چه الاسم الفاعل الخ. پس په تعریف کښې لابدی وی دجنس اوفصل نه چه اسم ئے اووے داجنس دے تمام اسماء پکښې داخل شو مشتق فصل دے پدے سره جوامدخارج شواولمن قام به دویم فصل دے پدے سره اسم مفعول خارج شو ځکه لمن وقع علیه الفعل دے اوبمعنی الحدوث دریم فصل دے پدے سره صفت مشبه خارج شوه ځکه هغه په معنی دثبوت سره دے نه معنی دحروث سره.

**وصيغته من الثلاثي على فاعل** اوصیغه داسم فاعل دثلاثی مجردنه راځی په وزن دفاعل باندے.

**تشريح:** پدے عبارت سره هغه دویمه خبره ذکرکوی چه هغه وزن داسم فاعل دے نووے وئیلی دارنگه چه صیغح داسم فاعل دثلاثی مجردنه راځی په وزن دفاعل باندے.

سوال : ستاقاعده منقوضه شوه په صبوراونصبرباندے داخوپه وزن دفاعل ندی؟

**جواب :.** په وزن دفاعل اسم فاعل اکثرراځی.

**وهويعمل عمل الفعل المعروف.** اوداسم فاعل عمل دفعل معروف کوی.

**تشريح :.** پدے عبارت سره هغه دریمه خبره ذکرکوی چه عمل داسم فاعل دے اسم فاعل

دفعل معروف عمل کوی پس کچرے اسم فاعل دفعل لازمی نه وونوفقط فاعل لره به رفع ورکوی اوکچرے دفعل متعدی نه وونوفاعل لره به رفع اومفعول لره نصب ورکوی لکن دعمل داسم فاعل دپاره دوه شرطه دی : ۱- په معنی دحال یااستقبال سره به وی.۲- په یوداشیاء ستوباندے به ئے اعتمادشوے وی. ۱- په مبتداء باندے به ئے اعتمادشوے وی اواسم فاعل به ورلره خبرواقع وی لکه زیدٌ ابوه قائم.

(۲) په ذو الحال باندے لکه جاء نی زیدضاربا‌ابوه عمرا.

(۳) په موصول باندے لکه مررت بالضارب ابوه عمرا

(۴) په موصوف باندے لکه عندی رجل ضارب ابوه عمرا.

(۵) په حرف استفهام باندے لکه اقائم زیدٌ.(٦) په حرف نفی باندے لکه ماقائم زیدٌ.

**دلیل دشرط اول:** چه په معنی دحال یااستقبال سره به وی ځکه چه عمل داسم فاعل دوجے دمشابهت نه دے دمضارع سره اومضارع خوپه معنی دحال اواستقبال دواړوسره راځی نودے به هم په معنی دحال اواستقبال سره وی دپاره ددے چه مخالفت رانشی.

**سوال:** ستاقاعده منقوضه شوه په باسط باندے چه راغلے دے پدے قول دالله تعالی کنبں وکلبهم باسط ذراعیه بالوصیددلته باسط اسم فاعل دے اوعمل ئے کړے دے په ذراعیه کنبں اوحال دادے چه په معنی دماضی سره دے نه په معنی دحال اواستقبال سره.

**جواب:** مرادپه حال اواستقبال سره عام دے چه حقیقتاوی اوکه حکایة وی دلته که حقیقتانه دے اسم فاعل لکن حکایة دے ځکه دلته داحکایت الحال دے.

**دلیل د شرط ثانی:** چه اعتمادبه ئے شوے وی ځکه اصل په عمل کنبں فعل دے اووضع دفعل دپاره دعمل ده اوماسیواددینه چه څه عمل کوی نولوجے دمشابهت نه کوی دفعل سره اودفعل خواعتمادپه فاعل وی نوکوم چه ماسوادفعل نه وی اوعمل کوی ددے دمشابهت دوجے نه هغه په طریقه اولی سره اعتمادپه خپل صاحب کوی دپاره ددے چه وزیت دفرع په اصل رانشی. **لکن** داشرط داعتمادپه مذهب دسیبویه باندے اودبصریانوباندے دے اوپه مذهب داخفش اوکوفیانوباندے هغوی مطلقااسم فاعل عامل گرځوی که اعتمادشوے وی اوکه نه .ځکه هغوی وائی چه نفس مشابهت کافی دے دپاره داعمال.

**وان کان بمعنی الماضی الخ.** اوکچرے اسم فاعل په معنی دماضی سره وو الخ.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف یوه ضابطه ذکرکوی داسم فاعل دپاره اوس کچرے اول شرط منتفی وو یعنی په معنی دحال اویا استقبال سره نه وو بلکه په معنی دماضی سره وو برابره خبره ده چه عین ماضی وی اوکه په ضمن داستمرار کښ وی شرط دادے چه دے به مضاف وی په اضافت معنوی سره پدے سره احترازراغی داضافت لفظی نه پدے صورت کښ اسم فاعل عمل درفع اونصب په مابعدکښ نه کوی بلکه په مابعدته به مضاف وی په اضافت معنوی سره ځکه نشته دے بله طریقه بلکه نشته دے.طریقه دذکرداسم فاعل دپاره بغیرداضافت نه دامذهب دجمهورونحاتودے. **امام کسائی** وائی: چه پدے صورت کښ هم اسم فاعل عمل کوی ځکه دده په نزدباندے دعمل داسم فاعل دپاره شرط ندے چه په معنی دحال اویااستقبال سره وی لکه راغلی دی پدے قول دالله‌تعالی کښ:وکلبهم باسط ذراعیه بالوصیداودغه شان قیدورسره داضافت معنوی نه لګوی بلکه اضافت لفظی به ځکه دادقبیلے داضافت دصفت نه دے معمول خپل ته.

**هـذااذاکان منکرا.** پدے عبارت سره مصنف یوے قاعدے ته اشاره کوی چه کله اسم فاعل په الف لام موصولی سره معرفه وه نوپدے کښ بیاشرط دمعنی دحال اواستقبال نه وی بلکه په مطلق زمانه کښ به عمل کوی برابره ده که زمانه حالی وی لکه الآن چه ورسره اولګوے شی اویاغدا اوامس.

**فصل اسم المفعول اسم مشتق من فعل** دافصل دے په بیان داسمِ مفعول کښ اسم مفعول یواسم دے چه مشتق شوے وی دفعل نه.

**تشریح** : پدے فصل کښ مصنف بیان داموړثلاثه کوی ۱ .تعریف داسم مفعول۲ .وزن داسم مفعول. ۳- عمل داسم مفعول.

اسم مفعول په لغت کښ کارکرده شده ته وائی اوپه اصطلاح کښ ماذکره المصنفؒ اسم مفعول اګرچه په حقیقت کښ مصدردے لکن مفعول ورته پدے وجه وائی هو الذی یفعله الفاعل اودلته ترینه اسم مفعول مراددے الذی فعل به الفعل اووقع علیه الفعل لکه وئیلی شی فعلت به الضرب ای اوقعته علیه بیاحرف جرحذف شواوضمیرمرفوع پکښ مستترشوپدے

عبارت کښې جنس اوفصل اسم ئے چه اووے نوداپه منزله دجنس دے مشتق فصل اول دے پدے سره جوامدخارج شولمن وقع علیه فصل ثانی دے پدے سره اسم فاعل اواسم تفضیل خارج شواوپه تعریف کښې دفعل نه مرادفعل متعدی دے ځکه چه دافعل لازمی ن اسم مفعول نه راځی.

**وصیغته من المجرد ا لثلاثی علی وزن مفعول.**

**ترجمه :** اوصیغه داسم مفعول دثلاثی مجردنه راځی په وزن دمفعول باندے.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف دویمه خبره ذکرکوی: چه هغه وزن داسم مفعول دے پس د ثلاثی مجردونه اسم مفعول راځی غالباپه وزن دمفعول باندے اوکله کله په وزن دفعیل اوفعول هم راځی لکه قتیل اوحلوب.

**ویعمل عمل فعله المجهول.**

**ترجمه :** اواسم مفعول عمل فعل مجهول خپل کوی.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف دریمه خبره ذکرکوی چه هغه عمل داسم مفعول دے اودده دعمل دپاره هم هغه دوه شرطونه دی کوم چه په اسم فاعل کښې ذکردی.

**فائده:** دفعل متعدی اقسام څلوردی:دغه شان داسم مفعول اقسام هم څلوردی:

(۱) متعدی به یك مفعول لکه ضرب اواسم مفعول دده لکه مضروب.

(۲) متعدی به دومفعول لکه اعطی اواسم مفعول دده لکه معطیٰ پدے قسم دفعل کښې اکتفاء په مفعول واحده جائزده. (۳) متعدی به دومفعول چه اکتفاء پکښې په یو جائزنده لکه علم اواسم مفعول دده معلوم. (۴) متعدی به سه مفعول لکه اخبراسم مفعول دده مخبر.

**فصل الصفة المشبهة بالفعل الخ.**

**ترجمه :** دا فصل دے په بیان دصفت مشبه کښې صفت مشبه هم هغه اسم دے چه مشتق وی دفعل لازم نه الخ. **تشریح :.** پدے فصل کښې مصنف بیان داموراربعو کوی :

(۱) تعریف صفت مشبه. (۲) اوزان دصفت مشبه. (۳) عمل دده. (۴) صوردصفت مشبه .

دیته صفت مشبه وائی داصغه داسم مفعول ده دباب دتفعیل نه په معنی دتشبیه ورکولوسره اودده مشابهت داسم فاعل سره دے په تثنیت اوجمعیت اوتذکیر اوتانیث کښې .

په تعریف کښې اسم په منزله دجنس دے من فعل لازم داپه منزله دفصل دے پدے سره اسم فاعل اواسم مفعول متعدیین خارج شواو بمعنی الثبوت دافصل ثانی دے پدے سره اسم فاعل لازمی خارج شو. **سوال** :. ستاقاعده منقوضه شوه په رحیم باندے ځکه داصفت مشبه دفعل لازمی نه مشتق ندے چه رحم دے. **جواب** : لازم عام دے ابتداء وِی اوکه په وخت داشتقاق کښې وی رحم په کسرے دلام سره ابتداء لازم ندے لکن هرکله چه رحم ضمه دعین ته نقل شونو اوس لازمی اوګرځیدو. **سوال** : ضامرطالق په معنی دثبوت دے اواسم فاعل دے نه صفت مشبه

**جواب** : داپه اصل کښې دحدودوډپاره دے اوثبوت ورته عارض دے و العوارض لاتعتبر.

**وصیغتها علي خلاف صیغة اسم الفاعل.** اوصیغه دصفت مشبه مخالف دصیغه داسم فاعل ده.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف دویمه خبره [illegible] دصفت مشبه دے یعنی صیغه دصفت مشبه مخالف ده دصیغه داسم فاعل اواسم مفعول نه یعنی اوزان داسم فاعل اواسم مفعول قیاسی دی اوزان دصفت مشبه سماعی دی لکه دیته اشاره مصنف کړے ده پدے قول خپل سره انماتعری بالسماع لکن صاحب درضی پدے ردکړے دے هغه وائی چه صفت مشبه همیشه ده ماده دلون اوعیب نه همیشه په وزن دافعل رائحی لکه ابیض اسوداعمی اعورداقیاسی دی لهذاداقاعده کلیه ګنړل چه اوزان دصفت مشبه تعرف بالسماع داصحیح نده.

**وهی تعمل عمل فعلها الخ.** اوصفت مشبه عمل دفعل خپل کوی سطلقابغیرد څه شرط نه.

**سوال** :. مطلقادانه معلومیږی چه بغیرداعتمادنه به هم عمل کوی و الحال انهالیس کذلك **جواب** : دعدم قید مطلب داد ے چه پدے قید کښې زمانے نشته دے اوهرچه اشتراط داعتماددے نو هغه شته دے ماسوادلام موصولی نه ځکه هغه داخلیږی په اسم فاعل اواسم مفعول باندے پس صفت مشبه دعمل دپاره شرط واحددے چه اعتمادبه په یوداشیاء خمسوشوے وی.

**ومسائلهاثمانیة عشر الخ.** ترجمه: اوصورتونه دصفت مشبه اتلس ۱۸ دی.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف خلورمه خبره ذکرکوی چه هغه صورتونه دصفت مشبه دی او هغه صورتونه اتلس دی وجه دحصرپکښې داده چه صفت مشبه به یاپه الف لام سره

وی اویابه مجرده ده الف لام نه وی بیاددے دواړومعمول به خالی نه وی یابه مضاف وی اویابه معرف باللام وی اویابه دواړه نه وی پس داشپږ صورتونه شو هرواحدبه یامرفوع وی اویابه منصوب وی اویابه مجروروی پس داټول اتلس۱۸ شواوددے تفصیل دادے کله چه صفت مشبه معرف باللام وی اومعمول ورله مضاف وی نوپدے کښې دری صورتونه دی:

(۱)معمولٌ مرفوع مثال زید الحسن وجهُه(۲)معمول منصوب مثال الحسن وجهَه.

(۳)معمول مجرورمثال الحسن وجهِه اوکه صفت مشبه معرف باللام وواومعمول هم معرف باللام وونوپدے کښې هم دری صورتونه دی:

(۱)معمول مرفوع مثال الحسن الوجهُ(۲) معمول منصوب مثال الحسن الوجهَ.

(۳)معمول مجرور مثال الحسن الوجهِ اوکه صفت مشبه معرف باللام وواومعمول مجردووالف لام اواضافت نه نوپدے کښې هم دری صورتونه دی:(۱) معمول مرفوع مثال الحسن وجهٌ(۲)معمول منصوب مثال الحسن وجهاً.(۳) معمول مجرور مثال الحسن وجهٍ.

پدے صفت مشبه مذکوره کښې چه معرف باللام دے نه۹ صورتونه شواوداسکه چه مجرد عن اللام شی نو هم نه۹صورتونه دی نو مجموعه اتلس۱۸ شو

**وهي علی خمسة اقسام .** اوداصفت مشبه په اعتباردمسائلو اوصورتونوسره چه امتناع اواختلاف اوقبیح اوحسن اواحسن په پینځه قسمه دے:

**منهاممتنع.**

**تشریح :** پدے صورتونو کښې دوه ممتنع دی الحسن وجهه باضافت الصفت الی المعمول مع تجریده عن اللام.داصورت ځکه ممتنع دے چه پدے کښې اضافت دمعرفے نکرے ته شوے دے اودامنوع دے.دویم ممتنع صورت الحسن وجهه باضافت الصفت المعرف باللام الی المعمول مع تجریده عن اللام داصورت ځکه ممتنع دے چه پدے کښې فائده داضافت نده حاصله شوے نه په جانب دمضاف کښې اونه په جانب دمضاف الیه کښې هرچه په جانب دمضاف الیه کښې نوضمیرندے حذف شوے چه استتارئے اوکړے شی په صفت کښې نولهذاداصورت ممتنع دے.

**ومختلف فیها** اویوصورت د اتلسو۱۸ صورتونونه مختلف فیهادیلکه حسن وجهه یعنی په هغه صورت کښې چه صفت مشبه مجردوی دالف لام نه چه مضافوی معمول ته

اودهغـه اضافت ضميرته شوے وی دبصريانوپه مذهب داصورت جائزدے سره دقبح نه ځکه فائده داضافت لفظی چه هغه تخفيف دے په جانب دمضاف اليه اومضاف کښ اوپدے صورت کښ تخفيف حاصل شوے دے په جانب دمضاف کښ په حذف دتنوين سره اوپه مضاف اومضاف اليه کښ تخفيف ندے راغلے ځکه ضميرپکښ ندے حذف شوے اودکوفيانوپه نزدداترکيب جائز دے بغيردقبح نه ځکه دهغوی په نزدباندے فائده داضافت هغه مطلق تخفيف دے اوهغه حاصل شوے دے اوبعض نحات وائی چه داترکيب صحيح ندے ځکه دلته لازميږی اضافت دشی نفس خپل ته اوبعض وائی چه صحيح دے ځکه حسن عام دے ددے وجه نه نوشواضافت دعام خاص ته اوداجائزدے.

**و البـواقی احسن.** **تـرجـمه وتشـريح:.** داتلسو۱۸ نـه چـه دری صورتونـه لری شی نوپينځلس پاتے شی پدے کښ هغه صورتونه چه په هغے کښ يوضميروی برابره خبره ده که په صفت کښ وی اوکه په معمول کښ وی هغه احسن دی اوداسے صورتونه نه۹ دی ځکه داقسم متشتمل دے په محتاج اليه باندے بغيردزيادت نه اودهغه صورتونوتفصيل دادے:

(۱) الحسن الوجهِ په نصب دمعمول اوجرسره اوصفت معرف باللام دے .

(۲) (۳) (۴) حسـن الـوجـهِ صفت پکښ غيرمعرف باللام دے معمول منصوب دے اومجروردے. (۵) الحسن وجهاصفت معرف باللام اومعمول منصوب دے.

(٦) حسن وجهاپه نصب دمعمول سره اوصفت غيرمعرف باللام.

(۷) حسن وجه معمول مجروراوصفت غيرمعرف باللام.

(۸) الحسن وجهه معمول مرفوع اوصفت مشبه معرف باللام.

(۹) حسن وجهُهٗ معمولِ مرفوع اوصفت غيرمعرف باللام.

**وماكان فيها ضميرٌ حسن.** **تشريح :.** اوهغـه صورتونـه چه ضميرپکښ دوه وی هغه حسن دی اوهغه دوه صورتونه دی حسن وجهه په نصب دوجهے سره او الحسن وجهه په نصب دوجهے سره په اول صورت کښ صفت غيرمعرف باللام دے اوپه دويم صورت کښ صفت معرف باللام دے.

**و الضابطة انك متى الخ** **تشريح :.** مصنف پدے عبارت سره صفت مشبه دضميريان کوی

اویـوه ضـابـطـه ذکـرکـوی چه کله معمول دصفت مشبه مرفوع وی پده سره نوبیابه پدے کښی ضـمیـرنـه وی دپـاره ددے چه لازم نشی تـعـدد دفاعل چه یو ضمیراوبل اسم ظاهرپس کچرے داسے شی چه په صفت کښی ضمیروی نو معمول به بیاخالی نه وی یابه پکښی ضمیروی اویابه نه وی که وی نو حسن اوکه نه وی نو احسن.

نقشه دصفت مشبه داتلس صورتونو



**فصل** اسم التفضيل مشتق من فعل يدل على الموصوف بزيادة على غيره.

ترجمه: دافصل دے په بیان داسم تفضیل کښ چه دایواسم دے چه مشتق دے دفعل نه دپاره ددے چه دلالت اوکړی په موصوف سره دزیادت نه په غیرباندے.

**تشریح** : دا اخیرنسے فصل دخاتمے دے پدے کښ مصنف داسم تفضیل بحث اوبیان کوی اودامشتمل دے په امورخمسوباندے:

(۱) تعریف داسم تفضیل. (۲)وزن داسم تفضیل. (۳)شرائط داسم تفضیل.

(۴) استعمال داسم تفضیل. (۵)عمل داسم تفضیل. اول مصنف پدے عبارت تعریف اوکړو داسم تفضیل چه اسم مشتق الخ.

**سوال** : دلته مصنف يدل على الموصوف اووے اولمن قام اولمن وقع عليه اونه وے داسلوب ولے بدل شودماقبل نه؟ **جواب** : اسلوب دماقبل نه بدل شوددے دپاره چه دواړه نوعینولره شامل شی ځکه تفعیل چه ځنګه په فاعل کښ راځی نودغه شان په مفعول کښ هم راځی لکه اضرب اواشهرپه هرتعریف کښ لابدی وی دجنس اوفصل نه دا قید چه اسم دے په منزله دجنس دے اواشتق داپه منزله دفصل اول دے پدے سره جوامد خارج شو اولموصوف دابل فصل دے پدے سره ظرف اواسم اله خارج شوه ځکه مرادپدے موصوف سره زیادت مبهمه دے اوپه دوی کښ ابهام نشته دے بزيادت على غيره دابل فصل دے پدے سره اسم فاعل اواسم مفعول اوصفت مشبه خارج شو. **سوال** : په تعریف داسم تفضیل کښ غالب زائدفاضل داخل شوځکه معنی داسم تفضیل پکښ شته دے.اوحالانکه اسم تفضیل ندے.

**جواب** :. مرادپه زیادت سره زیادت په اصل ددغه فعل کښ دے اوداسماء دلالت کوی په مطلق زیادت باندے نه په هغه زیادت باندے چه په اصل ددغه فعل کښ وی.

**وصيغته افعل** صیغه داسم تفضیل راځی دپاره دمذکرپه وزن دافعل باندے اوپه وزن دفعلی باندے دپاره دمونث.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف دویمه خبره ذکرکوی چه هغه وزن داسم تفضیل دے نوده اسم تفضیل دپاره دوه وزنه راځی ۱ .افعل برائے مذکر۲ .فعلی برائے مونث. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په خیر اوشرباندے دااسم تفضیل دی اوپه وزن دافعل باندے ندی؟

**جواب** : افعل وزن عام دے چه حالاوی اوباپه اعتبارداصل سره وی اودوی په اعتبارداصل سره په وزن دافعل دی ځکه اصل ددوی اخیر اواشردی.

**فلايبنيها الامن الثلاثي المجرد الخ.** اونه جوړېږی اسم تفضیل مګرد ثلاثی مجردنه.

**تشریح** : مصنف پدے عبارت سره دریمه خبره بیانوی داسم تفضیل دبناء دپاره دوه شرطه دی : ۱ .ثلاثی مجردباب.۲ .لون وعیب وماده نه به وی مثاریځ افضل الناس پدے کښې دواړه شرطونه موجوددی دثلاثی مجردنه دے اولون اوعیب والاندے. هرچه شرط اول چه ثلاثی مجردبه وی دپاره ددے چه ممکن اوګرځی وزن دافعل ځکه داصیغه دمذیدنه جوړه ووماثلا استخرج نه نویابه زائدحرف حذف کوواویابه نه که نه حذف کوونووزن دافعل نه جوړېږی اوکچرے حذف کوونوبیافرق نه راځی په مابین دمزیداومجردکښې.اوهرچه دویم شرط چه دلون اوعیب نه به نه وی ولے کچرے دغه وزن دپاره دتفعیل راشی نوالتباس به راشی دافعل صفتی سره لکه احمراصفراعمی اعور.

**سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه په اجهل اوابله باندے ځکه دادواړه مشتق دی دجهل اوبلا هت نه اوددے تعلق دعیب سره دے. **جواب** :. مرادپه عیب سره عیب ظاهری دے اوداعیوب باطنی دی. **سوال** : بیاپه احمق باندے دے اطلاق دشذوذاونه شی؟ **جواب** :. مرادپه عیب سره عیب ظاهری دے عام دے ددینه چه حقیقتاوی اوکه حکماوی اودلته اګرکه عیب ظاهری حقیقی ندے لکن حکماظاهردے ځکه اثارئے ظاهردی لکه وئیلے شی احمق من هبنقه.

**وقياسه ان يكون للفاعل** . اوپه اسم تفضیل کښې دقیاس تقاضاداده چه اشتقاق دده دپاره دفاعل وی یعنی تفضیل دے په فاعلیت کښې وی نه په مفعولیت کښې ځکه که دواړودپاره داصیغه راشی نوبه التباس راشی په فاعل اوپه مفعول کښې اواشرف فاعل دے نوددے وجینه اکتفاء په فاعل اوکړے شوه.اوکله کله دمفعول دپاره راځی لکه اشهر،اعذر،الوم، اشغل.

**واستعماله علی ثلاثة** اواستعمال داسم تفضیل په دریو طریقو سره دے.

**تشریح** : پدے عبارت سره مصنف څلورمه خبره بیانوی چه هغه داسم تفضیل استعمال دے اواستعمال داسم تفضیل په دریو طریقو سره دے : (۱) په اضافت سره لکه افضل القوم.

(۲) په الف لام عهدی سره لکه زید الافضل. (۳) په من سره زیدافضل من عمرو.په

دریو طریقو کښې اصل استعمال په من سره دے بیاپه اضافت سره اوبیاپه الف لام سره.

**ویجوز فی الاول الافراد ومطابقةٌ للموصوف.**

ترجمه : اوجائزدے په اول استعمال کښې افراد دده اومطابقت دده دموصوف سره.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف اول حکم داستعمال بیانوی په اصل استعمال کښې چه اضافت دے دوه طریقے دی(۱).افراددااسم تفضیل برابره خبره ده چه موصوف دده مفردوی اوکه تثنیه وی اوکه جمع وی مثال لکه زیدافضل الناس الزیدان افضل الناس الزیدون افضل الناس ۲)مطابقت دموصوف سره لکه الزیدان افضلا الناس الزیدان افضلوا الناس افرادځکه جائزدے چه دا قسم اسم تفضیل مشابه دے دااسم تفضیل سره چه مستعمل وی په من سره ځکه مفضل علیه ددواړوذکروی اوداسم تفضیل مستعمل په من سره حکم دادے چه دے به همیشه مفرد مذکروی نوددغه مشابهت دوجے نه دلته جائزشواولازم هم ندے ځکه مخالفت ورسره هم موجوددے من وجهٍ.

**وفی الثانی یجب الخ.** اوهرچه استعمال ثانی دے چه هغه استعمال دااسم تفضیل دے په الف لام سره دے پدّے کښې مطابقت ضرورے دے یعنی دااسم تفضیل مطابقت دموصوف سره لازم اوواجب دے ځکه چه اصل مطابقت دے په مابین دموصوف اوصفت کښې مثال زیدالافضل الزیدان الافضلان الزیدون الافضلون.

**وفی الثالث یجب کونه مفردامذکراابدا.** اوهغه دریم استعمال دااسم تفضیل چه په من سره وی نودے به همیشه مفردمذکروی یعنی عدم مطابقت.ځکه کچرے مطابقت راوستے شی نوعلامه مخکښې یادمن راوړے شی اویاروستودمن نه که مخکښې دمن نه راوړے شی نولازمیږی اجراء دعلامے په وسط دکلمے کښې حکمااودانا جائزدی اوکه روستودمن نه راوړے شی نولازمیږی اجراء دعلامے په کلمه اخری باندے حقیقتااودا هم باطله ده.

**وعلی الاوجه الثلاثة یضمرفیه.** اوپه دریواړواستعمالاتو کښې اسم تفضیل همیشه په ضمیرمستترکښې عمل کوی بغیردځه شرط نه اوپه اسم ظاهرکښې عمل نکوی برابره خبره ده چه فاعل اسم ظاهروی اوکه ضمیربارزوی اویامفعول وی البته په یوترکیب کښې اسم تفضیل په اسم ظاهرکښې عمل کوی تفصیل ددے دادے :

**اسم تفضيل** په دوه قسمه عمل كوى(۱)-عمل نصب.(۲)- عمل رفع.عمل دنصب عام دے چه(۱) بناء برمفعوليت وى (۲)اويابنابر ظرفيت وى(۳) اويابنابر حاليت وى (۴) اويابنابرتميزوى هرچه عمل دنصب بناء برمفعوليت دے نودادسره نه واقع ندے ځكه مفعول داسم تفضيل نه وى مګرمفضل عليه وى اومفضل عليه چه كله مذكوروى نومجروروى اوهرچه عمل دنصب بناء برظرفيت ياحاليه ياتميزنو هغه واقع دے بلاشرطيه ځكه پدے كښ دعمل دپاره داسم تفضيل ادنى رائحه پكارده اوپه اسم تفضيل كښ معنى دفعل موجوده ده لكه زيداحسن منك اليوم راكبا اوعمل درفع هم په دوه قسمه دے ۱ .يوپه ضميركښ .۲- په اسم ظاهركښ په ضميركښ عمل درفع واقع دے بلاشرطه ځكه عمل په ضميركښ عمل دے په مقدركښ اوهغه اسهل دے قوت دعامل ته محتاج ندے اوهرچه عمل په اسم ظاهركښ نودامشروط دے په شروط ثلاثوسره ځكه اصل په عمل كښ فعل دے اوماسوادفعل نه چه كوم شى عمل كوى لوجے دمشابهت نه كوى دفعل سره اواسم تفضيل دفعل سره مشابه ندے ځكه دده دپاره داسے فعل نشته دے. چه هغه په معنى دده وى په زيادت كښ.**شروط :**

(۱) چه اسم تفضيل په لفظ كښ صفت ديوشى وى اوپه اعتباردمعنى سره دمتعلق دشى. صفت وى. (۲) شرط اوهغه متعلق داسے شى وى چه په يواعتبارسره مفضل وى او په بل اعتبارسره مفضل عليه وى.(۳) شرط اسم تفضيل به منفى وى يعنى حرف نفى به پرے داخلے وى.مثال مارئيت رجلا احسن فى عينيه الكحل منه فى عين زيدو التفصيل فى المطولات كما قال به المصنف و ههنا بحث.



## تمرین اسم فاعل واسم مفعول وصفت مشبه واسم تفضیل

| | |
|---|---|
| انی جاعل فی الارض خلیفة | کلبهم باسط ذراعیه بالوصید |
| ان الله غنی حمید | لخلق السموٰات اکبرمن خلق الناس |
| ومن اصدق من الله قیلاً | ان اللهغفور الرحیم |
| انااکثرمنك مالاواعزنفرا | عسی ان تحبوا شیئاوهوشرلکم |
| کل ذلك کان سیئه عندربك مکروها | ان الله سمیع علیم |

## القسم الثانی فی الفعل

وقدسبق تعریفه واقسامه ثلاثة ماض ومضارع وامر.

ترجمه: دویم قسم ددریواقساموډکتاب نه په بحث دفعل کښ دے او تعریف دفعل مخکښ په سرډکتاب کښ تیرشوے دے اواقسام دفعل دری دی ماضی اومضارع اوامر.

**تشریح**: هرکله چه فارغ شومصنف دبحث داسم نه نوشروع ئے اوکړه په بحث دفعل کښ پدے عبارت سره تقسیم دفعل کوی اقسام ثلاثوته چه ماضی اومضارع اوامردی:

**سوال**: تقسیم دشی فرع دتعریف ده اول دشی تعریف اوشی روستوئے تقسیم کیږی اودلته تقسیم دفعل کړی اقسام ثلاثوته اوتعریف نه کوی. **جواب**: مصنف دااعتراض دفع کړے دے پدے عبارت سره وقدسبق تعریفه حاصل داشو چه منم تقسیم فرع دتعریف وی خوتعریف دفعل مخکښے یوځل تیرشوے دے بیائے اعادے ته ضرورت نشته دے.

**سوال**: علامات دفعل خو هم تاذکرنکړل ؟ **جواب**: همدغه شان علامات دفعل هم مصنف مخکښ ذکرکړی دی فلانعیده پس فعل په خپل کورکښ په دری قسمه دیوجه دحصرپکښ داده چه دافعل به خالی نه وی یابه خبروی اویابه انشاء وی کچرے خبروونو بیابه خالی نه وی یابه په اول دده کښ یو حرف دحروف زوائدواربعونه وی که قسم اول وونو مضارع اوکه ثانی وونو ماضی اوکه انشاء وه نو امر.

**سوال**: اقسام دفعل دری شو۱ .ماضی۲ .مضارع۳ .امرماضی ولے مقدم شوه په اخویه باندے ؟- **جواب**: ماضی اصل ده مضارع اوامرپه اعتبارداشتقاق سره مضارع جوړیږی دماضی نه بالذات اوامرجوړیږی دماضی نه بالواسطه.۲- **جواب**: زمانه ماضی مقدمه ده

دمضارع اوامرنه نوماضی ځکه مقدم شوه په اخویه باندے.

**الاول الماضی وهوفعل دل علی زمان قبل ذمانك.**

ترجمه: اوقسم اول ددریوقسمونودفعل نه ماضی ده اودا هغه فعل دے چه دلالت کوی په هغه زمانه باندے چه هغه مقدمه وی ستاپه زمانه باندے اے مخاطبه.

**تشریح**: ماضی په اعتباردلغت صیغه داسم فاعل ده مشتق ده دمضی نه په معنی تیروالے سره اوپه اصطلاح کښ ماذکرفی الکتب یعنی ماضی هغه فعل دے چه دلالت کوی په هغه زمانه چه مقدمه وی دزمانے حالی نه. **سوال**: امس ته ماضی اووایه ځکه تعریف دماضی ورله ورځی اوحالانکه دافعل ماضی نده. **جواب**:. مراد دلته فعل ماضی ده نه زمانه ماضی امس خارج دے دتعریف دفعل ماضی نه ځکه امس اسم دے اوفعل ندے.

**فوائدقیود**: دا لفظ دل علی زمان جنس دے شامل دے معرف اوغیرمعرف لره اوقبل زمانك فصل دے پدے سره دتعریف دماضی نه فعل مضارع اوامرخارج شو.

**سوال**:. دتعریف دماضی نه خارج شوبعض افراددماضی لکه ان ضربتَ ضربتُ داماضی دلالت په راتلونکے زمانه کوی نه په زمانه ماضی باندے داخل شوپه تعریف دماضی کښ مضارع چه لم یضرب داپه معنی دماضرب سره دے مضارع دلالت کوی په زمانه ماضی باندے: **جواب**:. ماضی به دلالت کوی په تیره شوے زمانه باندے وضعاپدے قیدسره په تعریف دماضی کښ ان ضربتَ ضربت داخل شو ځکه دوی په استسعمال کښ دلالت په زمانه استقبالی کوی نه وضعااولم یضرب خارج شودماضی دتعریف نه ځکه داهم په اعتبارداستعمال سره چه لم جازمه پرے داخل شوے دے دلالت کوی په زمانه ماضی باندے نه په اعتباردوضع سره.

---

**وهومبنی علی الفتحة وان لم یکن معه ضمیرمرفوع متحرك ولاواو کضرب ومع الضمیر المرفوع المتحرك علی السکون کضربتُ وعلی الضم مع الواو کضربوا.**

ترجمه: اودافعل ماضی مبنی به وی په فتحه کله چه نه وودده سره ضمیرمرفوع متحرك اونه واولکه ضرب اوسره دضمیرمرفوع متحرك نه ماضی به علی السکون وی لکه ضربتِ ُ اوپه ضمه باندے به مبنی وی سره دواونه لکه ضربوا.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف بیان دبناء دماضی بیانوی او هغه دری قسمونه دی
۱.مبنی علی الفتحه۲.مبنی علی السکون۳.مبنی علی الضمه.

(۱) مبنی علی الفتحه ذکرکوی پدے عبارت خپل سره منبیٌ علی الفتحه ان لم یکن معه ضمیرمرفوع متحرك ولاواو کضرب.

(۲) مبنی علی السکون ذکرکوی پدے عبارت خپل سره:ومع الضمیرمرفوع المتحرك علی السکون کضربتَ (۳) مبنی علی الضمه ذکرکوی پدے عبارت خپل سره:وعلی الضمه علی الواوکضربوا پس ددے دپاره دلیل:پس زده کړه داخبره چه اصل په افعالوکښ بناء ده بیااصل په بناء کښ سکون دے اصل په افعالوکښ بناء ده ځکه په فعل کښ معانی مقتضیه داعراب نه وی موجودچه هغه فاعلیت اومفعولیت اواضافت دے اواصل په بناء کښ سکون دے ځکه بنأ ضدداعراب دے اوسکون ضدحرکت دے اواعراب په حرکت وی نوبیابه ضرورپه سکون وی دپاره دحصول دتقابل په مابین داعراب اودبناء کښ پس ماضی مبنی شوه دوجے دقاعدے مذکورے نه چه معانی مقتضیه للاعراب پکښ موجودنۀ په خپل اصل ماضی پاتے ده چه بناء ده :

**سوال :** ماضی دے بیامبنی علی السکون هم شی ځکه اصل په افعالوکښ بناء ده اواصل په بناء بناء علی السکون ده. **جواب :.** ماضی مشابهت لری داسم سره پدے شان سره چه ماضی په ځائے داسم فاعل واقع کیږی مثال لکه مررت برجل ضرب په ځائے دمررت برجل ضارب ددے مشابهت له وجے نه ماضی مبنی برحرکت شوه ځکه داسم اعراب بالحرکت وی .

**سوال :** هرکله چه ماضی مشابهت لری داسم فاعل سره نوپکارده چه ماضی معرب شی لکه مضارع چه لوجے دمشابهت نه داسم فاعل سرُه معرب شوے ده.**۱- جواب :.** مضارع ځکه معرب شوے ده چه ددے مشابهت تامه دے داسم فاعل سره چه هغه لفظامعنامشابهت دے لفظاپه حرکاتواوحروفواوسکناتوکښ اومعناپه معنی دحال اواستقبال کښ اواسم معرب وونومضارع هم معرب شوه اوهرچه ماضی ده نودهغے مشابهت داسم فاعل سره ناقص دے اومشابهت ناقصه باعث نشی جوړیدے دپاره داعراب. **جواب ۲ :** مضارع معرب شوے ده ځکه اسم فاعل ورلره اعراب ورکړے دے په عوض دعمل کښ چه کوم مضارع ورکړے

دے

**سوال** : ماضی ولے مبنی برفتحه شوه؟ **جواب** :. فتـحه اخف الحرکات ده دپاره دحصول دخفت ماضی برفتحه مبنی شوه. **سوال** : ستـاقـاعده منقوضه شوه په رضی اوپه دعا باندے دادواړه صیغے دماضی دی مبنی برفتحه ندی بلکه په اخرددوی کښں الف دے.

**جواب** : پـه فتـحـه کـښں تـعـمیم دے چه لفظاوی لکه په ضرب کښں اوکه تقدیراوی لکه په رضی اوپه دعا کښں.

اومـصـنف دپاره دبناء علی الفتحه دپاره شرط ذکرکړے دے چه داماضی به دضمیرمرفوع متحرك چه ضمیربارزدے خالی وی اوهم دواړنه چه داهم ضمیردے.

**تحقیق المقام** :. زده کـړه داخبـره چـه ماضی به خالی نه وی یابه ضمیربارزورسره وی یابه نـه وی کـه ورسـره نه وولکه ضرب اوضربت بسکون التاء نودقسم دماضی به مبنی برفتحه وی اوکـه ضمیربارزورسره وونوبیابه خالی نه وی یابه ساکن وی داضمیراویابه متحرك وی که ساکن وونـوبیابه خالی نه وی یابه الف وی اویابه واو وی که الف وونوبیابه مبنی برفتحه وی لکه ضربا اوضـربتـااوکـه ساکن واو وو نوبیابه مبنی برضمه وی مثال لکه ضَربوا اوکه داضمیرمتحرك وو مثـال لـکه ضربن چه صیغه ده جمع مونث غائب ده ترضربنا چه صیغه دمتکلم مع الغیرده چه ددینـه اتـه(۸)صیـغـی جـوړیـږی نـو مـاضی به مبنی برسکون وی ولـے که مبنی شی په حرکت نولازم بشی توالی داربعه حرکاتو متوالیاتو اوداباطل ده. نقشه :




**و الثانی المضارع** وهوفعل یشبه الاسم باحدحروف اتین فی اوله لفظا الخ.

ترجمـه: دويـم قسم دفعل مضارع ده اودا هغه فعل دے چه مشابه وی داسم فاعل سره په سبب دزيـادت ديو دحروفو دمضارعت چه حروف اتين دی.په اول دمضارع كښ او دامشابهت به هم لفظاثابت وی اوهم معنا الخ.

**تشريح**: هـركـلـه چه فارغ شو مصنف داول قسم دفعل نه چه ماضی ده نوشروع ئے اوکړه په دويم قسم دفعل کښ چه مضارع ده اودامضارع مقدمه کړه په امرباندے ځکه مضارع اصل دامرده امـرماخوذدے مضارع نه دے اومضارع ماخوذمنه ده اوماخوذمنه مقدم وی دماخوذنه تبعا نوپس په ذکرکښ هم مقدم شوه دپاره دموافقت دذکردطبع سره.

مـضـارع پـه لغت كښ صيغه داسم فاعل ده دباب مفاعله نه په معنى دمشابهت سره اومضارع تـه ځـكـه مـضـارع وائی چه دامشابه ده اسم فاعل سره اومعنى اصطلاحی مصنف ذکرکړے ده پدے عبارت سره چه هوفعل يشبه الخ.

**سوال**: پـه تـعـريف دمـضـارع كښ يـزيـد اويشـكـر چه علمين داخل شوددوی په اول كښ يـو حـرف دمضارعت دے چه ياء ده اوسره ددينه فعل مضارع نده؟ ۱- **جواب**: مراددمضارع نه فـعـل مضارع ده اويزيد اويشكراسمين دی. ۲- **جواب**: دلتـه قيدپه اعتبارداصْل وضع سره ده چـه يو حرف به داتينونه په اول دمضارع كښ وی اويزيداويشكرپه اعتبارداصل وضع سره افعال دی لكن دعارض داستعمال نه نقل شوی دی فعليت نه اسميت ته.

**سوال**: مـصـنف ولـے تـعـريف مشهـورنـدے ذكـركړے دمـضـارع؟ چـه هغـه داسـے دے الـمـضـارع مادل على زمان الحال والاستقبال اويامشهورتعريف داسـے دے: المضارع مافى اول احد الـزوائد الاربع . **جواب**: مـصـنف چـه كـوم تـعـريف ذكـركړے چـه هوفعل يشبـه الاسم الـخ .ددينـه وجـه دتسـمـيـه دمـضـارع رامعلـو ميږی نوددے تعريف ترجيح وه په نوروتعريفنو باندے مشابهت دمضارع داسم فاعل سره لفظا اومعنا

**مـشـابـهـت لـفـظـی** (۱):فـی عـدد الحروف(۲). فی الحركات(۳).فی السكنات(۴).فی دخول لام التاكيدمثال يضرب وضارب لَيضربُ لَقائم.

**مـشـابـهـت معنوی** (۱): اشتـراكهـمـا فی زمان الحال و الاستقبال(۲)- وقوع ددواړوصفت د نكرے مثال مررت برجل يضرب نه ځائے دمررت برجل ضارب.

تخصيص المضارع بزمان الحال په لام ابتدائيه تاكيديه سره راځي ان زيدالقائم تخصيص المضارع بزمان الاستقبال په سين اوسوف سره راځي لكه سيضرب اوسوف يضرب.

**سوال** : لام ابتدائيه تاكيديه مختص كوي مضارع په زمانه حال پورے اوسوف په استقبال پورے مختص كوي نوپكارده چه دواړه جمع نشي ستاقاعده منقوضه ده پدے قول دالله تعالى چه :"ولسوف يعطيك ربك فترضى" اوهمدارنګه"ولسوف اخرج حيا.

**جواب** :. دلته لام برائے نفس تاكيد دپاره دے فقط دمعنى دحاليت نه پكښ تجريدشوے دے.

---

**وحروف المضارعت مضمومة في الرباعي نحويدحرج وينحرج الخ.**

ترجمه : اوحروف مضارعت به مضموم وى په رباعى كښ يعنى چه ماضى په څلوروحروفوسره وى لكه يدحرج اوينحرج.

**تشريح** : دمضارع معلوم دحرف مضارعت دپاره درى احوال دى ۲ مشهورچه اول ضمه دويم فتحه چه دامصنف ذكركړى دى اويو حالت دكسرے دے غيرمشهورچه دالغت دبنى اسددے لكن داهم مشروط دے په يوشرط سره چه ددے بيان به روستوراشي .**سوال** :. تخصيص دضمے په رباعى پورے صحيح ندے ځكه په ثلاثي كښ هم حروف مضارعت مضموم مونړلے شوى دى لكه اكرم يكرم داثلاثي مزيدفيه دے اوحرف مضارعت پكښ مضموم دے **سوال۲** —: مثال كښ يخرج مصنف ذكركړے دے چه په اصل كښ وائى ياخرج دے دامطابقت ندے دممثل سره ځكه ممثل رباعى دے اوداثلاثي مزيدفيه دے.

**جواب** : دسوالونو نه دادے چه مرادځمونږه درباعى نه معنى لغوى ده چه څلورحرفيزبه وى ماضى دهغے برابره خبره ده كه رباعى مجردوى لكه يدحرج اوكه ثلاثي مزيدفيه وى لكه يكرم چه ماضى دده څلورحرفيزده چه اكرم دے اويخرج چه ماضى دده اخرج دے.

**سوال** : پدے معنى سره يخرج رباعى ندے نوولے مصنف وائى چه اصل دده ياخرج دے.

**جواب** : پدے سره ئے اشاره كړے ده هغه قاعدے حرفى ته اوددے دپاره نه ذكركوى چه حروف دده رباعى ندى لكن داجواب ضعيف دے.

**جواب ۲** : دماضى حروف په مضارع كښ موجود دى اودلته داسے نده ځكه ددے

داربـاعـی هـم اخـرج دے دے سـره دهـمـزے نـه رباعی لغوی دے اویخرج کښې دری حروف دی خ.ر.ج.داربـاعـی لـغـوی هـم نـدے نـو مصنف دده اصل ذکرکوی چه رباعی شی چه اصل ددے یـاخـرج دے نـودقـاعـدے مـوافـق هـمـزه حـذف شـوه اوحـروف مـضـارعـت هم دقاعدے موافق مضموم شو.

**ومفتوحة فیماعداه کیضرب ویستخرج.**

**تـرجـمـه :** اوحـروف مـضـارعـت بـه مـفـتـوح وی مـاسـوی درباعی نه چه هغه *ثلاثی مجرددی* :اوخماسی اوسداسی حرفیز ماضی والـے وی.

**تشریح** :. پـدے عـبـارت سره دویم حال دحرف مضارعت دحرکت بیانوی چه هغه فتحه ده اوپه مخکښې عبارت سره بیان دحال دحرف مضارعت دحرکت دضمه وو.

پـس حـرف مضارعت به مفتوح وی په هغه افعالوکښې چه غیروی درباعی نه برابره خبره ده که ثلاثی وی اوکه خماسی وی اوکه سداسی وی حروف دماضی.

دلیل دضمه درباعی دپاره دادے چه رباعی فرع دثلاثی ده اوضمه فرع دفتحه ده

نـوضـمـه مـناسب ده درباعی سره په فرعیت کښې نولوجے دمناسبت مذکوره نه ورته ضمه ورکړے شوه اورباعـی فـرع دثـلاثـی ده په اعتباردوجهینوسره وجه اول ثلاثی قبل اومقدم وی درباعی نه پس لوجے دقبلیت اوتقدم نه ثلاثی اصل اورباعی فرع دی.

۲.وجه ربـاعـی مـحـتـاج دی پـه وجـودکښې ثلاثی ته اوثلاثی محتاج الیه دی اومحتاج الیه اصل وی دمحتاج نه نوددے وجینه ثلاثی اصل اورباعی فرع دی.

**اودلیل** دفـتـحـه دثلاثی مجردځکه چه ثلاثی مجرد کثیر الاستعمال دی اوکثرت استعمال تقاضادخفت کوی نودپاره دحصول دخفت ورته فتحه ورکړے شوه.

اودلیل دخماسی اوسداسی حرفیز دماضی دفتحه دحرف مضاعت ځکه ددوی حروف زیات دی نـوا ثـقل دی که ضمه ورته ورکړے شی نو لازم به شی جمع د ثقلین نودوجه دثقل درفع دپاره ورته فتحه ورکړے شوه.

اودریم حالت دحرکت دحرف مضارعت کسره ده چه دامذ هب اولغت دبنی اسددے. مصنف نـدے ذکرکړے هـغـه دادے چه دوی وائـی چه کـومـه مـاضـی مکسور العین وی اویاپه اول

دماضی کښې همزه مکسوره وي نو حرف مضارعت به مکسورکولے شي دپاره ده دلالت په کسرے دماضی بانده مثال داول لکه په باب دعلم کښې مضارع يِعلمُ تِعلمُ اِعلمُ نِعلمُ وائی اومثال ددویم لکه په باب دانصرف کښې مضارع يِنصرفُ الخ وائی لکن دامذهب اولغت مرجوح دے کمافی کتب الصرف فليطلب التفصيل فی مراح الارواح.

**وانمااعربوه مع ان اصل الفعل البناء لمضارعته ای لمشابهته الاسم .**

**ترجمه :** اویقینامضارع دوی معرب کړے ده سره ددینه چه اصل په افعالوکښې بناء ده لوجے دمشابهت ددے مضارع نه داسم سره.

**تشريح :** پدے عبارت سره مصنف دوه خبرے ذکرکوی:۱ . بیان داعراب مضارع چه مضارع معرب ده۲ .علت اعراب مضارع پدے قول سره چه لم شابهته الاسم په اصل کښې داعبارت دمصنف واقع دے په جواب دسوال دسائل کښې سوال داسے واردیږی چه اصل په افعالوکښې بناء نو مضارع فعل دے ولے مبنی ندے؟نو مصنف جواب ورکړوپدے عبارت سره حاصل دجواب دادے چه اصل په افعالوکښې اګرچه بناء ده لکن بعض اوقاتوکښې عدول داصل نه شوے وی له وجے دعارض نه لکه دلته په مضارع کښې عدول شوے دے داصل نه چه بناء ده دفعل مضارع اعراب ته لوجے دعارض والے نه چه هغه مشابهت تامه دے داسم فاعل سره.

**سوال :** بیاپکارده چه ټولے صیغے معربے شي ځکه داعلت داعراب په ټولوصیغودمضارع کښې موجوددے چه مشابهت تامه اوحالانکه صیغه دجمع مونث دمضارع مبنی وی. **جواب :** ددے سوال جواب مصنف ورکړے دے په خپل عبارت سره چه وذلك وان لم يتصل الخ حاصل دجواب دادے چه مشابهت تامه په مضارع کښې علت داعراب دے لکن په مالم يمنع مانع قيدباندے مقيددے اوچه مانع موجودوی نوبیابه مضارع مبنی وی اګرکه مشابهت تامه پکښې موجودوی اونون تاکید اُونون جمع مونث مانع داعراب دی ځکه ددوی شدت اتصال دمضارع سره په منزله دجزء دکلمه ګرځیدلے دے پس کچرے اعراب پدے مضارع جاری کوے نودابه خالی نه وی یابه دنون تاکید نه مخکښې جاری کولے شي اویابه روستوپس که صورت اول وی نواجراء داعراب په وسط کښې به جاری شي اوداباطل دے اوکه روستوجاری کړے شي نولازمیږی اجراء داعراب داحدی الکلمتين په کله اخری باندے ځکه

دانون حقیقتاکلمه اخری ده اوداهم باطل دے.

اوهرچه نون دجمع مونث دے نوپدے کبنں هم مانع موجوددے چه دانون دجمع مونث دمضارع سره مشابه دے دنون دجمع مونث دماضی سره اوهلته خوماقبل دنون نه ساکن دے خوپه مضارع کبنں به هم ماقبل دنون نه ساکن کولے شي.

**واعرابه ثلاثة انواع رفع ونصب وجزم نحوهويضرب ولن يضرب ولم يضرب .**

**ترجمه :** اواعراب دمضارع په دری قسمه دے اول رفع دویم نصب دریم جزم.

**تشریح :** مطلق اعراب بالحرکت په څلورقسمه دے: اول رفع دویم نصب دریم جرڅلوم جزم اواعراب داسم په دری قسمه دے: اول رفع دویم نصب دریم جراواعراب دفعل هم په دری قسمه دے: اول رفع دویم نصب دریم جزم پس رفع اونصب مشترك اعراب داسم اوفعل دی اوهرچه جزم دے نودامختص دے په فعل پورے لکه جرچه مختص دے په اسم پورے اوجه داختصاص دجرپه اسم پورے په خپل ځائے کبنں چه علامات داسم دی بیان شوے ده اووجه داختصاص دجزم په فعل پورے ددے بیان به روستوراځی.

وجه دحصرپه اعرابات ثلاثه دفعل کبنں داده چه عامل ددے اعراب به خالی نه وی یابه لفظی وی اویابه معنوی وی که لفظی وو نویابه ناصبه وی اویابه جازمه وی که اول وونونصب اوکه ثانی وونوجزم اوکه عامل ددے معنوی وونورفع مثال درفع لکه هويضرب اومثال دنصب لکه لن یضرب اومثال دجزم لکه لم یضرب.

**فصل فی اصناف اعراب الفعل وهی اربعة.** دافصل په بیان داصنافوداعراب دفعل مضارع کبنں دے اوهغه اصناف څلوردی:

**الاول ان يكون الرفع بالضمة و النصب بالفتحة و الجزم بالسكون ويختص بالمفرد الصحيح غير المخاطبة تقول هويضربُ ولن يضربَ ولم يضربْ.** اول قسم اعراب دفعل مضارع دادے چه رفع ددے به په ضمه سره وی اونصب ددے به په فتحه سره وی اوجزم ددے په سکون سره وی اوداقسم داعراب مختص دے په هغه مضارع پورے چه مفرد صحیح وی غیردواحدمونث مخاطبه نه.

**تشریح :** پدے صنف اول کبنں اعراب بالحرکت راځی اوپه احوال ثلاثوکبنں راځی ځکه

داقسم داعراب مضارع نه اصل .م داعراب نه اصل دے. نوپس ورکړه اصل داعراب اصل دمضارع ته چه مذکوره ده. سوال : ستاقاعده منقوضه ده په یقول اویبیع اویخاف باندے چه دامضارع صحیح نده اوداقسم داعراب پکښی راغلے دے . جواب : دلته مرادځمونږه دصحیح نه صحیح دنحاتو مراددے چه په اخردے کښی به حرف علت نه وی اوداامثله مذکوره هم دنحاتوپه نزدصحیح دی تعریف منقوض ندے امثله مذکوره لره شامل دے حاصل داشو چه مراد د الصحیح نه مقابل دناقص دے نه مقابل دمثال اواجوف اودمضارع ناقص اعراب روستوبیانیږی دارنګه مراد دصحیح غیرد مونث مخاطبه دے ځکه ددے اعراب پشان داعراب دتثنیه دے چه روستو هغه بیانیږی.

**اعراب فعل مضارع صحیح غیر المخاطبه**

| مضارع | صیغه | مثال حالت رفعي | مثال حالت نصبي | مثال حالت جزمي |
|---|---|---|---|---|
| یَضْرِبُ | واحدمذکرغائب | هویضرب | لن یضرب | لم یضرب |
| تضرب | واحدمونث غائب | هي تضرب | لن تضرب | لم تضربُ |
| تضربُ | واحدمذکرمخاطب | انت تضربُ | لن تضربَ | لم تضربُ |
| اضربُ | واحدمتکلم | لااضرب | لن اضربَ | لم اضربُ |
| نضربُ | تثنیه وجمع متکلم | لانضربُ | لن نضربَ | لم نضربُ |

پدے صیغوکښی اعراب رفع اونصب اوجزم دی:

**و الثانی ان یکون الرفع بثبوت النون و النصب و الجزم بحذفهاویختص بالتثنیة و الجمع المذکرو المفردة المخاطبة صحیحاکان اوغیره.**

**ترجمه:** دویم قسم اعراب دمضارع دادے چه رفع به په ثبوت دنون سره وی اونصب اوجزم په سقوط دنون سره وی اوداقسم مختص دے په تثنیه پورے برابره خبره ده که تثنیه دغائب وی اوکه دمخاطب وی اوبیاکه مذکروی اوکه مونث وی اوهم دارنګه مختص دے په جمع پورے برابره خبره ده چه جمع مذکرغائب وی اوکه جمع مذکرمخاطب وی اوهمدارنګه مختص دے په واحده مونث مخاطبه پورے اوبیاداجمع اوتثنیه اومخاطبه عام دی که صحیح وی اوکه

ناقص وی ناقص واوی اوکه یائی وی اوکه ناقص الفی وی.

**تشریح** :. پدے عبارت سره صنف ثانی دمضارع ذکرکوی په اعتبار داعراب سره اوددے اعراب مضارع رفع ځکه په ثبوت دنون سره ده ځکه پدے صنف پورے الحاق دضمیرپارزه راغلے دے چه واو په جمع کښ اوالف په تثنیه کښ اویاپه واحده مونثه مخاطبه کښ نوددوی په وجه داخردمضارع په منزله دوسط ګرځیدلے دے اووسط محل داعراب ندے نو هرکله چه اجراد اعراب پرے نشوه کولے نوداعراب په عوض کښ په اخرکښ نون زیات شوپه ځاے درفع باندے ددے وجینه دیته نون اعرابی وائی اوپه حالت رفعی کښ په مفرداتوکښ ثبوت دحرکت وی نوپدے صنف دمضارع کښ به هم ثبوت دنون وی په حالت رفعی کښ اوپه حالت نصبی اوجزمی کښ سقوط دنون به وی ځکه جازم په مفرداتوکښ حرکت ساقطوی چه حرکت پکښ موجودوی نوچه حرکت موجودنه وی په کوم صیغوکښ نوعوض دحرکت به موجودوی هغه به غورځوی چه نون دے بالضروره اوحالت نصبی تابع دجزمی دے ځکه جزم په افعالوکښ داسے دے لکه جرپه اسماؤکښ اوپه اسماء په تثنیه اوجمع کښ نصب تابع دجروی نوپدے افعالوکښ په هم نصب تابع دجزم وی نوځکه په حالت نصبی اوجزمی کښ سقوط دنون به وی.

## القسم الثانی من المضارع

| مضارع☆ | صیغه ☆ | مثال حالت رفعی☆ | مثال حالت نصبی☆ | مثال حالت جزمی |
|---|---|---|---|---|
| یضربان | تثنیه مزکرغائبین | همایضربان | لن یضربا | لم یضربا |
| تضربان | تثنیه مونث غائبتین | هماتضربان | لن تضربا | لم تضربا |
| تضربان | تثنیه مذکر مخاطبین | هماتضربان | لن تضربا | لم تضربا |
| تضربان | تثنیه مونث مخاطبتین | هماتضربان | لن تضربا | لم تضربا |
| یضربون | جمع مذکرغائبین | هم یضربون | لن یضربوا | لم یضربوا |
| تضربون | جمع مذکرمخاطبین | انتم تضربون | لن تضربوا | لم تضربوا |
| تضربین | واحدمونث حاضر | انتِ تضربین | لن تضربی | لم تضربی |

ددے پشان تثنیه اوجمع اومخاطبه دناقص واوی اویای او الفی هم دی لکه لم یدعوا لم یدعو لم تدعی لم یرمیا لم یرموا لم ترمی لم ترضی لم یرضیا لم یرضو لم ترضی.

پدے اوو ۷ صیغو کښې نون په حالت رفعي کښې به باقي وي او په حالت نصبي او حالت جزمي کښې به ساقط وي.

**و الثالث ان يكون الرفع بتقدير الضمة و النصب بالفتحة لفظا و الجزم بحذف اللام الخ.** اودریم قسم اعراب دفعل مضارع دادے چه رفع به په تقدیر دضمه سره وي او نصب په فتحه لفظي سره او جزم په حذف دلام سره وي الخ.

**تشريح:** پدے عبارت سره دریم صنف ذکرکوی دمضارع چه په یو حالت کښې به اعراب تقدیري وي چه حالت رفعي دے او په حالت نصبي کښې به فتحه لفظي وي او جزم به په سقوط دلام سره وي. ځکه حالت رفعي به په تقدیردضمه سره وي چه په اخرددے کښې واو اوياء ده او ضمه پدوي ثقيله ده نو مقدره به وي په حالت درفع کښې او هرچه فتحه دحالت نصبي ده نو داخفيفه ده پدوي باندے په حالت جزمي کښې به واو اوياغورځيږي ځکه جازم حرکت غورځوي په اخرکښې چه وي او چه نه وي نو هغه غورځوي چه مناسب وي دحرکت سره چه هغه داحروف علت دي. **القسم الرابع من المضارع ناقص واوي ويائي.**

| مضارع☆ | صيغه | ☆ مثال حالت رفعي | ☆ مثال حالت نصبي | ☆ مثال حالت جزمي |
|---|---|---|---|---|
| يدعويرمي | صيغه واحدمذكر غائب | هويدعوهويرمي | لن يدعولن يرمي | لم يدع لم يرم |
| تدعوترمي | صيغه واحدمونث غائبه | هي تدعوهي ترمي | لن تدعولن ترمي | لم تدع لم ترم |
| تدعوترمي | صيغه واحدمونث مخاطبه | هي تدعوهي ترمي | لن تدعولن ترمي | لم تدع لم ترم |
| ادعوارمي | صيغه واحدمتكلم | ادعو ارمي | لن ادع لن ارمي | لم ادع لم ارم |
| ندعونرمي | صيغه تثنيه وجمع متكلم | ندعو نرمي | لن ندعوَلن نرميَ | لم ندع لم نرم |

پدے پینځه صیغو کښې په حالت رفعي کښې تقدیردضمه به وي او په حالت نصبي کښې فتحه لفظي به وي او په جزمي کښې سقوط دحرف علت او تثنيه او جمع مذکر ددوی او واحدمونث مخاطبه پشان دصحيح دي په اعراب کښې کمامر.

**و الرابع ان يكون الرفع بتقدير الضمة و النصب بتقدير الفتحة و الجزم بحذف اللام ويختص بالناقص الالفي الخ.** اوڅلورم قسم اعراب دفعل مضارع دادے چه رفع به په تقدیردضمه سره وي او نصب به په تقدیردفتحه سره وي او جزم به په حذف دلام سره وي

اومختص دے داقسم په ناقص الفی پورے.

**تشریح :** پدے عبارت سره صنف رابع ذکرکوی دمضارع په اعتبارداعراب سره چه حالت رفعی اونصبی کښں تقدیرابه وی څکه اخیرددے کښں الف دے اوهغه ساکن وضعی دے حرکت وربانذے راوړل متعذردی نوددے وجینه په حالتینو کښں به اعراب تقدیری وی اوجزم به په حذف دلام سره وی څکه جازم غورځوی حرکت اوچه حرکت بیانه مومی نوغورځوی هغه چه مناسب ن وی دحرکت سره چه حروف علت دی اوالف دحروف علتو نه دے.

القسم الرابع من المضارع ناقص الفی

| مضارع☆ | صیغه | ☆ مثال حالت رفعی | ☆ مثال حالت نصبی | ☆ مثال حالت جزمی |
|---|---|---|---|---|
| یرضي یسعي | واحدمذکرغائب | هویرضي وهویسعي | لن یرضي لن یسعي | لم یرض لم یسع |
| ترضي تسعي | واحدمونث غائب | هي ترضي وهي تسعي | لن ترضي لن تسعي | لم ترض لم تسع |
| ترضي تسعي | واحدمذکرمخاطب | انت ترضي و انت تسعي | لن ترضي لن تسعي | لم ترض لم تسع |
| ارضي اسعي | واحدمتکلم | ارضي واسعي | لن ارضي لن اسعي | لم ارض لم اسع |
| نرضي نسعي | تثنیه وجمع متکلم | نرضي ونسعي | لن نرضي لن نسعي | لم نرض لم نسع |

پدے پینځه صیغوکښں په حالت رفعی اونصبی کښں تقدیرضمه اوفتحه به وی اوپه جزمی کښں سقوط دلام به وی.

## تمـــــرین

ان تصوموا خیرلکم

لن تجدلسنت الله تحویلا

لن یدخل الجنة الامن کان

ان تنصرالله ینصرکم

ان تعودوا نعد

لاتختصمه الذی

لاتهنوافی ابتغاء القوم

لاتزکواانفسکم

فلینظر الانسان مماخلق

وان تعفو اقرب للتقوی

لن اکون ظهیرا للمجرمین

حتی یرجع الینا موسی

ماکان الله لیذر المومنین

لن یؤتیهم الله خیرا.

**فصل** **المرفوع عامله معنوی وهو تجرده عن الناصب والجازم نحو هو يضرب ويغزو ويرمی ويسعى.** مضارع مرفوع عامل ددے معنوی وی چه هغه خالی والے دمضارع دے دعامل ناصبه اوجازمه نه لکه هو یضرب الخ.

**تشریح :** هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دمواضعو اربعو داعراب دمضارع نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دعواملو دمضارع کښ پس عوامل دمضارع دری ۳ دی :

(۱)**عامل** رافعه. (۲) **عامل** ناصبه. (۳) **عامل** جازمه.

**عامل** ناصبه **عامل** جازمه دمضارع عوامل لفظیه دی

او**عامل** رافعه دمضارع **عامل** معنوی دے.

## د نحاتو اختلاف په عامل معنوی دمضارع کښی:

زده کړه دا خبره چه په عامل معنوی دمضارع کښ دوه مذهبه دی: (۱)-کوفیان(۲).بصریان **کوفیان** وائی عامل معنوی دفعل مضارع عبارت دے دتجرد دمضارع دعواملو ناصبو اوجازمه نه **بصریان** وائی عامل معنوی دفعل مضارع عبارت دے دوقوع دمضارع په موقع داسم باندے مثال جاء نی رجل یضرب رئیت رجلا یضرب مررت برجل یضربُ پدے مثالونو کښ مضارع په ځائے داسم باندے ده چه ضارب دے نو داسے وئیلے شی جاء نی رجل ضارب الخ اوکوم شی چه واقع شی په ځائے دغیر نو دهغه دپاره حکم دغیر وی نو حکم داسم اعراب دے نو حکم دمضارع اعراب شو لکن مطلقا نه بلکه اقوی او اسبق اعراب داسم مضارع ته ورکړے شو چه هغه رفع ده او رفع اسبق او اقوی اعراب داسم دے ځکه دا رفع اعراب دفاعل دے او فاعل مقدم وی په تمامو معمولاتو باندے دفعل او اقوی دے فاعل دتمامو معمولاتو دفعل نه مصنف دلته مذهب دکوفیانو مختاره کړے دے .نو ځکه ئے اووئیل چه هو تجرده عن الناصب والجازم او دا مذهب ئے ځکه دلته مختاره کړے دے چه ددوی په مذهب څه اعتراض نه راځی. (۱).په بعضی مواضعو کښ وقوع داسم په ځائے داعراب باندے نه وی لکه کله چه مضارع صلهٔ دموصول واقع شی مثال الذی یضرب نو دلته یضرب په ځائے دضارب ندے واقع ځکه صله دموصول جمله وی او ضارب مفرد دے.

(۲)- په مضارع سین اوسوف داخلیږی لکه سیضرب اوسوف یضرب اسم پدے ځائے کښ نه

راځي چه سین اوسوف پرے داخل شي داشي نشي وئیلے چه سضاربٌ اوسوف ضاربٌ.

(۳)- مـضـارع خبردکاددافعال مقاربه واقع کیږي لکه کادزیدان یخرج اودلته اسم فاعل نه راځي داسے نشي وئیلے کادزیدخارجا کادزیدقائماڅکه خبردکاد اسم فاعل نه وي.

بـصـریـان وائـي اوددے نـه جـوابونه ورکوي اوداول اعتراض نه جواب دادے چه دیضرب په ځاے ضارب پـه صـلـه دمـوصـول کښې واقع کیږي پدے شان سره چه ضارب به خبرمقدم شي دمبتـداء مـوخرے نـوتـقـدیرداسے شو الذي ضارب هوپس داهم جله شوه چه هوضمیرورسره راشي اوددویـم اعتـراض نـه جـواب دادے چـه سیـضـرب اوسـوف یـضرب کښې دانسے نده چه دامـضارع فـقـط واقـع ده پـه ځاے داسـم بـغیردسین اوسوف نه چه اعتراض پرے راشي بلکه دامضارع سره دسین اوسوف نه مجموعه په ځاے داسم واقع دے چه په دغه ځاے کښې وقوع داسم فاعل صحیح ده.

اوددریم اعتراض نه جواب دادے چه اصل په خبردکادکښې اسم دے بیادااصل متروك کړے شوے دے پـه استـعـمال کـښې اوددے پـه ځاے مضارع راځي.لکه دامضارع واقع ده په ځاے داسم بانـدے ځـکـه چه اصـل پـدے کـښې راوړل داسم فاعل وو نودامضارع واقع ده په داسے مـوضـع کـښې چـه هـغـه صـالـح دے دپاره دوقـوع داسـم پـه اعتبارداصـل سره مثـالـونـه څلورذکرکړیدي اومثال دمضارع صحیح دے چه قسم اول دمضارع دے په اعتبارداعراب سره پـه اقسـام اربـعه کښې چه هغه یضرب دے. .. دویـم مثـال دناقص واوي دے اودریم مثال دناقص یائي دے چه داقسم ثالث دمضارع دے چه هغه یغزواویرمي دي اوڅلورم مثال دناقص الفي دے چـه داقسـم رابـع دمـضـارع دے پـدے امثـلوکـښې عـامـل مـعـنوي دے چـه رفع ددوی بنابرخبریت ده دهومبتداء دپاره.

---

**فصل** المنصوب عامله خمسة احرف ان ولن وکي واذن وان المقدرة الخ.

**ترجمه:** مضارع منصوب عامل ددے مضارع پینځه دي:۱ .ان ملفوظ۲ .لن۳ . کي۴. اذن ۵.انْ مصدریه.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دعامل رافعه دمضارع نه نوشروع ئے اوکړه په عامل ناصبه دمضارع کښې اودا پینځه دي :

اصـل عـامل پدے حروفو کښې عند الجمهور ''انْ'' دے ځکه دے مشابه دے داَنَّ مفتوحة الهـمـزه سره چه حرف دحروف مشبـه بالفعل نه دے لفظاًاومعناًاو هر چه مشابهت لفظي دے نـو هغه په فتحه دهمزه کښې دے په دواړوکښې همزه مفتوحه ده او هر چه مشابهت معنوی دے نـو دادواړه حروف مـصـدريـه دي يـعـنـي مدخول په تاويل دمصدرسره ګرځوي پس هرکله چه ان ناصبه مصدريه مشابه شود اَنَّ سره لفظاًاومعناًنو اَنَّ خوعمل کولودنصب نوانْ به هم دنصب کـوی لـکـن فـرق دادے چه انْ نـاصبـه مـصدريه په فعل کښې عمل کوی اواَنَّ په اسم کښې عمل کوی ځکه درجه دمشبه کمه وی دمشبه به نه نو هرکله چه ان مشابه شوداَنَّ سره اوعمل دنصب دوجے دمشابهت نه کوی دحرف مشبه بالفعل سره.نو اَنْ اصـل شوپه عمل کښې اوباقي حروف ناصبه عمل دنصب کوی داحمل دی په انْ باندے نوشو هغه فرعه.

**سوال** : هـرکله چه عمل دانْ ناصبه د اَنَّ حـرف مشبـه بالفعل نه شونوداًاستعاره دمستعيرنه شوه ځکه اَنَّ عـمل لوجے دفعل نه کوواوداًباطله ده. **جواب** : استـعـاره دمستعيرنه باطله ده په هغـه وخت کښې چه مستعيرپشان دمستعارمنه باندے نه وی اوچه کله په منزله دمستعارمنه باندے وی نـو بيـاداًاستـعـاره صـحيح ده اويدے مقام کښې مستعيرپه منزله دمستعارمنه دے ځکه اَنَّ حـرف مشبـه بـالـفـعـل لـوجے دمشابهتَ نه دفعل سره قوت موندلے دے پشان دفعل نواستعاره ترينه صحيح ده.

دويـم دحـروف نـاصبـه دفـعل مضارع نه لن دے پدے کښې دوه اختلافه دی:(۱).په صورت دلـن کـښې(۲).پـه معنی دلن کښې.په صورت دلن کښې دری مذاهب دی:سيبويه وائی چه داکلمه برأسهاده څه تغيرپکښې ندے واقع شوے (۲).مذهب دفراء دے هغه وائی چه لن په اصل کښې لا وو الف پـه نـون ساکنه سره بدل شونولن شو(۳)مذهب دخليل دے هغه وائی لن په اصل لأن وو همـزه ترينه حذف شوه پس مکتوب غيرمقرؤشولوجے دالتقاء ساکنين نه نو الف هم حذف شولـن شـو.(۲)- او پـه مـعـنـی دلـن کـښې دوه مـذهبـه دی اهل السنت و الجماعت ۲- معتزله مذهب داهـل السنت و الجماعت دادے چه لن دپاره دتاکيد دنفی دے اوتابيدپکښې نشته دے اومعتزله وائی: چه په لـن کـښې تـابيدنفی دے اوحق مذهب داهل السنت و الجماعت دے دليل ددوی داايت دے لـن ابـرح الارض حتـی يـاذن لـی ابـی پدے ايت کښې حتی دپاره دانتهاء دغايه دے

نـوکـه لـن د تـابـیـدشی نولازم به شی تناقض په مابین داول دکلام کښی اوداخردکلام کښی و التفصیل فی المطولات.

اودریم حرف دحروف ناصبه دفعل مضارع نه "کی" دے کی راځی دپاره دسبب یعنی ماقبل دده سبب دے دپاره دمابعدمثال اسلمت کی ادخل الجنت نوماقبل دکی نه چه اسلام دے سبب دے دپاره دمابعددکی چه دخول الجنت دے.

اوڅلورم حرف دحروف ناصبه دفعل مضارع اِذن دے لکهٔ اذن یغفرالله لك پدے مثال کښی یغـفرمضارع ده یغفرالله مضارع ده اذن ورته نصب ورکړے ذے لکن دده دعمل دپاره دوه شرطه دی:١ .ما بـعـدده بـه مـعـمـول دماقبل نه وی ٢ .مابعدده به مستقبل وی داذن په صورت کښی اختـلاف دے دوه٢ مـذهـبـه دی:١ .سیبـویـه وائـی داکـلمه برأسهاده خه تغیرنه قبلوی ٢ .مذهب دبعـضـی نحاتودے هغه وائی اذن په اصل کښی اذوو داظرف لازم الاضافت دے نومضاف الیه ترینه حذف شوپه عوض دهغه کښی تنوین راوړلے شوبیاداتنوین لیکلے شوے دے په صورت دنون ساکنه باندے. پینځم حرف دحروف ناصبه دفعل مضارع نه اَنْ مصدریه دے.

وتقدیر اَنْ فی سبعة مواضع بعدحتی الخ.

**ترجمه :** اوتقدیردان ناصبه مصدریه کیدے شی په او٧مواضعو کښی:

(١) حتی (٢) لام کی (٣) لام جحد (٤) فا (٥) واوصرف (٦) اَوْ (٧) واوعطف.

**تشریح :** پدے مـواضـع سبـعـه کـښی دنحاتواختلاف دے چه داحروف په خپله مابعدته نـصـب ورکـوی، اوکـه ددوی نـه بـعـدبـه ان مـقـدره عـمـل دنصب کوی پدے کـښی دوه مذهـبـه دی.١ کـوفـیـان٢ .بـصـریان مذهب دبصریانوداده چه ان مقدره پس ددے حروف سبعه نه نصب ورکوی فعل مضارع له پس بناء ددوی په مذهب باندے حروف ناصبه دفعل مضارع پینځه دی ان مـقـدره جـداقـسـم دے لـکـه دلتـه مصنف هم داسے وئیلے دی چه المنصوب عامله خمسه احرف اوکه چرته ان مقدره جداقسم اونګرلے شی لکه په نظم کښی چه راغلی دی شعر:

ان ولن پس کی اذن این چارحرف معتبر نصب مستقبل کنداین جمله دائم اقتضا

اومـذهـب دکـوفـیـانـوداده چه داحـروف سبـعـه پـه خـپـلـه نصب ورکوی فعل مضارع لره بغـیـردتـقـدیـردان نـه پـس بـنـاپه مذهب ددوی باندے حروف ناصبه دفعل مضارع دولس ١٢ دی

پینـځـه چـه مـصـنـف ذکـرکـړی دی پـدے عبارت سره وعامله خمسه احرف اووه ۷ روستوپـدے عبارت سره ذکـرکـړی چـه وتـقـدیـران فـی سبعــه مـواضـع الخ.اول ددغـه حروفونـه چـه تقدیردان روستـوترینه کیدے شی حتی دے مثال اسلمت حتی ادخل الجنت دعبارت تقدیرداسے دے حتی ان ادخل الجنت.

دویـم ددغـه حروفونه لام کی دے مثال قام زیدلیذهب دعبارت تقدیرداسے دے قام زیدلان یذهب لام کی دیته وائی چه په معنی دکی سره وی پدے شان سره چه دلالت به په سبب کوی چه ماقبل دکی نه سبب به دمابعدوی لکه پدے مثال مذکوره کښ قیام دسبب دذهاب دے.

دریـم ددغـه حـروفونه لام جحددے مثال ماکان الله لیعذبهم تقدیردعبارت داسے دے ماکان الله لان یـعـذبهـم جـحـدپـه لـغـت کښ انکارته وائی نو معنی لام جحدلام دانکاراوپه اصطلاح کښ عبارت دے دهغه لام نه چه راغلے وی دپاره دتاکیددنفی دکان.

**فرق دلام** کـی لـفـظااومعنافرق لفظی دادے چه لام جحدراځی پس دنفی دکان نه اولام کی داسے نـدے فـرق مـعـنوی دادے لام کی راځی دپاره دتعلیل چه ماقبل دده به علت اوسبب وی دپاره دمـابـعـداوپـه سقـوط دده سره بـه خـلل راځی په اصل معنی کښ او لام جحدراځی دپاره دتـاکـیـد دنـفـی دکـان اوپه سقوط دده سره به څه خلل نه راځی په اصل معنی کښ ځکه دادپاره دتاکیددے اوتاکیدامرزائددے په اصل معنی باندے.

**دلیل دادے:** ددے دریـو حـروفـونـه چـه لام کی حتی اولام جحددی روستوان ولے مـقـدرکـولے شی ځکه دادریواړه حروف حروف جاره دی اوحروف جاره داخلیږی په اسم باندے اوهـرکـلـه چـه روسـتـوددوی نه فعل مضارع راشی نو هلته به ان مقدرکولے شی دپاره ددے چه دمضارع نه مصدرجوړشی اودخول ددوی وربانـدے صحیح شی.

څلورم حرف ددغه حروفونه فاء ده چه واقع وی په جواب دامورستوکښ:

(۱)امر (۲) نهی: (۳)استفهام (۴) نفی (۵) تمنی (٦) عرض.

مثال د امر: اسلم فتسلم تقدیردعبارت داسے دے اسلم فان تسلم .

اومثال د نهی: لاتعص فتعذب تقدیردعبارت داسے دے لاتعص فان تعذب.

اومثال د استفهام: هل تعلم فتنجوتقدیردعبارت داسے دے هل تعلم فان تنجو.

اومثال دنفی : ماتزورنافنکرمك تقدیر دعبارت داسے دے ماتزورنافان نکرمك.

اومثال د تمنی: لیست لی مالافانفقه تقدیر دعبارت داسے دے لیست لی مالافان انفقه.

اومثال دعرض : الاتنزل بنافتصیب خیرا تقدیر دعبارت داسے دے فان تصیب خیرادلیل پدے مواضعو کښ پس دفانه تقدیردان به ځکه وی چه دافادعطف دپاره ده اوماقبل ددے نه جمله انشائیه معطوف علیهاده اومابعددفانه جمله خبریه معطوفه ده نو لازمیږی عطف دجملے انشائیه په جمله خبریه باندے چه تقدیردان اونشی اوداباطله ده پس ان مقدرشو نومابعد مفرداوګرځیدونو عطف صحیح شو.

سوال : بیاهم عطف صحیح ندے ځکه عطف دمفردراغے په جمله باندے اوداناجائزدے

جواب : ماقبل دفاء نه به هم مفردواغستے شی چه مصدردے نوعطف دمفردپه مفردبه شی. سوال : حصرپه اشیاء ستوکښ صحیح ندے ځکه دری مواضع نورهم دی دعاء مثال لکه اللهم اغفرلی فافوز ولاتاخذنی فاهلك.

۲.تحضیض کښ مثال لولاانزل علیه ملك فیکون معه نذیرا.

۳.په ترجی کښ لعلی ابلغ الاسباب اسباب السمٰوات فاطلع الی اله موسی.

جواب : په دعاء کښ لاناهیه نه وی په امرکښ داخله ده اوکه لاناهیه ورسره وی نوپه نهی کښ داخله ده.اوتحضیض مندرج دے په فعل کښ ځکه تحضیض مستلزم دے نفی دفعل لره. ترجی : مندرج ده په تمنی کښ لوجے دقرب ددے دواړونه.

سوال : ستا قاعده منقوضه شوه په فاستریحا باندے ددے فانه روستونصب واقع دے په تقدیردان سره اودافانده واقع روستودامورستونه. شعر:

ساترك منزلی لبنی تمیم والحق بالحجازفاستریحا

جواب : داشاذدے لوجے دضرورت شعری نه ددے دپاره څه اعتبارنشته دے پدے حصرنه ماتیږی.

پینځم حرف ددے حروفو نه "واو"دے چه واقع وی په جواب دامورستوکښ امثله هم هغه مذکوره دی لکن دفاء په ځائے به واو راوړے شی مثال اسلم وتسلم ای اسلم وان تسلم الخ اودلیل هم هغه مذکوردے، اودے واوته واوصرف وائی اوداعبارت دے دهغه واونه چه پدے

سره به مابعدپه ماقبل عطف شوے وی اودده په معطوف کښ به صلاحیت نه وی چه هغه شی چه په اول دمعطوف علیه کښ راورے شوے دے راواپس اواعاده اوکړی مثال لکه داقول دشاعرشو.شعر:

لاتنـه عـن خـلـق وتـاتـی مثلـه  عـارعـلیك اذا فـعـلـت عـظیم

پدے شعرکښ تنه صیغه دامر ده معطوف علیه ده اوپه اول باندے لاناهیه داخل دے نولاتنه ترینه جوړشواولاتاتی مثله پرے عطف دے نودالاناهیه چه په ده سره معطوف علیه داخل شوے دے دده راوړل اواعاده صحیح نده په معطوف باندے ځکه داسے به بیااووئیلے شی لاتاتی نولازم به شی خلاف دمقصودنه ځکه مقصوددلته دادے چه خلق مه منع کوه دبدواخلاقونه چه ته ئے په خپله کوے یعنی چه ته په خپله بداخلاقی کوے اوخلق دبدواخلاقونه منع کوے نوستادپاره لوی شرم دے نودامعنی صحیح ده.پس کچرته په تاتی باندے لاناهیه اعاده شی پس معنی به داشی چه ته خلق دبدواخلاقونه مه منع کوه اوپخپله هم بداخلاقی مه کوه اوکچرے داکار اوکړے نودابه ستادپاره لوی شرم وی نودامعنی خلاف المقصودده بلکه خلاف الواقع ده ځکه داکارشرم ندے بلکه ښه کاردے پدے شعرکښ دواونه روستوان مقدردے چه اصل عبارت داسے دے وان تأتی دتأتی نه به اتیان مصدرجوړشی.حاصل دشعرداسے شونهیك واتیانك عارعلیك عظیم.

شپږم حرف ددغه حروفونه واودے چه په معنی دالی سره به وی اویابه په معنی دالاسره وی ددوی نه روستوبه ان ځکه مقدروی چه الی حرف جردے او الاحرف استثناء دے اودوی دواړه په اسم داخلیږی اودلته په فعل باندے داخل دی نولابدی شوه دتقدیردان نه دپاره دتاویل دمصدر.

**سوال** : دلته تکرارلازم شوبناء پدے چه اوپه معنی دالی انُ اویاداِلّا انُ سره دے پدے کښ اَن مذکوره دے اوبل ان مقدره شو. **جواب** : مراد دلته دمصنف دادے چه اوبه دلته په معنی دالان اویاد اِلّا انُ سره وی اوان به ورسره مضموم وی اوخارج به وی دمفهوم داونه نوبناپدے نه لازمیږی تکرارځکه ان مضموم هم دغه ان مقدره دے بیاپه مذهب دسیبویه باندے اوپه معنی دالااستثنائیه سره دے مثال لالزمنك اوتعطینی حقی ای لالزمنك فی جمیع الاوقات الاوقت ان تعطینی حقی اومذهب دجمهورودادے اوپه معنی دالی سره دے ای لالزمنك الی

اعطائك حقی دلته دمصنف دواړه مذهبین راغلی دی.

اوشپږم حرف ددغـه حـروف نـه واو عـاطفـه دے چـه معطوف علیـه اسم صریحی وی اومعـطـوف فـعـل وی.مثـال اعـجبـنـی قیـامك وتـخرج نوپـس ددے واوعـاطفـه نـه روستوان مـقـدرکولے شی دپاره دصحت دعطف داسم په اسم باندے اوکه ان مقدر نه شی نوعطف دفعل به اوشی په اسم باندے.اوداباطل نو اصل عبارت داسے دے اعجبنی قیامك وخروجك.

**ویجوزاظهاران مع لام کی نحواسلمت لان ادخل الجنة الخ.**

**ترجمه :** اوجائزدے اظهاردان سره دلام کی نه لکه اسلمت لان ادخل الجنت.

**تشریح :.** دان ناصبه مصدریه دپاره مواضع اربعه دی:

(۱) تقدیران فی سبع مواضع کماتقدم.(۲)اظهاران جوازاً.(۳)اظهاران وجوبا دادرے واړه مصنف ذکرکړی دی .(۴)ممتنع اظهاران دا مصنف ندے ذکرکړے ملاجامی ددے ذکرکړے دے.

(۱) دتـقـدیردان مواضـع مخکښ تفصیلاذکرشو(۲)اوهرچه اظهاران جوازانو دامصنف ذکرکړی دی په خپـل دے عبارت سره.ویجوز اظهاران الخ.او هغه دوه ځایونه دی: (۱)- سره دلام کی نه لـکـه اسلـمـت لان ادخـل الـجـنت چه دیته لام کی زائده وائی دلته اسلمت متعدی بنفسه دے نـو حـاجت نه لری تعدیت دلام ته(۲) او همدرنګه پس دواو حرف عاطفه نه مثال اعجبنی قیامك وان تـخرج دا د صحت دعطف دپاره ویجب اظهاران فی لام کی الخ دادویم صورت داظهاران دے چـه دلتـه اظهـاران وجـوبـاوی اودابه په هغه ځاے کښ وی چه لام کی متصل شی دلانافیه سره مثال لئلایعلم دلته به اظهاردان واجب وی ددے دپاره چه لازم نه شی توالی دلامینو.

مـواضـع دامتـنـا ع دظهـوردان بلکه تقدیران به واجب وی هغه مواضع (۱).روستودلام جحد نه (۲).حتی(۳).واوصرف( ۴).او(۵).فـاء.ددے ددے حروفـونـه بـه روستـوتـقدیردان واجب وی اواظهاردان به ممتنع وی دلیل ددے دادے هرچه پس دلام جحدنه ظهوردان ممتنع ندے ځکه لام جـحـدنـه داخلیږی په اسم صریحی باندے چه روستوترینه ان ظاهرشی اودفعل مضارع نه اسم جوړکړی.امتـنـا ع دظهـوران پـس دحتـی نـه دپـاره دوه(۲) استعمالـه دی:(۱).بمعنی کی(۲).بـمـعـنـی الی کـوم حتـی چه په معنی دکی سره وی نوداخلیږی په اسم صریح باندے نـوحـاجـت نشتـه دے اظهـاردان تـه اوهرچه حتی دے چه په معنی دالی سره دے نودے حمل

دے په قسم اول بانـدے په امتناع داظهاردان کښ .او امتنـاع داظهاردان کښ پس دواو صرف اوفـاو اونـه ځکه داواو دپاره دجمعیت دے نو تقاضاکوی دنصب دمابعد چه دانصب تصریح شی په سببیت بانـدے اواودپاره دانتهـاء دے نـودے هـم تقاضادنصب کوی دمابعددپاره ددے چه تصریح شی په انتهاباندے نوپس داحروف ثلاثه اګرچه عوامل دنصب ندی ځکه عامل دنصب په دری واړوکښ ان مقدردے لیکـن ددے وجے نه چه دادری واړه تقاضادنصب کوی نودوی داسے دی لکـه عـوامـل نـوکـچرے ددوی نه روستوان ظاهرکړے شی نواوبه ګرځی په منزله دتواردعاملینوپه معمول واحده باندے نوددے وجینه اظهاردان ممتنع دے.

**واعلم "انْ" الواقعة بعد العلم ليست هي الناصبة للفعل المضارع الخ.**

**تـرجمه :** پـوهــ شـه چه یـقـینـا چـه ان واقـع شـوے دے پـس دعلم نه (یعنی افعال یقین نه)داناصبه مصدریه نه وی بلکه مخفف من المثقل وی.

**تشریح :** پـدے عبارت سره مصنف بیان دیوے قاعدے کوی اواصل داعبارت جواب دے ددے سوال نه : چه انْ دحروف ناصبه نه شمارل صحیح ندی ځکه ان ناصبه داخل شی په بعض اوقـاتـو کښ په فعل مضارع باندے اومثال دنصب نه کوی لکه علمتُ اَن سیقوم .یالکه ان ربك یعـلـم ان سیـکـون منکم مرضیٰ پدے دواړوامثلوکښ ان په مضارع داخل دے اوعمل دنصب ئے ندے کړے ځکه یقوم اویکون مرفوع دی نو مصنف جواب ورکړے دے پدے عبارت سره چه واعلم الخ. اوددے دپاره ئے یوه قاعده ذکرکړه چه په هرځاے کښ ان ناصبه مصدریه نه وی بلـکـه کله انْ مخفف من المثقل وی یعنی په اصل کښ انّ په تشدیدسره وی نودویم نون ترینه حذف شوے وی نو انْ ترینه جوړشوے وی چه مشابه وی دان ناصبه مصدریه سره.

**قاعده** داده : چـه ان پـس دافـعـال قلوب نه راشی برابره خبره ده چه علمت وی اوکه وجدت وی اوکه رئیت وی ددوی نه روستوبه انْ مخفف من المثقل راځی نه ان ناصبه مصدریه ځکه دافعال په معنی دیقین سره دی اوپه ان مصدریه مخفف من المثقل کښ معنی دیقین ده ددوی دیوبل سره مـنـاسبت شتـه دے اوهـرچـه ان نـاصبـه مـصدریه دی هغه به ددوی نه روستوراځی ځکه ان ناصبه مصدریه روستودطمع اورجاء دے اوپدوی کښ دایقینی ده چه ددوی په مابین کښ تضاددے.

**سوال :** فـرق بـه څـنـګه ددوی په مابین کښ کولے شی؟. **جواب :** جـواب دان مخفف من

المثقل نه روستوبه په مضارع سين اوسوف اوقد حرف نفي چه لم اولادي داخل وي مثال سين ؛علم ان سيكون منكم مرضى مثال سوف علمت ان ان سوف يقوم زيدٌ مثال قدليعلم ان قدابلغوامثال لم علمت ان لم تقم. مثال لا حرف نفي علمت ان لاتقوم.

**سوال** : زيادت ولے كوے دافرق خوددے افعالونه معلوميږي ؟ . **جواب** : ددے دپاره چه دا حروف عوض شي دهغه نون نه چه حذف شوے وي ددے ان مخففه نه . **سوال** : عكس دے اوشي چه ان ناصبه مصدريه نه روستودے داحرف زيات شي. **جواب** : ان ناصبه په عمل كښ ضعيف دے سره دفصل نه دده اود معمول كښ عمل نشي كولے.

---

**وان الواقعة بعد الظن جازفيه الوجهان ان تنصب بهاوان تجعلها كالواقعة بعدالعلم نحوظننت ان سيقوم.** اوهغه ان چه واقع شوے وي پس دظن نه(يعني دافعال شك نه)نوپدے كښ دواړه احتمالين صحيح دي ١ .ان مصدريه٢ .اوان مخفف من المثقل.

**تشريح** : جوازدوجهين ځكه دے هرچه احتمال دناصبه مصدريه دے ځكه دان ناصبه مصدريه دظن اوهغه افعال چه دده په معنى باندے وي لكه حسبت اوخلت دے مناسبت شته دے دوي دپاره دطمع اورجاء دي اوپه ان كښ هم دغه معنى ده اوهرچه دويم احتمال دے چه ان مخفف من المثقل به وي په معنى دعلمت شي اوعلمت نوددوي ، نه روستوان مخفف من المثقل راځي.

**قاعده** : ان واقعه روستودرجوت اوطمعت اوخشيت اوخوفت اوشكلت اووهمت اوعجبت ان ناصبه مصدريه به وي،نه ان مخفف من المثقل ځكه داافعال مذكوره منافات نه لري دان ناصبه مصدريه سره اوان مخفف من المثقل به نه راځي روستوددے افعال نه ځكه هغه راځي روستودعلمت نه اودهغه افعال نه روستو چه په معنى دعلمت وي اودوي داسے ندي.

## تمرين لبحث حروف ناصبه لفعل مضارع

| | |
|---|---|
| ماكان الله ليعذبهم | ليغفرلك الله ماتقدم من ذنبك. |
| حتى يرجع الينا موسى | فيحل عليكم غضبي، حتى يميز الخبيث من الطيب |
| ربنااطمس على اموالهم واشدد على | لكي لاتحزنوعلى مافاتكم |
| قلوبهم فلايؤمنواحتى يروا العذاب الاليم. | وان تعفواقرب للتقوىٰ. |
| لايقضى عليهم فيموتوا | لن اكون ظهيرا للمجرمين |

علم ان سيكون منكم مرضىٰ. وان تصوموا خير لكم، لن تجد لسنة الله تبديلا.

**فصل** المجزوم عامله لم ولما ولام امر ولا النهي و كلم المجازاة الخ.

فعل مضارع چه مجزوم وی نو عامل ددے لم اولما اولام امر اولا ناهيه دی اوكلمات دجزاء دی.

**تشريح :** هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دعوامل ناصبه دفعل مضارع نه نوشروع ئے اوكړه په عوامل جازمه دفعل مضارع كښ اوداعوامل جازمه دفعل مضارع په دوه قسمه دی:١ .حروف٢ – اسماء. چه ددينه تعبير كيږی په كلم المجازات سره.

حروف عامله جازمه دفعل مضارع پينځه دی :

(١) لم. (٢) لما. (٣)لام امر. (۴) لا ناهيه. (۵) ان .

اواسماء جازمه دفعل مضارع چه تعبيرترينه په كلم المجازات سره كيږی هغه نه ٩دی :

(١)مهما(٢) اذما(٣)حيثما (۴) اين(۵)متى(٦)ما (٧)من(٨)ای(٩) انىّٰ.

دامجموعه څوارلس شو. كلم جمع دكلمه ده اومجازات جمع دجزاء ده معنى داشوه كلمات دجزاء په دے كلمات دجزاء كښ ان ملفوظ اومقدره دحروفو نه دی اودانور داسماء نه دی. كلمات المجازات داخليږی په جملتين باندے يو ے ته شرط وائی اوبلے ته جزاء وائی امثله لم يضرب لمايضرب ليضرب لاتضرب ان تضرب اضرب مهماتقعد اقعد اذما تسافر اسافر حيثما تقصد اقصد اين تجلس اجلس متى تقم اقم ماتفعل افعل من تضرب اضرب ای شیء تاكل اكل انی تكسب اكسب ان مقدره لاتشتمنی اضربك تقديردعبارت داسے دے.ان تشتمنی اضربك.

واعلم ان لم تقلب المضارع ماضيامنفياو لما كذلك الخ.

**ترجمه:** پوه شه لم مضارع نقل كوی مضارع منفی ته اولما هم پشان دلم دے په دے عمل كښ.

**تشريح :.** هركله چه فارغ شو مصنف دتعداددعوامل جازمه نه دفعل مضارع نه نوشروع ئے اوكړه په بيان دمعانی ددوی كښ نودارنگه ئے اوونيل واعلم الخ.

دلم اولما په مابين كښ اشتراك هم دے اوافتراق هم دے اشتراك ددوی مثلا(١).دواړه حرفين دی (٢)– دواړه جزم وركوی(٣).دواړه د دواخلو دمضارع نه دی (۴).دواړه نقل كوی مضارع ماضی منفی ته (۵).دواړه مبنی دی وغيره وغيره. ... اوافتراق ددوی ته مصنف اشاره كړے ده په دے عبارت سره الاانّ فيهاتوقعا الخ.دلم اولما په مابين كښ فرق دے په يو څووجوسره چه

دری دھغی نہ مصنف ذکرکړی دی:(۱).لمامستعملیږی په هغه امورو کښې چه په هغې کښې امید اوتوقع وی مثال قام الامیرولمایرکب داکلام هغه وخت وئیلے شی چه رکوب دامیرمتوقع وی چه حاصل به شی په خلاف دلم چه پدے کښې دامعنی نشته دے اودافرق مصنف ذکرکړے دے.

په نفی دلماکښې دوام اواستغراق دے مثال مذکوره شوه په خلاف دلم چه پدے کښې دامعنی نشته دے اودافرق مصنف ذکرکړے دے پدے عبارت سره چه دواماقبله الخ.۳.دلمانه حذف دفعل کولے شی مثال ندم زید ولمای لماینفعه الندم په خلاف دلم چه دده نه حذف دفعل نشی کولے ځکه لماکښې حروف زیات دی قائم مقام دفعل محذوف ګرځی اودافرق مصنف ذکرکړے دے پدے عبارت سره وایضایجوز حذف الفعل الخ.

(۴)- دخول دحرف شرط په لمانشی کیدے اوپه لم کیدے شی مثال لکه ان لم تضرب اوداسے نشی وئیلے ان لمایضرب ځکه ان په عمل کښې ضعیف دے دفعل قویه سره عمل نشی کولے اوهغه لمادے اول هم فاصل دے لکن ضعیفه دے حرف شرط دده سره عمل کولے شی اودافرق مصنف ذکرکړے دے. (۵)- په لماباندے همزه داستفهام نشی داخلیدے اوپه لم داخلیدے شی مثال لکه الم تر الم تضرب داسے نشی وئیلے الما.

(٦) لماپه معنی داذ مستعملیږی لکه فلماکتب علیهم القتال اذافریق منهم پدے استعمال کښې لمابه اسمی وی نه حرفی تقدیرداسے شواذکتب علیهم .

(۷)لماپه معنی دجمعاسره راځی لکه اکلالمای جمعاپدے معنی سره به هم اسمی وی.

(۸)په معنی دالاسره راځی لکه ان کل لماجمیع لدینای ماکل الاجمیع لدینا.

په خلاف دلم چه په معنی داذاوجمعااوالاسره نه راځی اوځلورم فرق اوپینځم اوشپږم او اوم مصنف ندی ذکرکړی.

**واماکلم المجازات حرفاکانت اواسمافهی تدخل علی الجملتین لتدل علی ان الاولی شرطا والثانی جزاءً.**

ترجمه : اوهر چه کلمات دجزاء دی حرفی وی اوکه اسمی وی نو دوی داخلیږی په دووجملوباندے دپاره ددلالت چه اوله جمله شرط وی اوثانی جزاء.

**تشريح** : زده داخبره چه دا مخکښې عوامل چه ذکرشونودوی عمل په يوفعل کښې کوی اوهرچه کلمات دجزاء نوبعض پکښې حروف دی اوباقی نوراسماء دی لکه مهماوغيره نودوی جزم ورکوی دوه فعلينولره ددے دپاره چه دلالت اوکړی په اول فعل سبب دے اودويم مسبب دے اولے جملے ته شرط وائی اودويمے ته جزاء وائی شرط ځکه وائی چه داپه معنی دمشروط سره دے اوداسبب هم مشروط کړے شوے دے دپاره دتحقق دجزاء اودويمے جملے ته چه مسبب دے جزاء وائی ځکه جزاء هرهغه شی ته وائی چه مرتب وی په شی اخرياندے اودامرتب چه شی ثانی دے هم مرتب دے په شی اول باندے نوددے وجينه ورته جزاء وائی.

**ثم ان كانت الشرط و الجزاء مضارعين يجب الجزم فيهمالفظانحو ان تكرمنى اكرمك.**

**ترجمه**: پس کچرے شرط اوجزاء دواړه مضارعين وونو جزم به پکښې واجب وی لفظالکه ان تكرمنى اكرمك.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف صوراربعه ذکرکوی دشرط اودجزاء : (۱) صورت اول چه شرط اوجزاء دواړه مضارع وی مثال لکه ان تكرمنى اكرمك. (۲) صورت شرط اوجزاء دواړه ماضی وی لکه ان ضربتَ ضربتُ. (۳) صورت شرط ماضی وی اوجزاء مضارع وی لکه ان جئتنى اكرمك . (۴) صورت شرط مضارع وی اوجزاء ماضی وی. ... پدے صور اربعو کښې داول صورت اوځلورم صورت په شرط کښې جزم واجب دے دوجی دوجوددحرف جازم نه چه ان دے اودصلاحيت دمحل نه چه مضارع ده دپاره دعمل اومانع موجودندے اوپه صورت ثانی اودريم صورت چه شرط ماضی وی اوجزاء مضارع وی نوپه ماضی کښې عمل حروف شرط نه کوی لفظاځکه ماضی مبنی ده صلاحيت دقبول داعراب پکښې نشته دے.

اودويم صورت په جزاء کښې وجهان جائزدی جزم اورفع جزم بنابرحرف شرط چه موجوددے اوصلاحيت دمحل هم شته چه مضارع ده اعراب قبلولے شی اورفع هم جائزده بنابرابتداء لوجے دتبعيت دماضی نه چه شرط واقع دے.

**فائده** : په جزم دشرط اوجزاء کښې دنحاتواختلاف دے پدے کښې دوه مذهبه د...

۱ .جمهورنحات ۲ .سيبويه جمهورنحات وائی شرط اوجزاء دواړه مجزوم وی په جازم ... بغيرددخل دبل شی نه اومذهب دسيبويه دادے چه شرط مجزوم وی په جازم سره بغيردد...

دبـل شـي نـه اوهـرچـه جزاء ده نوددې دپاره جازم شرط اوجازم دواړه دي يعني په جزم دجزاء كښ دخل شرط لره شته دے. **فائده** : جازم په ماضي كښ لفظاعمل نكوي اوپه معني كښ عمل كوي اوفصل چه ماضي سبب ګرځوي دپاره دفعل ثاني.

**واعلم انه اذاكان الجزاء ماضيابغيرقد لم يجز الفاء فيه الخ.**

پوهـ شه په تحقيق سره كله چه جزاء دفعل ماضي بغيردقدنه وي نودخول دفاء پرے جائزندے.

**تشريح** : هـركـلـه چـه فارغ شو مصنف دبيان دانجزام اوغيرانجزام دشرط اودجزاء نه نودبيان ددے صورتونونه ئے شروع اوكړه ددخول دفاء اودعدم دخول دفاء كښ په جزاء باندے پـس دخـول دفـاء دپـاره دري صـورتـونـه دي (۱).مـمـتـنـع(۲).جواز(۳).وجوب.داول قسم دپاره يـوصـورت دے او ددويـم قسم دپاره هـم يـوصـورت دے اوددريـم قسم دپاره څلورصورتونه دي نـومـجـموعه شپږصورتونه شو.اول صورت مصنف ذكركړے دے پدے عبارت سره چه واعلم انه اذاكان الخ.

يـعـنـي جـزاء دشرط چـه فـعـل ماضي وي بغيردقدنه نوراوړل دفاء پدے ماضي كښ باطل دي مثال ان اكرمتني اكرمتك دويم مثال داقول دالله‌تعالى شومن دخله كان امنا.

**سوال** : ستـا قـاعـده مـنـقـوضـه ده پـدے مـثـال لـكـه ان خـرجـت لم اخرج دلته لم اخرج جزاء مضارع ده اوفاء نده راغلے په جزاء كښ لكه ان خرجت پس تخصيص په ماضي پورے صحيح ندے.

**جواب** : مـاضي عامه ده لفظي وي لكه امثله مذكوره في الكتب شواوكه ماضي معناوي هـغـه مضارع چه لم پرے داخل شوے وي هغه معناماضي وي لكه دلته لم اخرج شوپه معني دماخرج سره دے. **سوال** : ستا قاعده منقوضه شوه پدے قول دالله‌تعالى باندے ان كان قميصه قـدمـن قبل فصدقت دلته فصدقت ماضي ده جزاء واقع ده فاء راغلے ده په جزاء كښ، سره ددينه چه دلته قدنشته دے. **جواب** : پـه قدكښ هم تعميم دے چه لفظاوي اوكه تقديراوي فصدقت اي فـصـدقـت دلتـه قـدمـوجـوددے تـقـديـرا.دليـل دصورت اول فاء به څكه نه داخليږي په جزاء بانـدے چـه كـلـه جزاء مـاضـي بغيردقدواقع شي حرف شرط اثرپه جزاء كړے دے چه ماضي دمـاضيت دزمانے نه منتقل كړے ده زمانے داستقبال ته پشان دشرط نوربط دجزاء دشرط سره

راغـلـے دے حاجـت رابـط تہ نشتہ دے چہ فاء دہ.اوکومہ ماضی چہ قدورسرہ وی **ھلتہ فاء بہ** راوړے شی دپارہ دربط ځکہ قدماضی متحققہ کوی پہ ماضی کښں پس دجزاء ربط **جوړنہ وی** دشرط سرہ نودربط دپارہ بہ فاء راوړے شی لکہ امثلہ مذکورہ شو.

دویـم صـورت چـہ پـہ ھـغـے کـښں دوہ وجـے جـائزدی مصنف ذکرکړی دی پدے عبارت سرہ:**وان کان مضارعامثبتا اومنفیابلا جازفیہ الوجھان** یعنی چہ جزاء مضارع وی برابرہ خبرہ دہ چہ مثبت وی اوکـہ منفی وی پہ لاسرہ نوپدے جزاء کښں دوہ وجـے جائزدی١ .راوړل دفاء٢ .اونہ راوړل دفـاء. **دلیـل** پـدے صـورت کـښں جزاء مـاضـی ندہ چہ ادات دشرط پکښں اثرکړے وی معناچہ مستقبل ترے جوړہ وی پس کہ دیتہ نظر اوکړے شی چہ ادات من وجہ اثرکړے دے چہ مـضـارع ئـے دحال نـہ نـقـل کـړے دہ استـقـبـال تہ نو حاجت نشتـہ دے راوړلودفاء تہ امثلہ مذکورہ فـی الـکـتـب دی اومصنف قیدمنفی پہ لاسرہ لګولے دے ځکہ مضارع منفی پہ لم سرہ وی نـو ھـغـہ داخلـہ دہ پـہ صـورت اول کـښں چـہ ھغـہ معناماضی دہ اوددریم قسم دپارہ شلورصـورتـونـہ دی ھـغـہ مـصنف ذکرکړی دی پدے عبارت سرہ چہ **وان لم یکن الجزاء احد القسمین المذکورین فیجب الفاء فیہ.** ١ .جزاء ماضی پہ قدسرہ مثال **ان یسرق فقدسرق اخ لہ.**

٢ .جزاء مضارع منفی بغیرلا مثال **ومن یبتغ غیز الاسلام دینافلن یقبل منہ.**

٣ .جزاء جملہ اسمیہ مثال **من جاء بالحسنہ فلہ عشرامثالھا.**

٤ .جزاء جملہ انشائیہ دابہ یاامروی لکہ **قل ان کنتم تحبون اللہ فاتبعونی** اویابہ نھی وی لکہ **فان علمتموھن مومنات فلاترجعوھن الی الکفار.**

**سوال :** دجـمـلـے انشـائیـہ نوراقسام ھم دی لکہ استفھام دھغے مثال لکہ داقول دنبی ﷺ شو **ان ترکتنافمن یرحمنا** دافمن یرحمناجملہ انشائیہ دہ استفھام دے درانګہ دعاء کښں مثال **ان اکرمتـنـا فیـرحـمك اللہ** دا فیرحمك اللہ جزاء دہ جملہ انشائیہ دعاء دہ داولے ذکرنکړہ سرہ ددینہ چہ دلتہ ھم فاء راوړل واجب دی . **جواب** : دادوہ قسـمـونـہ چہ دعاء دہ اواستفھام دے نوداشریك دی دامر اونھی سرہ پدے حکم دفاء کښں نوذکرکولو تہ ضرورت رانغـے.

**دلیل** ددریـم قسـم : چـہ پـدے کـښں شلورصورتونہ دی ځکہ دلتہ فاء راوړل واجب دی چہ اداتودشرط پـہ دوی کـښں نـہ لفظا اونہ معنااثرکړے دے چہ ددوی پہ واسطہ ربط پیداکیږی پہ

مابين دشرط اوجزاء كښې نودربط دپاره فاء جزائيه راوړل لازم شو.

**تفصيل مذاهب** : هركله چه جمله اسميه جزاء واقع شي نوپدے صورت كښې دنحاتو اختلاف دے دلته درې مذاهب دي په اتيان دفاء اوترك دفاء كښې.

(۱) مذهب دجمهوروداد ے چه فاء راوړل پدے صورت كښې واجب دي برابره خبره ده چه كه كلام نثرې وي اوكه كلام شعرې وي اومصنف دامذهب مختاره كړے دے ځكه مصنف مطلقاددے صورت ذكركړے دے. (۲) **دويم مذهب دسيبويه** دے هغه وائي چه ترك فاء پدے صورت كښې جائزده لكن مطلقانه بلكه په شعركښې لكه داقول دشاعرشو من يفعل الحسنات الله يشكرها دلته الله يشكرها جزاء ده اوجمله اسميه ده اوفائده نده ذكرشوے پكښې.

(۳) **دريم مذهب دفراء** دي هغه وائي چه ترك دفاء مطلقا جائزدے پدے صورت كښې كلام نثرې وي اوكه كلام شعرې وي. **سوال** : په مذهب دجمهوروباندے چه زه به درته اوښايم چه جزاء به جمله اسميه وي اوفاء جزائيه به پكښې نه وي لكه داقول دالله تعالى شوواذاغضبوا هم يستغفرون نوداهم يستغفرون جمله اسميه ده اوفاء پكښې نده موجوده. **جواب** : دااعتراض به هله واريدلو چه اذاكښې معنى دشرطيت موجوده وے اوحال دادے چه په اذاكښې معنى دظرفيت ده نه دشرطيت فلايردمايردعلى الجمهور.

---

**وقديقع اذامع الجملة الاسمية موضع الفاء كقوله تعالى وان تصبهم سيئة بماقدمت ايديهم اذاهم يقنطون.**

ترجمه: اوكله اذاپه ځاے دفاء واقع كيږي دجملے اسميه سره لكه داقول د الله تعالى.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف جواب ديوسوال كوي سوال داسے واريديږي چه مخكښې اووئيلے شو چه جمله اسميه جزاء واقع شي نوفاء به پرے داخليږي نوسوال واردشو چه اذاهم يقنطون په دے ايت كښې جمله اسميه جزاء واقع ده اواذاپرے داخل شوے دے نه فاء نومصنف جواب وركړوچه اذاپه ځاے دفاء هم راځي پدے اذاسره به ربط حاصليږي پشان دفا لكن مراد داذانه به اذامفاجاتيه وي نه اذاشرطيه وجه دووقوع داذامفاجاتيه په ځاے دفاء باندے داده چه دواړه دلالت كوي په تعقيب باندے فاء دلالت كوي په تعقيب دجزاء ترشرط پورے

اواذامفاجاتیه په تعقیب داموروعادیو دلالت کوی مثال لکه خرجت فاذازیدٌواقف نو دااذا دلالت کوی په تعقیب دوقوف دزید ترخروج پورے لکن اذامفاجاتیه چه په ځاے دفاء واقع کیږی نودابه مختص وی په جمله اسمیه فقط په جمله فعلیه به نه داخلیږی ځکه بل اذاشرطیه دے هغه داخلیږی په جمله فعلیه باندے فقط نودپاره دفرق به اذامفاجاتیه مختص وی په جمله اسیمه پورے مثال داذاچه مفاجاتیه واقع وی په ځاے دفاء باندے لکه پدے قول دالله تعالی کښ وان تصبهم سیئة بماقدمت ایدیهم اذاهم یقنطون نوپدے ایت کښ اذاهم یقنطون جمله اسمیه ده اوپه ځاے دفاء باندے وړباندے اذامفاجاتیه داخل شوے دے اوپه ده سره ددے جزاچه جمله اسمیه ده ربط پیداشوے دے دشرط سره.

(نقشه ددخول فاء اودعدم دخول فاء په جزاء باندے)



وانماتقدران بعدالافعال الخمسة التی هی الامر الخ.

ترجمه : اویقیناان شرطیه مقدرکولے شی پس دپینځواشیاؤنه چه هغه امر الخ دی.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دذکردمعانی دجوازم ملفوظه نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دهغه مواضع کښې چه ان شرطیه پکښې مقدرکولے شی اوهغه مواضع خمسه دی :

(۱) امر(۲) نهی (۳)استفهام(۴) تمنی (۵)عرض(٦) نفی قلیلا.

مثال امرتعلم تنجو تـقدیردعبارت داسے دے ان تتعلم تنج. مثال نهی لاتکذب یکن خیرلك ای لاتـکذب ان یکن خیرلك. مثال استفهام هل تزورنانکرمك ای هل تزورناان زرت نکرمك مثال تمنی لیتك عنـدي اخـدمك ای ان کـنـت عـنـدی اخـدمك مثال عـرض الاتنزل بناتصب خیراای ان نزلت بناتصب خیـرا. مثال نـفـی لاتـفـعل شرایکن خیرالك. لکن دلتـه مـصـنف دنـفـی ذکـرکړے دے داپه طریقے دسهـوے سره دے یادمـصـنف نـه اویادکاتـب نـه ځکه رتوستودنفی نه ان نشی مقدرکیدے کماقال به صاحب الدرایه.

**سوال** : ستـا قـاعده منقوضه ده پدے قول د الله تعالی باندے فهب لی من لدنك ولیایرثنی .نـوداهـب لـی امـردے اودایـرث فـعـل مـضـارع ده پـس دامـرنـه اومجزومه نده په ان مقدره سره اودارنـګـه پـه بـل ایت کښې ثم ذرهم فی حوضهم یلعبون **جواب** داحـکـم مـطلقاندے چه هره مـضـارع چـه روستـو د امرنه واقع وی هغه به ان مقدره مجزومه وی بلکه په هغه وخت کښې به مـضـارع پس دامـرنـه مـجـزومـه وی پـه ان مـقدره سره چه امرسبب وی دپاره دمضارع اوداخبره مـصـنف روستـوپه خپل عبارت سره ذکرکوی چه وذلك اذاقصدان الاول سبب للثانی کمارأیت فی الامثله.

**دلیل** دادے چـه ان جـازمـه ولـے ددے امـورخـمسـونه روستو مقدرکولے شی ځکه چه دا امـورخـمسـه دلالـت کـوی پـه طـلـب بـانـدے اوطلب تعلق نیسی په مطلوب پورے چه پدے مـطـلـوب بـانـدے بـه څه فائده مرتبه وی اودامطلوب به سبب وی ددے فائدے دپاره اوفائده به مسبب وی اودلالـت پـه مسببیـت بـانـدے نـه کـوی بلکه ادوات دشرطب اوهغه موجودپه لفظ کښې ندی لولابدی شوه دتقدیرنه اوپه دوی کښې صرف ان مقدرکولے شی.

**قاعده** (۱) ادوات شرط ددوجملوتقاضاکوی یوه جمله شرط اودویم جزاء.

**قاعده** (۲) شرط به همیشه جمله فعلیه وی.

**قاعده** (۳) شرط فعل جامدنه واقع کیږی اودارنګه فعل طلبیه هم.

**قاعده** (۴) دجمله شرطیه په اول کښں ان نه راځی.

**قاعده**(۵) اماشرطیـه پـه دوو څیـزونـو داخلیږی اول ته قائم مقام شرط وائی اودویم ته قائم مقام جزاء وائی ، اوپدے فاء هم داخلیږی چه هغه ته جواب اماوائی.

**قاعده** (٦) کلـه ادوات شرط دوه راځی اوجزاء یوه وی نو بله جزاء محذوف وی مثال اماان کان من اصحاب الیمین فسلام لك من اصحٰب الیمین فسلام جزاء دامادہ.

**قاعده** (۷) کـچـرے شرط اوقسم دواړه جمع شویه نو ځاے کښں نوجواب به دمقدم دپاره وی اودمؤخرجـواب بـه محذوف وی مثال: ان قمت واللہ لاقومنّ واللہ ان قمت لاقومن بل مثال قـل لـئن اجتمعت الانس و الجن علی ان یأتوبمثل هذا القران لایأتون بمثله پدے ایت لایأتون بمثله جواب د قسم دے.

**قاعده** (۸) پـه جـواب دامر اوبانهی کښں چه مضارع واقع شی دابه هله مجزومه کیږی چه شرطیـن پـکـښں وی(۱).دان شرطیـه دخـول پـرے صـحـیـح وی(۲).مضارع دماقبل فعل دپاره مقصود ګرځول صحیح وی ورنه جائزبه نه وی لکه لاتشرك باللہ تدخل النارلاتمنن تستکثر.

**قاعده** (۹) جـزاء چه فعل جامدوی نوفاء پرے داخلیږی مثال ان ترن اناا‌قل منك مالا وولدا فعسی ربی ان یوتین خیرامن جنتك.

**قاعده** (۱۰) کـچـرے شرط اوجزاء پـه درمیـان دکـلام کـښں واقـع شی نودوه وجـے پکښں جائزدی۱ .جزم۲ .نـصـب.لـکن جزم پدے کښں اکثردے اورفع پکښں ممتنع ده مثال ان تستقم وتجتهداکرمك.تلك عشره کامله و التفصیل فی المطولات من کتب النحو.

## التمرين لبحث الجوازم

| | |
|---|---|
| ان تنصر الله ينصركم | ان يكن منكم عشرون يغلبوا |
| ان لم تفعلوا | لمايعلم الله الذين جاهدوا منكم. |
| الم تركيف فعل ربك | فليضحكوا قليلا |
| واليبكوا كثيرا | ثم ليقضوا تفثهم |
| لاتشرك بالله، | لاتقربوا الفواحش |
| لاتقل لهما اف | من يعمل مثقال ذرة خيرا يره |
| اينماتكونوا يدرككم الموت | وماتفعلوا من خير يعلمه الله |
| من جاب بالحسنة فله عشر امثالها | |

**و الثالث الامر وهو صيغة يطلب بها الفعل من الفاعل المخاطب بان تحذف من المضارع الخ** اودريم قسم داقسامودفعل نه امردے دایوه صیغه ده چه پدے سره طلب کولے شی فعل د فاعل مخاطب نه پدے شان سره چه حذف به کړے شی دمضارع نه حرف مضارعت الخ.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دبحث دمضارع نه نوشروع ئے اوکړه په بحث دامرکښ چه دادریم قسم دفعل دے په اعتباردزمانے سره امرپه لغت کښ فرمودن کارته وائی اوپه اصطلاح کښ عبارت دے ددینه چه صیغه یطلب بها الفعل الخ.

**فوائدقیودات**: لفظ دصیغه جنس دے شامل دے معرف اوغیرمعرف تولولره اوپه قیدیطلب بهاسره چه فصل اول دے ماضی اومضارع خارج شو او الفعل دویم فصل دے پدے سره نهی خارج شوه څکه په هغے کښ کف عن الفعل دے اوالفاعل دریم فصل دے پدے سره امرمجهول خارج شو هلته طلب دفعل دمفعول نه کیدے شی او المخاطب څلورم فصل دے پدے سره امرغائب خارج شو پس مصنف امرمطلقاذکرکړے دے په تعریف دامرکښ قیدداستعلاء ورسره ندے لګولے نوطلب دفعل دمخاطب نه دعام شوبرابره خبره ده چه په طریقه داستعلاء سره وی اوکه په طریقه دتساوی سره وی اوکه په طریقه دخضوع سر امذهب دنحاتودے مصنف

مختلف کړے دے په اصل کښې دلته پدے مقام کښې دوه مذهبه دي:۱. مذهب داهل اصول الفقه ۲. مذهب دنحاتو دے مذهب داهل اصول الفقه دادے چه په امر کښې استعلاء معتبره ده پدے شان چه آمر به ځان نوچت تواعلی ګڼړي دمامور نه برابره خبره ده چه په نفس الامر کښې اعلی اولوچت وي اوکه نه کچرے طلب په طریقے دمساوات سره وو نو دیته التماس وائي اوکه په طریقه دخضوع سره وو نو دیته دعاء وائي لکه اللهم اغفرلی اواعطنی الکتاب اول مثال ددعا او دویم دالتماس. ...
اومذهب د نحاتو دادے چه په امر کښې استعلاء نده معتبره نفس طلب معتبر دے برابره خبره ده چه په طریقے داستعلا باندے اوکه په طریقے دخضوع وي اوکه په طریقے دمساوات باندے وي پس التماس اودعاداخل ده په امر کښې ددوي په مذهب باندے . **بان تحذف من المضارع الخ.**

**تشریح** : پدے عبارت سره بیان دطریقے دامر حاضر دجوړولو بیانوي مصنف پس امر جوړیږي دفعل مضارع نه اونه دفعل ماضي نه ځکه دامر اومضارع ترمینځه اشتراك شته دے په استقبال کښې.لکه امر چه څنګه دلالت په استقبال کوي همدغه شان مضارع دلالت په استقبال کوي په خلاف دماضي نه چه دامر ورسره داسے مناسبت نشته دے.پس دمضارع نه به حرف مضارعت حذف کولے شي لازمادادے دپاره چه دصیغے دمضارع اثرختم شي بیادحرف مضارعت نه روستو چه کوم حرف دے فاء کلمه دمضارع نودابه خالي نه وي یابه متحرك وي اویابه ساکن وي که متحرك وي نوپه اخر کښې به جزم ورکولے شي په اول کښې همزه ته ضرورت نشته دے.ځکه ابتداء په ساکن لازمیږي مثال دتعدنه به عدجوړشي اودتحاسب نه حاسب جوړشي.اوکه مابعدد حرف مضارعت نه ساکن وونو همزه وصلیه به راوړلے شي ددے دپاره چه ابتداء په ساکن لازم نشي. **سوال** : دهمزے په ځاے بل حرف دے راوړے شي دپاره ددفع دابتداء په ساکن سره.تخصیص دهمزے ولے اوشو؟. **جواب** : دهمزے اودابتداء ترمینځ مناسبت دے ځکه همزه اداکیږي داول دمخارج نه نودددے وجینه تخصیص دهمزے اوشو.بیادا همزه به مضمومه وي اویابه مکسوره وي همزه مضمومه به راوړے شي په هغه وخت کښې چه عین کلمه دمضارع مضموم وي لکه دتنصرنه انصراوهمزه مکسوره به راوړے شي په هغه وخت کښې چه عین کله دمضارع مفتوح اویامکسوروي لکه دتعلم نه اعلم

اودتضرب نه اضرب.

**سوال** : همزه مضمومه ولے راوړے شی؟ چه عین کلمه دمضارع مضموم وی.

**جواب** : همزه مکسوره اومفتوحه پدے صورت کښې ممکن نده هرچه عدم امکان دفتحے دے دائحکه چه بیابه لازم شی التباس دواحدمتکلم دمضارع معلوم خپل سره ددے باب نه په حالت دوقف کښې اوهرچه عدم امکان دکسرے دے ځکه بیابه لازم شی خروج دکسرے نه ضمه ته اوداباطل دے. **سوال** : دلته خروج دکسرے نه ضمه ته نه لازمیږی ځکه دهمزے اودعین کلمه کښې فاء کلمه نون دے . **جواب** :. نون ساکن دے اودا حاجزنه واقع کیږی.

**سوال** : همزه مکسوره ولے راوړے شی چه عین دمضارع مکسور وی ؟.

**جواب** : همزه مفتوحه اومضمومه پدے صورت کښې ممکنه نده ځکه که مفتوح شی نولازم به شي التباس دمضارع واحدمتکلم خپل سره ددے باب نه په حالت دوقف کښې اومضموم کول هم ممکن ندی ځکه په صورت دضمے سره لازمیږی التباس دامردماضی مجهولے دباب افعال سره په حالت دوقف کښې .

**سوال** : هرکله چه عین کلمه مفتوح وی نو هلته ولے مکسوره همزه راوړے شی؟

**جواب** : دلته همزه مفتوح اومضمومه هم ممکنه نده ځکه که مفتوح شی نولازم بشی التباس دماضی معلوم دباب افعال سره اوضمه هم ممکنه نده ځکه لازمیږی التباس دامردواحدمتکلم دمضارع مجهولے سره په حالت دوقف کښې پس هرکله چه ضمه اوفتحه ممکنه نه وه نو کسره ورکړے شوه .

---

**و الامرمن باب الافعال من قسم الثاني.**

**ترجمه** : اوامرحاضردباب افعال نه دادوديم قسم پشان دے چه په اول کښې به همزه وصليه نه وی بلکه قطعيه به وی.

**تشريح** : غرض دمصنف ددے عبارت نه جواب ديوسوال دے سوال دادے چه مخکښې ووئيلے شو چه عين کلمه دمضارع مکسوروی نوپه اول کښې به همزه مکسوره راوړے شی نوستاداقاعده منقوضه ده په اکرم مثلا چه دا امردے دباب افعال نه عين کلمه مکسوره ده

اوهـمـزه پـه اول کـښې مـفـتـوحه راوړے شوے ده مصنف ددے سوال جواب ورکړویدے عبارت خپل سره چه و الامرمن باب الافعال الخ.

حـاصـل د جـواب دادے چه هـمـزه وصـلـيـه بـه هـلـه راوړے شي مكسوره چه پس دحرف مـضـارعـت نـه سـاكـن وى فـاء كلمه اودلته متحركه ده هغه فاء كلمه حذف شوے ده ځکه اکرم جوړتـُكـرم نـه دے پـس دردنـه اصـل تـه چه اصل دده تأكُرِمُ دے پس هرکله چه امرددینه جوړه وونو هغه همزه محذوفه بيامعادشوه ځکه داكاف ساكن دے اوپس داعادے دهمزے نه په خپل حركت اصلی بـاقـی پـاتـے ده چه هغه فتحه ده پس داهمزه وصليه نده بلکه همزه قطعيه ده اوبحث سابقه ځمونږه په همزه وصليه كښې وو.

**وهومبني على علامة الجزم كاضرب الخ.** اودامرحاضرمبنی دے په علامه دجزم باندے.

**تشريح :** پـدے عبارت سـره مصنف حكم دامرحاضربیانوی په امرحاضر معروف کښې په اعتبـار داعـراب اودبـنـاء سـره اخـتـلاف دے پـدے کـښې دوه مذهبـه دی:١ .كـوفـيـان٢ .مذهـب دبصريانو دے کوفيان وائی چه امرحاضرمعروف معرب دے اعراب دده جزم دے په لام مقدره سره نـواصـل داضرب لتضرب دے په لام سره بيالام اوتاء ترينه حذف شول اوهرچه حذف دلام دے داد پـاره دتـخـفيف دے اوهرچه حذف دحرف مضارعت چه تاء ده ددے دپاره چه اثردصيغے دفعل مضارع ختم شي پس دحذف دحرف مضارعت نه همزه راوړے شوه په هغه صورت کښې چه مابعدساكن وى اوپه حال خپل پاتے شوچه مابعدمتحرك وى اوعلت داعراب دامرحاضرپه نزددكـوفـيـانـو بانـدے دادے چه دا امرپه اعتبارداصل سره لتضرب دے مشابهت دمضارع سره لفظااومـعـنـالرى هرچه مشابهت لفظى دے داظاهردے اوهرچه مشابهت معنوی دے نو هغه دادے چه مـضـارع ځـنـګه په معنی دحال اواستقبال سره ده نوامرهم په معنی دحال اواستقبال سره راځي نوددے مشابهت تامه دوجینه امرمعرب شواوعلت دبناء په نزدبصريانوباندے دادے چه په امرکـښې عـلـت داعراب ندے موجودچه هغه معانی مقتضيه للاعراب دی اومشابهت تامه دمضارع سره دے اوپدے امرحاضرمعروف کښې دواړه امرين منتفي دی هرچه امراول دے نوهغه انتـفـاء دمـعـانـی مقتضيه للاعراب دی اوداخوظاهره خبره ده اوهرچه انتفاء دامرثانی ده نوداددے وجینـه چـه مشـابـهـت تـامه دفعل مضارع سره په وجوددحرف مضارعت سره راځي

اوپدے کښې حرف مضارعت ندے موجوداوبناء دامرحاضرمعروف په نزدبصریانوباندے په جزم سره نده ځکه جزم قسـم دے داقسامواعراب دفعل مضارع نه بلکه بناء امرحاضرمعروف په وقف اوسکون سره ده لـکـن صورتااولفظاعلامه دجزم پکښې ده چه هغه سقوط دحرکت دے په مفردصحیح کښې اوسقوط دنون دے په تثنيه اوجمع اوواحدمونث مخاطبه کښې اوحذف دحرف علت دے په ناقص کښې.

## تمرین امر حاضر معروف

| | |
|---|---|
| یاایها الناس اعبدوا | اتل مااوحی الیك |
| اقم الصلواة لدلوك الشمس | اضرب بعصاك الحجر |
| اضرب لهم طریقافی البحریبسا | فاعبده و اصطبر |
| واذکرفی الکتاب مریم | اقیموا وجوهکم |
| فول وجهك شطر المسجد الحرام | |

---

**فـصـل** فعل مالم یسم فاعله هوفعل حذف فاعله و اقیم المفعول مقامه.

ترجمه : فـعـل دهـغه مفعول چه نه وی ذکرشوے فاعل دهغه داهغه فعل دے چه حذف شوے وی فاعل دده اواقامت دمفعول په ځاے دده شوے وی.

**تشریح** : هرکـلـه چـه مـصنف فارغ شوداول قسم دفعل نه چه هغه په اعتباردزمانے سره وونـو شـروع ئـے اوکـړه پـه تـقسیـم ثـانـی دفعل کښې چه په اعتبارداسنادسره دے پس دافعل به خالـی نه وی یابه اسناده شوے وی فاعل اویامفعول ته که اول وونو(١)فعل معروف(٢) او فعل مـعـلـوم هم ورته وائی (٣)اوفعل سمی فاعله ورته وائی(٤) اوفعل مبنی للفاعل ورته هم وائی (٥).فـعـل ذکـرفاعله ورته وائی اوکه ثانی وونو١ .فعل مجهول ورته وائی٢ .فعل مالم یسم فاعله ورته وائی٣ .مبنی للمفعول ورته وائی ٤.فعل حذف فاعله ورته وائی.

**لغوی تحقیق** : پـه مـعـنـی لغوی دفعل مالم یسم فاعله کښې دوه احتماله دی:١ .اول احتمال کـلـمـه دماپه مالم یسم فاعله کښې موصوله دے په معنی دالذی سره اویسمٙ په معنِی دیذکرسره اوفـاعـلـه لفظ نائب فاعل دے دلم یسم دپاره پس یذکرسره دنائب فاعل نه جمله صله دموصول ده اوموصول سره دصلے نه صفت دموصوف محذوف دے چه المفعول دے تقدیر

دعبارت داسے دے فعل المفعول الذی لم یذکرفاعله۲.احتمال دماموصله مرادترینه فعل اولم یسم پـه معنی دلم یذکرسره اوفاعله نائب فاعل دے داصله شوه دموصول تقدیردعبارت داسے فعل الفعل الذی لم یسم.

**سوال** : په احتمال ثانی کښی لازمیږی اضافت دشی خپل نفس ته اوداباطل دے.

**جواب** : دااضافت بیانی دے اضافت دعام خاص ته اول فعل عام دے اودویم فعل خاص دے اومعنی اصطلاحی مصنف ذکرکړے ده پدے عبارت سره چه هوفعل حذف فاعله الخ.

**سوال** : په عبارت دمصنف کښی تناقض دے پدے شان سره چه دلم یسم نه معلومیږی چه فاعل ورلره نشته دے دے فعل لره اوعدم تثنیه دفاعل دلالت کوی په عدم وجوددفاعل باندے نوددینه لازمیږی چه دافعل به موجودشوے وی بغیردفاعل نه اووجوددفعل بغیردفاعل نه باطل دے اودعبارت دویم نه معلومیږی چه چه فاعل شته دے لکن حذف شوے دے چه هغه عبارت دادے هوفعل الخ.

**جواب** :. ستااعتراض به هله واریدلو چه لم یسم فاعله په خپله مطلوبه معنی باندے وے اوحالانکه داپه معنی دلم یذکردے اوعدم ذکردشیء مستلزم ندے عدم وجوددشیء لره نولازم نشووجوددفعل بغیردفاعل نه اوهرکله چه دلم یسم فاعله لم یذکرمعنی واغستے شی نوتناقض هم رانغے ځکه حذف شوے وی فاعل دفعل ځکه نوذکرشوے نوے.

**سوال** : اضافت دفعل مفعول ته راغے په معنی لغوی کښی په احتمال اول سره اوداصحیح ندے ځکه اضافت دفعل هغه شی ته کولے شی چه دافعل دچادپاره وی اوفعل خودمفعول دپاره نه وی بلکه دفاعل دپاره وی.

**جواب** : اضافت دفعل مفعول ته مجازادے لوجے دانی ملابست نه دے اوجائزده چه اضافت دشی هغه شی ته اوشی چه حقیقتادهغے دپاره نه وی خولکن اذنی ملابست ورسره وی نوځکه اضافت ورته کیږی . **سوال** : اقامت دمفعول په ځاے دفاعل څرنګه به اوشی فاعل عمده دے اومفعول فضله دے. **جواب** : دااقامت په اسنادکښی دے نه په صدورکښی.

## مواضع داقامت د مفعول په ځاے د فاعل

(۱) لوجے دعدم علم نه په فاعل باندے اقامت دمفعول کیږی په ځاے دفاعل باندے مثال

سُرق المتاع. (۲) دوجے دخساست دفاعل نه مثال:شتم الخلیفه ای شتم زید الخلیفه.
(۳) دوجے دعظمت نه مثال : قطع اللص ای قطع الامیر اللص.
(۴) دوجے داختصارنه مثال اقیمت الصلوة ای اقام الامام الصلاة.
(۵) دوجے درعایت دسجع نه مثال داقول دالله تعالی شو ومالاحدعنده من نعمه تجزیٰ.
(٦) لوجے دعلم مخاطب نه په فاعل باندے مثال اذابعثرمافی القبورای بعثرالله.
(۷) لوجے دشهرت نه مثال قتل الخراصون وغیره وغیره.و التفصیل فی المطولات من کتب النحو.

**ویختص بالمتعدیٰ**

**تشریح** : غـرض دمصنف ددے عبارت نه دادے چه فعل مالم یسم فاعله په فعل متعدی پورے مختص دے نه په لازمی پورے پدے شان سره چه فعل متعدی تقسیمیږی فعل معلوم اوفعل مجهول تـه اوهرچـه فـعل لازمی دے نودامختص دے په فعل معلوم پورے.اووجه داختصاص داده کچرے فعل لازمی نه فعل مالم یسم فاعله جوړکړے شی پدے شان سره چه فاعل ترینه حذف شی نولازم به شی عدم وجوددمسندالیه دفعل دپاره اوداباطل دے ځکه دفعل لازمی مفعول نشته دے چه هغه قائم شی په ځائے دفاعل باندے اومسندالیه شی دپاره دفعل.

**سوال** : ذکرکول ددے عبارت چه ویختص بالمتعدی داروستوددے عبارت نه چه واقیم المفعول مقامه مستدرك اوبلافائده دے ځکه اختصاص دفعل مالم یسم فاعله شوے دے ددے عبارت نه چه واقیم المفعول مقامه ځکه مفعول دفعل متعدی دپاره وی نه دلازمی دپارهٔ.

**جواب** : داتصریح بماعلم ضمناده دمخکښ عبارت نه ضمنامعلوم شوچه فعل مالم یسم فاعله مختص په فعل متعدی پورے دے اوپدے عبارت سره تصیرح اوکړه اوتصریح بماعلم ضمنا جائزده.

**وعلامته فی الماضی ان یکون اوله مضموما فقط وماقبل اخره مکسورا الخ.**

**ترجمه** : اوعلامه دده په فعل ماضی کښ داده: چه اول دده به مضموم وی فقط اوماقبل اخریه مکسوروی الخ.

**تشریح** : دلته مصنف دری صورتونه ذکرکوی دفعل مالم یسم فاعله :اول صورت: کوم

ابواب چه په اول د هغـے کښې همزه وصليـه نـه وی اوتـازائده هم نه وی لکه ثلاثي اورباعی مجردشواوبعضی ابواب دثلاثی مزيدفيه نوعلامه دفعل مالم يسم فاعله چه ماضی وی اوددے ابوابو مذکورونـه وی داده: چه اول حرف په ماضی کښې مضموم وی اوماقبل اخرحرف مکسوروی مثال لکـه ضرب دحرج اواکرم اول مثال دثلاثی مجرددے دويم مثال درباعی مجرداودريم مثال دثلاثی مزيدفيه باب افعال دے اول دليل:ددے دپاره دادے چه غرابت دوزن دلالت اوکړی په غرابت دمعنی باندے اوداوزن څکه غريب دے چه دلته کښې خروج دضمے نه کسرے ته راغلے دے اوداثقيل دے.

**٢- دويم دليل** : هروزن چه په افعـالو کښې وی نـو دهغـے نظيرپه اسماؤکښې موجودوی اوددے نظيرپه اسماؤکښې ندے موجوددے وجے نه داوزن غريب دے.

**سوال** : دُئِلٌ اووُعِلٌ وزن په اسماء کښې موجوددے داڅنګه غريب دے؟ **جواب** : جواب داشاذ دی لااعتبارلهما. **سوال** : وزن دفِعُلٌ هم غريب دے داورله ولے ورنکړے شو؟

**جواب** : مقصودڅمونږه حاصل شوے دے په ثقل سره نوراوړل داثقل ته ضرورت نشته دے.

**سوال** : تغيرپه فعل معلوم کښې ولے ونکړے شو دپاره دفرق؟

**جواب** : فعل مالم يسم فاعله فرع دفعل معلوم ده اوفرع اولی ده په تغيرسره داصل نه.

**وان يكون اوله وثانيه مضموماً وماقبل اخره كذلك فيمااوله تاء زائدة نحوتفضل وتضورب.** اوبابه اول اوثانی حرف مضموم وی اوماقبل اخرحرف به پشان د هغه اول صورت په هغه ابوابو کښې چه په اول د هغـے کښې تاء زائده وی لکه تُفُضِّلَ اوتُضُورِبَ.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف دويم صورت دفعل مالم يسم فاعله ذکرکوی پدے شان سره چه دکوم ابوابو په اول کښې تاء زائده وی لکه باب تفعل اوتفاعل اوپدے کښې به حرف اول چه تـاء اوحرف ثـانی چه تـاء کـلمه ده دواړه به مضموم وی اوماقبل اخرحرف به دهغه پشان مکسوروی دغشان په باب تفعلل رباعی مزيدفيه داحکم دے لکن مصنف لوجے داختصارنه دهغے ذکرندے کړے

**سوال** : مقصودپدے مقام کښې تغيردے دفعل مالم يسم فاعله دفعل معلوم نه اوهغه حاصليږی په ضمه دحرف اول سره نوڅه حاجت دے ضمه دحرف ثانی ته سره ددينه چه

داموجب د ثقل دے. **جواب** : کـه اکتـفاء په ضمه دحرف اول سره شوے وے نو لازم شوے به وو التباس دماضی مجهول دباب تفعل دمضارع معلوم دباب تفعیل سره څکه په هغے کښ هم اول مـضـمـوم وی اومـاقـبـل اخرمکسوروی مثال لکه تُکَرِّمَ اوهـمـدارنګه التباس دماضی مـجـهـول دباب تـفـاعـل دمـضـارع مـعـلوم دباب مفاعله سره لازمیږی مثال لکه تـضارب اوهـم دارنـګه التباس دماضی مجهول دباب تفعلل دمضارع معلوم دباب دفعلل سره لازمیږي مثال لـکه تُدَحْرِجُ پس ددے التباس دازالـے دپاره حرف ثانی به هم مضموم کولے شی.

**وان یـکـون اوله وثالثه مضموماوماقبل اخره کذلك فیمافی اوله همزة وصل نحواستخرج واُقْتُدِرَ** اویـابـه وی اول اوثالث حرف مضموم اوماقبل اخرحرف به هغه شان مکسوروی.

**تشریح** :. پـدے عبارت سره مـصـنف دریـم صـورت ذکرکوی دفعل مالم یسم فاعله پـدے شان سره چه دکوم ابواب په اول کښ همزه وصلیه وی لـکه اسـتخرج اواقـتدرچه باب استـفـعـال اوباب افـتـعـال دے نـوپـدے کـښ بـه حـرف اول اوثـالـث مضموم وی اودغه شان داحکم دبا ب انفعال اوب افعنلال اوباب افعوال هم دے.

**سوال** : دامغایرت حاصلیږی په ضمے داول حرف سره نوثالث ولـے مضموم کولـے شی.

**جواب** : کـه اکتـفاء په ضمـے دحرف اول شوے وے اوثالث ضمـے نوے ورکړے شوے نـو لازم شوے به وو التباس دماضی مجهولـے دامرسره ددے ابوابوپه حالت دوصل کښ په اول دهـربـاب کـښ اوپـه وقف سره په اخردهرباب کښ څکه پدوی کښ همزه وصلیه ده داپه لفظ کښ وصلاساقطیږی اوپه کتابت کښ موجوده وی.

**وفـی الـمـضـارع ان یـکـون حـرف الـمضارعة مضموماوماقبل اخره مفتوحا نحویُضرَبُ ویُستَخرَجُ.** اوپه مضارع کښ حرف مضارعت به مضموم وی اوماقبل اخربه مفتوح وی.

**تشریح** : هـرکـلـه چـه مـصنف فارغ شودعلامه دمفعول مالم یسم فاعله نه په ماضی کښ نـوشروع ئـے اوکـړه په بیان دمفعول مالم یسم فاعله په مضارع کښ چه مجهوله وی

لـكـن ضـمـه داول داعـلامه نده په فعل مجهـول دمضارع معلوم اومجهـول دباب مفاعله او باب افـعـال اوبـاب تـفـعيل اوباب فعلل اودارنگه ددوی ملحقات داشريك دی په ضمه كښ معـلوم وی اوكه مجهـول وی ددے ابوابو فرق ددوی په حركت دماقبل اخرسره چه په معلوم كښ مكسوروی اوپه مجهول كښ مفتوح وی.

**وفی الاجوف قيل وبيع وبالاشمام الخ.**

اوپه اجوف كښ ماضی مجهول به راځی قيل اوبيع اوپه اشمام سره به راځی الخ.

**تشريح** : پدے عبارت سره مـصنف اجوف دماضی تعليل ته اشاره كوی اوپدے كښ دری وجـه دی: چـه دواو اويـا حـركـت مـاقـبل ته نقل شی دقُوِل اوبُيِع په سلب دحركت دماقبل سره اوواوپه قول كښ بدل شی په ياء سره په قانون دميعادسره نوقيـل به تـرے جوړشی اوبُيِع كښ صرف نقل دحركت ماقبل ته اوكړے شی اويا په خپل ځاے پاتے شی.

٢- وجـه اشمام دے مراداشمام نه دادے چه كسره دفاكلمے مائله كړے شی اوعين چه ياء ده واوطرف ته مائله شی اوداددے دپاره كوی چه معلومه شی چه اصل حركت فاء ضمه ده.

٣- وجه دواو اويا حركت حذف كړے شی نوقُوْل اوبُوْع به ترينه جوړشی.

**وكذالك باب اختير وانقيددون اقيم واستخير الخ.**

**ترجمه:** هم دغه شان باب داختيار اوانقيددی نه اقيم اواستخير:

**تشريح** : پـدے عـبـارت سـره مـصـنف اشـاره كـوی لـكـه څرنگه چه په ماضی مجهول داجـوف ثـلاثی مجردكښ وجوه ثلاثه دی نودغـه شان وجوه ثلاثه په ماضی مجهول دثلاثی مـزيـدفـيـه بـاب افتـعـال اوانفعال كښ هم كيدے شی ځكه ددوی نه چه اول دوه حرفين لری شـی نـووزن فـعـل بـه تـرے جـوړشـی داختيـرنـه بـه تـيـرجـوړشی اودانقيدنه به قيدجوړشی اوپشان دقيل اوبيع دی لكن داوجوه ثلاثه په ماضی مجهول دباب افعال اواستفعال كښ نه جاری كيـږی ځكه پدوی كښ صورت دفعل نه جوړيږی بلكه پدے كښ صرف صورت اول جـوړيـږی ځـكـه پـدوی كـښ دحرف علت نه ماقبل داصل په اعتبارسره ساكن دے په اصل كښ اُسْتُخْيِرَواُقْوِمَ دی.

**وفی مضارعه تقلب العين الفانحويقال ويباع الخ.**

اوپه مضارع مجهول داجوف كښ عين كلمه به په الف بدلولے شي لكه يقال اويباع شو.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف اجوف دمضارع مجهولے تعليل ته اشاره كوي چه مضارع مجهول داجوف واوي وي اوكه ديائي وي نوعين كلمه به بدليږي په الف سره پدے شان سره چه حركت دواو اويابه ماقبل ته نقل شي چه هغه فتحه ده اوواو اوياساكن ماقبل مفتوح به په الف سره بدل شي نوپه يقول اويُبيع كښ به يقال اويباع وئيلے شي.

**فصل الفعل امامتعدوهومايتوقف فهم معناه على متعلق غير الفاعل.**

ترجمه : دا فصل دے په بيان دفعل متعدي اولازمي كښ فعل به يامتعدي وي چه موقوفه معنى دهغه په متعلق پورے چه دفاعل نه به غيروي.

**تشريح** : پدے فصل مصنف بل تقسيم دفعل كښ قسمين ته چه فعل بل تقسيم سره په دوه قسمه دے.١. متعدي٢. لازمي دفعل معنى به ياموقوفه وي‌په متعلق پورے چه غيروي دفاعل نه اويابه نه وي موقوفه په غيردفاعل پورے كه قسم اول وو نوفعل متعدي اوكه قسم ثاني وونوفعل لازمي.

**سوال** : ستا په تعريف دفعل متعدي كښ لازمي داخل شوځكه هغه هم موقوف دے په غيردفاعل پورے چه مفعول فيه اومفعول له دے. **جواب** :. مراد ځمونږه دمتعلق نه مفعول به ده نه مفعول فيه اومفعول له دے.

**واما لازم وهومابخلافه كقعدوقام.**

ترجمه : فعل لازمي هغه فعل دے چه خلاف دمتعدي وي لكه قعداوقام شو.

**تشريح** : دويم قسم دفعل لازمي دے چه داپه خلاف دفعل متعدي دے چه معنى دده موقوف نده په مفعول به پورے البته مفعول فيه اومفعول له وغيره غواړي.

**فائده** : فعل لازمي كله منقل كيږي متعدي نوګرځي متعدي اودهغے دپاره شپږ طريقے دي : (١) په حرف جرسره لازمي متعدي كيږي مثال:ذهب الله بنورهم.

(٢) په همزے دباب افعال سره مثال:اذهبت زيدا.

(٣) په نقل سره باب تفعيل ته لكه فرَّحَ زيدٌنه فرحت زيدا.

(٤) دباب مفاعله په الف سره لكه مشي زيدٌنه ماشيت زيدا.

(۵) دباب استفعال په سین سره لکه خرج زید نه استخرجت زیدا.

(٦) فعـل لازمی تضمن دمعنی دفعل متعدی اوکړی. **فائدة** کله فعل متعدی لازمی هم گرځی اوهغه په نون دباب انفعال اوپه تاء دباب تفعل سره مثلاقطع متعدی دے اوانقطع لازمی اوگرځیده.دارنگه چه نقل شی باب تفعل ته لکه تقطع بیا هم لازمی شو.

**و المتعدی قدیکون الی مفعول واحد.**

اوفعل متعدی کله متعدی کیږی یو مفعول ته.

**تشریح :** پدے عبارت سره مصنف دفعل متعدی تقسیم کوی اقسام اربعوته اول قسم دهغے نه دادے چه متعدی کیږی یو مفعول ته لکه ضرب زیدٌ عمروا.

**والٰی مفعولین کاعطیٰ زیدٌعمروادرهما.**

**ترجمه :** دویم قسم دفعل متعدی نه چه متعدی کیږی به دوه مفعولینوته چه پدے کښې اکتفاء په مفعول واحده باندے هم جائزده چه بل ترینه حذف شوے وی مثلااعطیت زیدادرهماکښې اعطیت زیدااویااعطیت درهمادواړه وئیل جائزدی.

دریم قسم دفعل متعدی نه چه متعدی کیږی دوه مفعولینوته چه پدے کښې اکتفاء په احدهماسره جائزنده چه یوترینه حذف شی اواکتفاء په بل اوشی بلکه دواړه ذکرکیږی لکه باب علمت یعنی افعال قلوب کښې مثال علمت زیدافاضلاوئیل کیږی اوداجائزندی چه علمت زیدایاعلمت فاضلااووئیلے شی.

**سوال :.** په باب داعطیت کښې یومفعول حذف کیدے شی اوپه باب علمت کښې نشی څه وجه ده؟ **جواب :** په باب داعطیت کښې دمفعولینو مصداق یوندے په اصل کښې مبتداء اوخبرندی نوحذف دیومفعول پکښې جائزدے اوپه باب دعلمت کښې دمفعولینو مصداق یودے په اصل کښې مبتداء اوخبردی اوپه دوی دواړوکښې تلازم دے دمبتداء دپاره خبرضروری اولازم وی اودخبردپاره مبتداء دغه شان پدے مفعولین دباب علمت کښې تلازم دے حذف داحدهماپه کښې نشی کیدے.

**و الی ثلاثة مفاعیل.** خلورم قسم دفعل متعدی نه چه متعدی کیږی به دریومفاعیلوته لکه اعلم الله زیداعمروافاضلا.

**فائده**: پدے څلورم قسم کښې اصل اعلم واری دی کله چه په دوی باندے همزه دآخله نه وی نودوی متعدی کیږی دوه مفعولینوته هرکله چه همزه پرے داخله شوه نوددریم مفعول زیادت اوشوپکښې لوجے دهمزه نه اوباقی افعال انبأ اونبأدوی اصل ندی په تعدیت کښې مفاعیل ثلاثوته ځکه ددوی تعدیت مفاعیلوثلاثوته ددے وجینه دے چه دوی داعلام په معنی مشتمل دی لهذادوی قائم مقام داعلم شوددے وجے دری مفاعیلوته متعدی کیږی اوپه مذهب داخفش باندے اظننت احسبت اخلت اوزعمت داڅلورافعال هم داعلمت قائم مقام دی نودوی هم داعلمت پشان دریومفاعیلوته متعدی کیږی.

**وهذه السبعة مفعولها الاول** اوداافعال سبعه مفعول اول ددوی الخ.

**تشریح**: مصنف پدے عبارت سره حکم دمفاعیلوثلاثوبیانوی چه دویم مفعول دروستودووسره داسے تعلق لری لکه دباب داعطیت دمفعولین چه دیوبل سره څرنګه تعلق دے په حذف کښې دهغوی نه یوحذف کیدے شی په دے دریوکښې هم اولنے حذف کیدے شی اودروستودواړومعاحذف هم جائزدے مثلااعلم الله عمروافاضلا جائزدے دارنګه اعلم الله زیداوئیل هم جائزدی په اول مثال کښې مفعول اول حذف شوچه زیدااوپه دویم مثال کښې مفعولین اخرین حذف شوچه عمرافاضلادی دمفعولین اخرین تعلق دیوبل سره داسے لکه دباب دعلمت دمفعولینوچه دیوبل سره تعلق دے چه حذف داحدهماپکښې جائزنه دے مثال اعلمت زیداعمراخیر الناس پدے مثال کښې اعلمت زیداخیر الناس وئیل درست ندی په حذف دمفعول ثانی سره.

## التمرین لبحث فعل المتعدی ولازمی

| | |
|---|---|
| یحسبون الاحزاب لم یذهبوا | وجدواماعملوا حاضرا |
| ورئیت الناس یدخلون فی دین الله افواجا | وجدناماوعدناربناحقا |
| یریهم الله اعمالهم حسرات | اتخذالله ابراهیم خلیلا |
| ابلغکم رسلٰت ربی | ولاتبخسوا الناس اشیاء هم |
| اوتی موسی الکتٰب. | |

**فصل** افعال القلوب علمت،وظننت،وحسبت،وخلت،ورئيت،ووجدت، وزعمت.

**ترجمه :** دافصل دے په بیان د افعال قلوب کښ او هغه دادی :

**تشریح :** هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان دفعل متعدی اولازمی نه نوشروع ئے اوکړه په بل تقسیم دفعل کښ قسمینوته ١ .فعل قلب٢ .فعل جارحه لکن فعل قلب ذکرکوی دوجے دحصردده نه اوفعل غیرقلب چه جارحه دی هغه ترینه معلومیږی مقایسةً اوغیرمحصورهم دی ذکرئی ممکن نه وونوترك ئے دهغے اوکړو.

**وجه تسمیه:** دوی ته افعال قلوب ځکه وائی چه پدے کښ معنی دیقین اوظن ده اودده تعلق داعضاء ظاهری سره ندے بلکه دقلب سره دے نوددے وجینه دیته افعال قلوب وائی دوی اسم ددوی افعال یقین وشك دے دشك معنی خلاف یقین ځکه بعضی دیقین دپاره راځی اوبعضی دشك دپاره راځی.

**تعدادافعال قلوب:** په تتبع اواستقراء سره افعال قلوب اوه٧ ثابت شوی دی پدے کښ دری دیقین دپاره دی اوهغه دادی : ١ .علمت٢ .رئیت.٣ .وجدت.اودری دشك دپاره اوهغه دادی:١ .ظننت٢ .حسبت٣ .خلت اویو مشترك دے بین الیقین و الشك هغه زعمت دے کله دیقین دپاره راځی اوکله دشك دپاره راځی لکه زعمت الشیطان شکورا.

**سوال :** ددی افعال نه په ماضی سره ولے تعبیر اوشوبیاخاص په صیغه دمتکلم سره.

**جواب :** ددے افعال نه تعبیرکیدے شی لکن په ماضی پورے خاص ندی بلکه دامطلق افعال مراددی برابره خبره ده که ماضی وی اوکه مضارع وی اوتعبیرپه صیغه دمتکلم سره دے ځکه هرانسان دخپل افعال خه پیجنی په نسبت سره غیرته ځکه تعبیرپه متکلم سره کیږی غالباپه افعال کښ.

**وهی افعال تدخل علی المبتدأ و الخبر فتنصبهماعلی المفعولیة.** اودا افعال قلوب داخلیږی په مبتداء اوخبرباندے نصب دواړولره ورکوی بنابرمفعولیت.

**تشریح :.** پدے عبارت سره مصنف مدخول اوعمل دافعال قلوب ذکرکوی نومدخول ددوی مبتداء اوخبردی اوعمل ددوی نصب دے بنابرمفعولیت. **سوال :** داافعال په جمله اسمیه داخلیږی نه په جمله فعلیه باندے.**جواب :** دوی په جمله کښ عمل کوی اوداعمل ددوی متصوردے په جمله اسمیه کښ اونه په جمله فعلیه کښ ځکه بیالازمیږی کون دفعل عامل

په فعل کښې اوداباطل دے.

**واعلم ان لهذه الافعال خواص.** پوهـ شـه چه اے مخاطبه ددے افعالودپاره څه خاص احکام دی.

**تشريح :** پدے عبارت سره مصنف څه بعض خصوصيات دافعال قلوب ذکرکوی اوهغه دلته څلورذکرکوی.

**ومنهاان لاتقصرعلى احدمفعوليها الخ.**

**ترجمه :** اوبعضی دهغه خواصونه داده چه اکتفاء په يودمفعولی دده جائزده.

**تشريح :** مصنف پدے عبارت سره اوله خاصه بيانوی اوددے وجه مخکښې ذکرشوے ده په بيان دفعل متعدی اولازمی کښې.

**ومنهاجوازالالغاء اذاتوسطت الخ.**

**تشريح :.** پدے عبارت سره دويمه خاصه ذکرکوی چه هغه الغاء ده الغاء وائی ابطال دعـمـل ته لفظااومعنااوددے دوه صورتونه دی١ . چه افعال قلوب ددواړو مفعولين په وسط کښې راشی لکه زيدظننت قائم٢. چه افعال قلوب ددواړومفعولينونه روستوراشی لکه زيدقائم ظننت پدے دواړوصورتونوکښې افعال قلوب ملغی عن العمل دی لفظااومعناپس افعال قلوب بـه پدے صورتينو کښې پـه معنی دمصدرسره وی تعبيريـه ترينـه پـه ظرف کيږی پس تقديردعبارت به دارنګه شی زيدفی ظنی قائم اوزيدقائم فی ظنی.

**سوال :.** افعال قلوب پدے صورت ولے ملغی شودعمل نه. **جواب :** هرکله چه دوی په تـوسط کښې راغلل اويامـوخرشودمفعولينونه نوضعيف العمل شولکن دمسئلے دجوازده نوپه صورت دتوسط سره عمل ددوی اولیٰ دے اوپه صورت دتأخرسره ابطال دعمل اولیٰ دے.

**ومنها انها تعلق اذاوقعت قبل الاستفهام الخ.**

**ترجمه:** اوبعضی دخواصونه داده چه داافعال قلوب معلق کولے شی دعمل نه چه کله واقع شی قبل الاستفهام.

**تشريح :.** پدی عبا رت سر ه مصنف دريمه خاصه دافعال قلوب ذکرکوی چه هغه تعليق دے دتعليق معنی داده چه لفظاعمل ددوی باطل شی اونه معنايعنی اهمال لفظی اواعمال

معنوي ته تعليق وائي اودد ے تعليق دري صورتو نه دي:

(١) چه افعال قلوب قبل الاستفهام راشي مثال لكه علمت ازيدعندك ام عمرو.

(٢) چه افعال قلوب قبل النفي راشي مثال علمت مازيدفي الدار

(٣) چه افعال قلوب قبل لام ابتدائيه نه راشي مثال علمت لزيد منطلق.

پد ے صورتونو كښې ولے عمل لفظانكوي ځكه چه دادري واړه تقاضاد صدارت په كلام كښې كوي پس هركله چه افعال قلوب پد ے صورتونو كښې عمل اوكړي نوددوي صدارت به فوت شي لهذا ددوي عمل لفظاباطل اوګرځولے شو نه معنا.

**ومنها انها يجوزان يكون فاعلها ومفعولها ضميرين لشيء واحد.**

**ترجمه :** اوبعضي دخواصودافعال قلوب نه داده چه جائزده چه شي فاعل اومفعول ددوي دوه ضميرونه ديوشي دپاره.

**تشريح :** مصنف پد ے عبارت سره شلورمه خاصه دافعال قلوب ذكركوي اوهغه داده چه پد ے افعال قلوب كښې فقط داجائزده چه دوي فاعل اومفعول دواړه ضميرمتصل ديوشي دپاره يعني دمتكلم دپاره اويادمخاطب دپاره يادغائب دپاره كيد ے شي مثال لكه علمتني منطلقاياظننتك فاضلاپه خلاف دنوروافعال په هغے كښې داجائزنده مثال لكه داسے نشي وئيلے ضربتني ياضربتك بلكه ضربت نفسي اوضربت نفسك به وئيلے شي په زيادت دنفس سره په مابين دضميردفاعل اودضميردمفعول كښې.

**فائده :** په افعال قلوب كښې داقاعده مذكوره جائزده ځكه مفعول دافعال قلوب په حقيقت كښې دويم د ے اولنے مفعول په طريقے دتوطيه اوتمهيدذكركيږي نودلته حقيقت داتحاددفاعل اودمفعول نه راځي اوپه نوروافعال قلوبو كښې داسے نده نو هلته اتحادراځي دفاعل اودمفعول نودد ے وجينه هلته به اضافت دنفس كولے شي .

**واعلم انه قد يكون ظننت الخ.**

**ترجمه :** پو هـ شه اے مخاطبه چه يقيناكله ظننت په معني داتهمت الخ راځي.

**تشريح :** پد ے عبارت سره مصنف اشاره كوي د ے خبر ے ته چه كله افعال قلوب دمعني ديقين اوشك نه په بله كښې هم راځي ددغه وجينه بيايو مفعول غواړي لكه ظننت بمعني

اتهمت دارنګه مثال ددے په قران کريم وما هوعلى الغيب بضنين اوعلمت بمعنى عرفت په قران کريم کښې مثال ددے لقدعلمتم الذين اعتدوامنکم فى السبت اورئيت بمعنى ابصرت دارنګه په قران کريم کښې ددے مثال ماذاترى اووجدت بمعنى اصبت وجدت الضالة اى اصبتها.

**فصل** افعال الناقصة هى افعال وضعت لتقرير الفاعل على صفة غيرصفة مصدرها الخ دافصل دے په بيان دافعال ناقصه کښې ناقصه هم افعال دى چه وضع شوى دى دپاره دثبوت دفاعل په يوصفت چه دابه مصدرددوى نه وى.

**تشريح** : هرکله چه فارغ شو مصنف دافعال تام نه نوشروع ئے اوکړه په افعال ناقصه باندے تعريف دافعال ناقصه مصنف ذکرکړے دے پدے خپل عبارت سره چه هى افعال الخ.وجه دتسميه په افعال ناقصه سره داده چه داافعال پشان دنوروافعالوندى چه په فاعل سره تماميږى بلکه دوى په کلام جوړيدوکښې خبرته محتاج دى ددے نقصان په وجه باندے دوى ته افعال ناُقصه وائى.

**سوال** : داافعال خو مشتمل دى په نورومعانى باندے ماسوادتقريرنه کله داتول په زمانه دلالت کوى اوانتقال اودوام اواستمرارپه بعضو کښې نوتخصيص ولے اوکړے شودفاعل؟

**جواب** : دادے چه فاعل پکښې عمده دے ځکه دده ذکر اوتخصيص اوشو.

**سوال** : په تعريف کښې افعال تامه داخل شو ځکه هغه ماوضع لتقرير الفاعل على خمسه باندے دلالت کوى. **جواب** :. داقيد چه په تعريف کښې ذکردے چه هسے صفت چه خارجى وى مصدرددے افعال نه وى اوپه افعال تامه کښې مصدردافعالودفاعل صفت ګرځى مثلازيدٌقائماکښې صفت کان ثابتوى خپل فاعل لره چه زيددے يوصفت چه قيام دے اوهغه مصدردکان ندے ځکه مصدرکون راځى.اوپه ضرب زيدعمرواکښې ضرب ثابتوى خپل فاعل لره چه زيددے يوصفت چه ضرب دے اومصدردضَرَبَ دے اوافعال ناقصه کان صار الخ دى چه ذکرشوى دى په مرفوعاتوکښې.

تدخل على الجملة الاسمية الخ. : داخليږى افعال ناقصه په جمله اسميه باندے الخ.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف مدخول دافعال ناقصه اوعمل ددوى بيانوى افعال ناقصه داخليږى په جمله اسمِيه باندے دپاره دورکولودخپلے معنى اثردنسبت جمله اسميه ته مثلاصاردے ددے معنى ده انتقال اى صارزيدغنياپدے مثال کښې صارفعل ناقص دے په

زیدغنی باندے دے چه په جمله اسمیه داخل شوده خپله معنی حکم اواثرنسبت جمله اسمیه ته ورکړوچه زیددیو حالت نه بل حالت ته نقل شو چه غنیٰ ده اول فقیروو اوس غنی شو.داافعال ناقصه په مبتدا اوخبرباندے داخلیږی مبتدا لره رفع ورکوی اوخبرلره نصب ورکوی ځکه مبتدا ورلره فاعل دے اوهغه مرفوع وی اوخبرورلره مشابه بالمفعول دے اومفعول منصوب وی پس دوی ته به مبتداء اوس نشی وئیلے بلکه اسم اوخبردافعال ناقصوبه ورته وئیلے شی.

**وكان على ثلاثة اقسام الخ.** : اوکان په درے قسمه دے.

**تشريح :** پدے عبارت سره مصنف یوه فائده بیانوی چه کان دری قسمه دے ۱.ناقصه۲.تامه۳.زائده.کان ناقصه دیته وائی چه خبرخپل فاعل لره ثابتوی دابیاعام دے چه ماضی زمانه کښ وی دامثبت اویازمانه حال اواستقبال کښ وی که ماضی وی نوبیابه دایادائمی وی لکه كان الله عـلـيـمـا حـكـيـمااویابه منقطع وی لکه کان زیدشابا.اوکان تامه دیته وائی داپه خپل اصل اسم باندے تـام شـوے وی خبـرته محتاج نه وی مثال کان القتال اوددے علامه داده چه وی به داپه معـنـی دوجد حصل ثبت سره اوکان زائده دیته وائی چه په حذف دده سره دجملے نه څه تبدیل دجملے په معنی کښ نه راځی لکه راغلی دی پدے شعرکښ:

جیـــادابـنـــی ابـــی بـکـــرتـســامـــیٰ عــلـــی کـــان الـمـســومـة الـعـــراب

پدے شعرکښ کان زائده راغلے دے ای على المسومة العراب.

**وصارللانتقال نحوصارزيدغنيا.** اوصارراځی په معنی دانتقال باندے لکه صارزیدغنیا.

**تشريح :** دافـعـال نـاقـصـونـه بـل صـاردے اودے راځـی دپاره دانتقـال اوددے انتقال یوځوصورتونه دی:

(۱)انتقال من صفة الى صفة مثال صارزيدعالما.

(۲)من حقيقة الى حقيقة اخرى مثال صار الطين حذفا.

(۳)من مكان الى مكان اخرمثال صارزيدمن بلد الى بلد

(٤)مـن ذات الى ذات اخر مثال صار زيدمن زيدالى بكر. پدے روستنودووصورتینوکښ به محتاج وی په تعدیت کښ الی ته.

**سوال :** رجـع اوارتـداوستـحـال اوتـحول داهم په معنی دصارسره دی اومصنف داذکرنکړه په

قـران کـښ ددے ذکـرهـم راغلـے دے فارتد بصیرا ای صاربصیرا. **جواب** : دادملحقاتو دصارنه دے مصنف اصل ذکرکړے دے ددوی اوفرع ترك کړے ده دوجے داکتفاء په اصل باندے.

**واصبح وامسى واضحى تدل الخ.**

**ترجمه** : اصبح اوامسی اواضحی دلالت کوی الخ.

**تشریح** : داافـعـال ثلاثه مذکوره دلالت کوی په اقتران دمضمون دجملے دخپلو اوقاتو سره لـکـه اصـبـح زیـدذاکـرازیـدپه وخت دصباح کښ ذکرکوونکے شو امسی زید مسرورزیدپه وخت دبیـگاکښ خوشحاله شواوپه معنی دصارسره هم راځی بیاپدے معنی کښ لحاظ داوقات به نه وی لکه اصبح زیدغنیاای صارزیدغنیا.

**وظل وبات یدلان علی اقتران مضمون الجملة بوقتها.**

**ترجمه** : ظل اوبات دلالت کوی په اقتران دمضمون دجملے پدے دواړووقتونوپورے.

**تشریح**: مثـال لـکه ظل زیـدکاتبااي حصل کتابه فی النهاربات زیدنائما ای حصل نومه فی اللیل اوپه معنی دصارسره هم راځی بات زیدفقیرااي صار زید فقیرا.

**سوال** : ددے دواړوذکرئے ولے جداکړوداصبح اوامسی اواضحی نه سره ددینه چه ددے پینځوواړوپه یوه معنی دلالت کوی چه هغه دلالت دے په اقتران دمضمون دجملے باندے.

**جواب** : دا پـیـنـځه افعال په دوه شیئینو کښ شریك دی(١).په اقتران دمضمون دجملے کښ (٢)- پـه مـعـنـی دصـار باندے تول راځی لکن په تامه کښ افتراق دے دا دواړه په معنی دتامه نهایت قلیلاراځی اوهغه دری واړه په معنی تامه کثیر راځی.

**ومـازال ومـافتئ ومابرح ومـاانفك تدل علی استمرار ثبوت خبرهالفاعلهامز قبله نحومازال زیدامیرا ویلزمها حرف النفی.**

**ترجمه و تشریح**: داڅلورواړه راځی دپاره داستمراردخبرددے افعال فاعل ددے افعال لره چـه دکـوم وخـت نـه ئیے داخبرقبول کړی لکه مازال زیدٌ امیرا یعنی زید چه دکوم وخت نه امارت قبـول کـړے دے دهـغـه وخـت نـه زیـد امیردے.اودلته پدے افعالو کښ معنی دنفی ده اوما هم نـافـیـه دے اونـفـی چه په نفی داخله شی اثبات پیداکوی اونفی عامه ده که لفظی وی لکه مثال مذکوره شو اوکه نفی تقدیری وی لکه تاالله تفتؤ تذکریوسف په اصل کښ لاتفتؤ دے

**ومادام یدل علی توقیت امر بمــــدة ثبوت خبرھالفاعلھانحو اقوم مادام الامیر جالسا.**

**ترجمہ و تشریح:** بـل دافـعال ناقصہ نہ مادام دے دارائحی دپارہ ددلالت دتوقیت دفعل ترھغہ پورے چہ خبراسم لرہ ثابت وی لکہ اقوم مادام الامیرجالسا یعنی ترڅوپورے چہ امیرناست وی دھغے پورے بہ زہ ولاړیم اوپدے ترکیب کښ مادام دمخکښ جملے دپارہ ظرف واقع دے.

**ولیس یدل علی نفی الجملۃ حالاوقیل مطلقا.**

**ترجمہ وتشریح:** اولیس دافعال ناقصہ نہ راځی دپارہ دنفی دمضمون دجملے پہ زمانہ حال کښ لکہ لیس زیدقائمایعنی قیام دزیدمنتفی دے فی الحال دامذھب دجمھورونحاتو دے اوبعض نحات وائی چہ دمطلق نفی دپارہ لیس راځی چہ نفی پہ زمانہ ماضی کښ وی اوکہ نفی پہ زمانہ حالی یااستقبالی کښ وی.

**فصل افعال المقاربۃ وھی افعال وضعت للدلالت عی دنو الخبر لفاعلھا.**

**ترجمہ:** دافصل دے پہ بیان دافعال مقاربہ کښ اوھغہ افعال دی چہ وضع شوی دی دپارہ ددلالت پہ قرب دخبرخپل فاعل تہ.

**تشریح:** زدہ کړہ داخبرہ چہ افعال مقاربہ داخواتو دافعال ناقصہ نہ دی لکن دوی پہ جداعنوان سرہ ذکرکړہ ځکہ ددوی بعض احکام خاص دی دافعال ناقصہ نہ مثلا(۱)خبرددوی خاص فعل مضارع راځی(۲) تقدیم دخبرددوی پہ افعالو جائزندے پہ خلاف دافعالِ ناقصوباندے.

**وھی علی ثلاثۃ اقسام الاول للرجاء وھوعسی.**

**ترجمہ وتشریح:** اواافعال مقاربہ پہ دری قسمہ دی:اول دھغوی نہ دپارہ درجاء دے چہ ھغہ عسی دے یعنی ددے خبردفاعل سرہ دنزدیکت امیدوی نو ھغے دپارہ عسی راځی اوداعسی فعل جامددے صرف ددہ فعل ماضی راځی مضارع امرنھی اسم فاعل اواسم مفعول وغیرہ صیغے نہ راځی اودماضی ھم صرف شپږ صیغے راځی(۱) واحدمذکرغائب لکہ عسی ۲.واحدہ مونثہ غائبہ لکہ عست اوشپږ صیغے دمخاطب راځی لکہ عسیت عسیتما عسیتم عسیتِ عسیتماعسیتُنَّ اوبوہ صیغہ دواحدمتکلم عسیت تولے نہ۹ صیغے پہ استعمال کښ راځی.

**وهوفي العمل مثل كاد.** **ترجمه :** اوعسي په عمل كښې پشان دكاددے.

**تشريح :** لكـه څرنگه چه كاداسم لره رفع وركوي اوخبرورلره فعل مضارع راځي دغه شان عسي دے البتـه لږفرق ددوي تـرمينـځ نشته دے چه دعسي خبرفعل مضارع سره دانْ راځي اودكادخبرفعل مضارع بغيردانْ راځي مثال عسي زيدان يقوم.

**ويجوزتقديم الخبرعلي اسمه نحوعسي ان يقوم زيدٌ.**

**ترجمه :** اوجائزدے تقديم دخبردعسي دده په اسم باندے لكه عسي ان يقوم زيد.

**تشريح :** پدے عبارت سره مصنف يوه فائده ذكركوي چه پدے تركيب كښې دڅلورو احتمال دے : (۱) تركيب زيداسم موخران يقوم خبرمقدم دے. (۲) داتـركيـب دباب دتنازع نـه دے دعسـي اوديـقوم تنازع ده په زيدكښې كه ديقوم دپاره عمل اوگنړلے شي اوزيدورلره معمول شي بـنـابـرفـاعليت نودعسي اسم به ضميرمستترشي په عسي كښې اوراجع به شي زيدته اوان يـقوم به ورلره خبرشي . (۳) تركيب ان يقوم زيداجمله دمرفوع اودمنصوب په ځاے قائم مقام ده دعسي دپاره پدے تركيب كښې عسي فعل ناقص دے.

(۴) تـركيـب ان يـقـوم زيـدامجموعه فاعل عسي دے اوعسي فعل تام دے خبرته احتياج نشته دے. **سوال :** عسي دفعل جامدوالي څه دليل دے؟

**جواب :** عسـي دانشـاء دطمع دپاره راځي اوانشاء ات اكثرپه استعمالاتوكښې دحروفومعاني وركوي اوحروف ټول غيرمتصرف دي لهذاعسي جامددے غيرمتصرف دے.

**وقد يحذف ان نحوعسي زيديقوم.**

**ترجمه :** اوكله حذف دان كولے شي دخبردعسي نه لكه عسي زيديقوم.

**تشريح :** پـدے عبارت سره مـصـنف يـوه ضابطه ذكركوي چه كله ان دخبردعسي حذف كـولـے شي ځكه دے مشابه دے دكادسره په مقاربت كښې اودكاد خبربغيردان نه راځي نوددے خبرهـم داسـے بغيردان راځي لكن فرق دادے چه دكاد خبربغيردان كثيردے اودعسي په عكس ددے سره دان كثيراوبغيردان نه قليل دے.

**و الثاني للحصول وهو كاد**

**تـرجمه وتشريح :.** دويـم دافـعـال مـقـاربـه نـه كاددے اودے راځي دپاره دحصول يعني

متکلم وائی چه حصول دخبردکاداسم دده لره یقینی دے مثال کادزیدیقوم

**و الثالث للاخذو الشروع فی الفعل وهو طفق الخ.**

**ترجمه و تشریح** : اودریم دافعال مقاربه نه دپاره دشروع دے یعنی متکلم وائی چه خبراسم لره په حصول کښ نزدے شوے دے په اعتبارداخذ اوشروع سره اوددے معنی دپاره خلورافعال راځی طفق .اخذ .جعل .کرب.اواستعمال ددے خلوروافعالو پشان دکاددے.

**فصل فعلا التعجب الخ.**

**ترجمه وتشریح** : دافصل دے په بیان دفعلینودتعجب کښ الخ هرکله چه مصنف فارغ شودبیان افعال مقاربه نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دفعل تعجب کښ تعجب وئیلے شی طاری کیدلودیو کیفیت ته په نفس باندے په وخت دلیدلودامرغریبه کښ اوپه اصطلاح دنحاتوکښ تعجب وئیلے کیږی ماوضع لانشاء التعجب هرکله چه ئے لانشاء التعجب اووے نوپدے قیدسره ترینه عجبت یاتعجب خارج شوځکه داداپاره داخباردی دلته مصنف فعلا التعجب په صیغه دتثنیه سره ذکرکړواوپه بعض متونوکښ په فعل التعجب کښ اویاافعال التعجب سره ذکرشوی دی اصل کښ تطبیق ددوی دادے چه تثنیه چه وئیلے شویده داپه اعتباردحقیقت سره اودنوعینوسره ده اوصیغه دفعل په مفردسره په اعتباردجنس سره ده اوجمعیت په اعتباردکثرت دافرادوسره دے.

**وله صیغتانماافعله وافعل به نحوماأحسن زیدای ایُّ شیء احسن زیدا.**

**تشریح** : ده فعل تعجب دپاره دوه صیغے دی:مصنف پدے عبارت سره داولے صیغے ترکیب کړے دے لکن پدے کښ درے قوله دی :

(۱) قول د امام فراء دے چه هغه مصنف ذکرکړے دے چه هغه وائی چه مااستفهامیه دے په معنی دایُّ شیء سره مبتداء ده احسن فعل فاعل اوزیدمفعول به فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبردمبتداء مبتداء سره دخبرنه جمله فعلیه انشائیه .

(۲) قول دامام سیبویه دے هغه وائی مابمعنی شیء نکره مبداء ده اومابعدورلره خبردے.

(۳) قول دامام اخفش هغه وائی ماموصوله اومابعدجمله ورله صله ده موصول سره دصله نه مبتداء اوخبرددے محذوف دے چه شیء عظیم دے.**دویمه صیغه افعل به** دے مثال احسن

بزید ددے پہ ترکیب کښ دوه قوله دی:۱ .امام سیبویه وائی چه احسن صیغه دامرده لکن پہ معنی دماضی سره دے چه حسن دے اوبادبزیدزائده ده اوزیدفاعل داحسن دے اوھمزه دصیرورت دپاره ده پدے ترکیب کښ پہ احسن کښ ضمیرمستترنشته پس معنی داشوه صارزیدذاحسن.

(۲) امام اخفش وائی احسن صیغه دامرده اوباقی ده په خپل حال باندے اوفاعل دده ضمیرمستتردے په احسن کښ اوبادتعدیت دپاره ده زیدمفعول به دده ده اوھمزه دصیرورت دپاره ده نوتقدیردعبارت دارنگه شو احسن انت بزیدای صرت ذاحسن.

**ولایبنیان الامما یبنی منه افعل التفضیل.**

**ترجمه وتشریح:** اونه جوړیږی داصیغے دتعجب مگرهغے نه چه دکوم نه صیغے داسم تفضیل جوړیږی اوهغه ثلاثی مجردی چه دلون اوعیب نه نه وی ځکه چه اسم تفضیل اوفعل تجعب دواړه دمبالغے اوتاکیددپاره راځی اوپه اسم تفضیل کښ شرط دادے چه دافعل به قابل دپاره دزیادت اونقصان وی اوداشرط په صیغه دتعجب کښ هم دے بلکه دوی شریك دی په فاعل کښ یعنی څرنگه چه اسم تفضیل راځی دپاره دفاعل نوفعل تعجب هم راځی دپاره دفاعل. **سوال**: ستاقاعده منقوضه شوه پدے قول ماأشتهی الطعام اومامقت الکذب داصیغے دفعل تعجب دی اوداپه معنی دمفعول باندے دی نه په معنی دفاعل باندے.

**جواب**: داشاذدی دے لره اعتبارنشته.

**ویتوصل فی الممتنع بمثل مااشداستخراجافی الاول الخ.** اوپیوست کیږی به په هغه افعالوکښ چه نه راځی دهغے نه فعل تعجب اشداواستخراجا الخ.

**تشریح:** پدے عبارت سره مصنف یوه ضابطه ذکرکوی چه هرکله دفعل تعجب معنی حاصلولے شی دهغه افعالونه چه داترینه ممتنع وی نوطریقه به داوی چه مااشدیامااقبح مااضعف،به راوړے شی اوددے نه روستوبه مصدردهغه فعل ذکرشی دکوم نه چه معنی دفعل تعجب حاصلولے شی، اودابه په طوردتمیزسره ذکرکولے شی مثال لکه مااشد استخراجامااکثرحمرته وماقبح عوره اوددویمے صیغے دجوړولو طریقه به داسے وی چه اول کښ به اشدددینه روستوبه مصدردهغه فعل ممتنع ذکرشی اوباء زائده جاره به پرے داخله کړے شی لکه اشددباستخراجه شودابه ترینه جوړشی.

**ولایجوز التصرف فیهمابتقدیم و لاتاخیر و لافصل.**

**ترجمه:** اوتصرف په دوی کښې په تقدیم اوتاخیرسره نه کیږی اونه پکښې فصل روادے.

**تشریح:** پدے عبارت سره مصنف یوه ضابطه بیانوی دافعال تعجب دپاره اویوه خاصه ددوی ذکرکوی چه هغه عدم تصرف په دوی کښې دے په تقدیم اوتاخیرسره.

ځکه هرکله چه دوی منتقل شوصیغے دتعجب ته نودوی جاری شوپه مجری دامثالو باندے اوامثال کښې تغیرنه کیږی بقدرالامکان نوپه مااحسن زیداکښې مازیدااحسن نه شی وئیلے اوذکردتاخیردلته کړے دے تاکیدانه تاسیسااوفصل هم روانده دفعل تعجب اودمعمول په مابین کښې نوداسے نشی وئیلے مااحسن الیوم زیدایااحسن امس بزیدلکن امام مازنی وائی چه فصل په ظرف سره جائزدے ځکه بناء دظروف په توسع ده جائزدی پدے کښې هغه چه جائزندی په غیرکښې نوداترکیب چه مااحسن الیوم زیدامااحسن فی الدار زیداجائزدے دده په مذهب.

**فصل افعال المدح و الذم ماوضع لانشاء مدح اوذم** دا فصل په بیان دافعال مدح اوذم کښې دا هغه افعال دی چه وضع شوی دی دپاره دانشاء دمدح اوذم.

**تشریح:** هرکله چه فارغ شومصنف دبیان داتعجب نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دافعال مدح اوذم کښې اشاره ده چه فعل په دوه قسمه دے:۱. مدح اوذم۲. غیرمدحه اوغیرذم لکن افعال مدحه اوذم ذکرکوی اوغیرمدحه اوغیرذم ترینه مقایسةً معلومیږی اوبل دوی محصورمعدودذکرکیدے شی اوغیرمدح اوغیرذم غیرمعدوداومحصوردی دهغه ذکراوضبط ممکن ندے دده وجینه ترک کړے شو. **سوال:** تعریف مانع ندے ددخول دغیرنه داخل شوپکښې امدح اواذم ځکه دوی دانشاء دمدح اواوذم دپاره هم دی. **جواب:** دلته هغه افعال مدح اوذم مراددی چه پدے لقب باندے مشهوروی اودوی داسے ندی اودارنګه خارج شودافعال مدحه اوذم مدحیت اومذمت ځکه دوی داخبارمدح اوذم دپاره دی اونه دانشاء مدح اوذم دپاره.

**اما المدح فله فعلان نعم وحبذا.** هرچه فعل مدحه دی هغه دوه دی ۱. نعم ۲. حبذا.

**تشریح:** پدے عبارت سره مصنف تفصیل کوی داجمال.

**سوال:** ددوی شمیرل په افعالوکښې صحیح ندی ځکه داوزن په افعالوکښې نشته دے.

**جواب :** نـعـم پـه اصـل كـښې نعم وو پـه وزن دفعِل باندے بيا كسره دعين منتقله شوه فاءته نونِعُمَ ترينه جوړشو پدے كښې نورغير مشهورلغات هم شته دے.

نَـعِـمَ .نَعُمَ، نِعُمَ، نِعِمَ اوبعض نحات وائي چه دافعلين نـدي بلكه اسمين دي اُودهغوى مستدل دادے چه پـه دوى حـرف نداداخليږى لكه يانعم المولى دلته منادى اسم دے اوهغه حذف شوے دے چه پـه اصـل كـښې ياالله نـعـم المولى وو لكن دوى ته جواب دادے كچرے دااسم شى نوپدوى پورى بيا الـحـاق دتانيـث سـاكـنـه ولـے كيـږى چـه هـغـه علامه دفعل ده لكه فبهاونعمت پس غوره مذهب دجمهوردے.

**وفاعله اسم معرف الخ.**

**ترجمه وتشريح** اوفاعل دنعم اسم معرف باللام به وى په فاعل دنعم كښې درى صورتونه دى

(١)- فـاعـل دده به معرف باللام وى لكه نعم الرجل٢ .فاعل دده به مضاف وى معرف باللام ته لكه نعم صاحب الرجل زيدٌ.

(٢)فـاعـل دده به ضمير مستتروى اودهغه درفع دابهام دپاره نكره منصوبه تميزراوړے شى لكه نعم رجلازيداوكله به لفظ دمارائحى په معنى دشىء سره لكه فنعماهى.

**وزيد يسمى المخصوص بالمدح.**

**ترجمه :** اوزيدمسمى كولے شى په مخصوص بالمدح سره په امثله مذكوره كښې.

**تشريح :** زده كـړه داخبره چه پس دافعال مدح اوذم نه مخصوص راځى په افعال مدح كښې مخصوص بالمدح اوپه افعال ذم كښې مخصوص بالذم دادپاره دبيان دفاعل.

**فائده :** دامـخـصـوص بـالـمـدح اوبـالـمـخوص بـالـذم بـه دفاعل سره مطابق وى لازماپـه افراداوتثنيت اوجمعيت اوتذكير اوتانيث كښې لكه نعم الرجل زيدنعم الرجلان زيدان نعم الرجال زيدون نعمت المرأة هندنعمت المرأة هندتان ونعمت النساء هندات.

**سوال :** ستـا قاعده منقوضه شوه پدے افعال ذم باندے چه واقع دے پدے ايت كښې بئس مـثـل الـقـوم الذين كذبوابايٰتنا دلته فاعل مفرددے چه مثل دے اوفاعل جمع ده چه الذين دے مـطـابـقـت نشته دے. **جواب :** پـدے كـښې تـاويـل شـوے دے پـه تـقـديرد مثل سره پـه جناب دمـخـصـوص بـالـذم كـښې تـقـديـرد عبارت دارنـگـه شولبئس مثل القوم الذين كذبوافاعل هم

مفردد ے اومخصوص بالذم هم مفردد ے.

**فائده** : په مخصوص بالمدح اومخصوص بالذم كښې دوه تركيبه دی:په نعم الرجل زيد اوساء اوبئس كښې. ١- فعل فاعل خبرمقدم اومخصوص مبتداء مو خر.٢-فعل فاعل جمله مستقله فعليه ده اومخصوص خبردمبتداء محذوفے دے چه هم دے په اول تركيب سره يوه جمله ده اوپه دويم تركيب سره دوه جملے دی.

**وحبذازيدٌ. تشريح** : دويم فعل دافعال مدح نه حبذاد ے دالفظ دفعل اوفاعل نه مركب دے حبّ فعل دے اوذاورلره فاعل دے.

**قاعده** : ذابه هميشه فاعل دحب وی دد ے حذف اوتبديل جائزند ے اوپد ے كښې قاعده دمطابقت دمخصوص بالمدح دفاعل سره نه جاری كيږی مخصوص بالمدح دده تثنيه اوجمع اومذكر اومونث تول راتلے شی.

---

**ويجوزان يقع قبل ...... حبذارجلازيدٌ.**

**ترجمه و تشريح**: اوجائزده چه واقع شی مخكښې دمخصوص بالمدح حبذانه حال اوتميز مثال دتميز جندارجلازيدٌ اومثال دحال دحبذاراكبازيدلكن داحال اوتميزبه دفاعل نه وی دمخصوص بالمدح نه به نه وی.

---

**واما الذم فله فعلان.** ترجمه : اوهرچه فعل ذم دے نو هغه دوه فعله دی

(١).بئس (٢).ساءِ.استعمال ددوی په كلام دعربو كښې پشان دنعم دے.

**فائده** : په بئس كښې پشان د نعم لغات اربعه دی.

**فائده** : دافعال مدح اوذم دپاره دوه شيئين راوړل ضروری دی(١). فاعل(٢). مخصوص بالمدح ياذم. **فائده** : دمخصوص بالمدح معرفه راوړل ضروری دی.

**قاعده** : په وخت دقرينه كښې حذف دمخصوص هم كيد ے شی لكه نعم العبدانه اواب دلته مخصوص بالمدح محذوف دے چه ايّوبُ دے.

**قاعده** : كوم ځا ے چه مخصوص بالمدح په فعل مقدم شی نوپد ے صورت كښې به يوتركيب كولے شی. **قاعده** : دحبذا مخصوص بالمدح دفاعل سره موافق كول ضروری ندی.

## التمرين لفعل مدح وذم

| | |
|---|---|
| نعم اجر العاملين | فنعم الماهدون |
| بئس مثل القوم الذين كذبوا | وسائت مرتفقا |
| بئس المصير | ساء سبيلا |
| نعم المولى ونعم النصير | بئس مثوى الظالمين. |
| فنعم القادرون | بئس مااشتروابه انفسهم |
| نعم الثواب | ساء مايحكمون |

# بحث الحرف

### القسم الثالث فى الحرف

**تشريح :** هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دفعل نه نوشروع ئے اوكړه په بيان دحرف باندے چه دادريم قسم دكلمے نه دے نودارنگه ئے اووئيل القسم الثالث فى الحرف لكن مصنف تعريف دحرف نه ذكركوى اوتقسيم كوى اوسره ددينه چه اول تعريف دشى وى اوبياتقسيم دشى وى څكه تعريف دحرف مخكښ ذكرشوے دے څكه وائى وقدمضى تعريفه بيااعادے ته ضرورت نشته دے پس دلته لابدى ده دذكردتقسيم نه نوڅكه وائى :

**واقسامه سبعة عشر.** ترجمه : اواقسام دحرف اولس ۱۷ دى.

| | | |
|---|---|---|
| (۱) حروف جاره. | (۲) حروف مشبه بالفعل. | (۳) حروف عاطفه. |
| (۴) حروف تنبيه. | (۵) حروف النداء. | (٦) حروف الايجاب. |
| (۷) حروف الزياده. | (۸) حرفا التفسير. | (۹) حروف المصدر. |
| (۱۰) حروف التحضيض. | (۱۱) حروف التوقع. | (۱۲) حرفا الاستفهام. |
| (۱۳) حروف الشرط. | (۱۴) حروف الردع. | (۱۵) تاء التانيث الساكنه |
| (۱٦) تنوين. | (۱۷) نونا التاكيد. | |

**فصل حروف الجر حروف وضعت الخ.**

**ترجمه**دا فصل دے په بیان دحروف جاره کښې حروف جاره حروف دي چه وضع شویدي **الخ**.

**تشریح** : هـرکـلـه چه مصنف فارغ شودبیان داجمال نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دتفصیل دحروف جاره کښې. **سوال** :. حروف جاره ولے پدے نورومقدم شو؟ **جواب** :. ځکه داکثیردي او العزت للتكاثر. **دویم جواب**: دادے چه ددوی استعمال په کلام دعربو کښې ډیردے.

**سوال** : مصنف ولے دبعضي حروفوتعریف اوکړولکه حروف جاره دارنگه دتنوین ئے هم تعریف کړے دے اودنوروتعریف ئے ندے کړے. **جواب** : دادے چه دحروف جاره په مابين کښې یو مفهوم مشترك دے ددغه شان تنوین کښې اوددینه علاوه دنورتعریف ذکرنکړوځکه ددوی ترمینځه یو مفهوم مشترك نشته دے.

**فائده** : حروف جاره ته حروف جاره ځکه وائي چه جروائي راخکلوته اودوی فعل یاشبه فعل یامعنی دفعل خپل مدخول ته راکاږي دویم نوم ددوی حروف اضافت دي اومعنی داضافت نسبت دے اودوی هم دفعل یاشبه فعل یامعنی دفعل نسبت اواضافت خپل مدخول ته کوی لکن دلته مراددفعل نه فعل اصطلاحي دے اومراددشبه فعل نه دلته هم هغه دے چه عمل کوی پشان دفعل اودماده دفعل نه هم وی لکه(۱) اسم فاعل(۲).اسم مفعول(۳).صفت مشبه(۴).مصدر(۵).اسم تفضیل اومراددمعنی دفعل نه دلته هغه دے چه عمل دفعل پشان کوی لکن دماده دفعل نه نه وی لکه:(۱).اسماء اشارات(۲).حروف تنبیه(۳).حروف نداء(۴).ظرف(۵).جارمجرور(٦).اسم فعل(۷).حروف مشبه بالفعل(۸).حروف تمنی.حروف ترجی وغیره وغیره.امثله : مثال: فعل مررت بزید. مثال : شبه فعل انامار بزید.

**مثال معنی فعل**: هذافی الدار ابوك معنی ددے اشیرالی ابیك فی الدار.

**وهي تسعة عشر حرفا.** اوداحروف جاره نولس(۱۹)دي.

مصنف څه مشهوراوڅه غیرمشهورذکرکړي دي ددے وجینه شیخ عبد القاهرجرجاني اولس ۱۷ ذکرکړي دي ابن حاجب اتلس ۱۸ ذکرکړي دي په زیادت دواورب سره.

من وهي للابتداء الغاية وعلامته الخ.

ترجمه : اول دحروف جاره نه من دے اودے راځي دپاره دابتداء دغایه اوعلامه دده داده الخ.

**تشریح** : هرکله چه فارغ شو مصنف داجمال دحروف جاره نه نوشروع ئے اوکړه په تفصیل

باندے نواول دحروف جاره نه من دے اوشروع اوشوه په من سره ځکه دے راځی دپاره دابتداء نوابتداء پده سره اولیٰ ده. **سوال** : اضافت دابتداء غایه ته نه صحیح کیږی ځکه ابتداء عبارت دے داول الشی نه اوغایه عبارت دے داخر الشیء نه اوددے دواړوپه مابین کښ تضاددے.**جواب** : مرادپه غایه سره مسافت دے. ۲- **جواب** : مرادپه غایه سره فعل دے اوپه فعل باندے اطلاق دغایه اوشو ځکه غایه غرض اومقصودته وائی اوفعل هم غرض دفاعل وی اوعلامه دمن ابتدائیه داده چه مقابله کښ الی راځی چه هغے دپاره دانتهاء دغایه دے لکه مررت من البصره الی الکوفه یابه ددے په مقابل کښ هغه شی راځی چه هغه فائده د الی ورکوی لکه اعوذبالله من الشیطان الرجیم دلته اعوذپه معنی دافرّسره دے اوباء په معنی دالی سره ده یعنی اَفِرُّ من الشیطان الرجیم الی الله.

**وللتبین وعلامته الخ. ترجمه و تشریح:** اوبل معنی دمن تبین ده یعنی مدخول دده به بیان وی دپاره دامرمبهم چه کوم مخکښ دمن دے اوعلامه داده کچرے من حذف شی نوپه ځائے راوړل دالذی صحیح وی لکه پدے قول دالله تعالی کښ فاجتنبوا الرجس من الاوثان ای الذی هو الاوثان.

**وللتبعیض وعلامته الخ. ترجمه و تشریح:.** بله معنی دمن تبعیض ده یعنی بعض مدخول دمن مفعول دفعل به وی لکه اخذت من الدراهم اوعلامه داده چه په ځائے دمن به بعض راوړے شی.

**وزائدة وعلامته الخ. ترجمه وتشریح** : بله معنی دمن زائده ده یعنی راځی به په کلام کښ زائد نوپه سقوط دده سره به نقصان په کلام کښ نه راځی اوزیادت دده به په کلام غیرموجب کښ وی په نزد بصریانوباندے. اوکلام موجب دیته وائی چه په هغے کښ نفی،نهی، اواستفهام نه وی اوغیرموجب دیته وائی چه په هغه کښی نفی،نهی،استفهام وی لکه ماجاء نی من احد هل جاء نی من احد،لا تضرب من احدداتول ترکیبونه غیرموجب دی اومن پکښ زائددے.

اوپه مذهب دکوفیانو اواخفش باندے من زائده په دواړوکلامونوکښ راځی برابره خبره ده که موجب وی اوکه غیرموجب وی دوی استدلال پیش کوی یو پدے قول سره چه قدکان من مطردلته من زائده په کلام موجب کښ اودویم قول د الله تعالی سره یغفرلکم من ذنوبکم دلته

من زائده دے اوکلام موجب دے بصریان جواب ورکوی چه دلته من دتبعیض دپاره دے په ایت کښ او د تبین دپاره دے په قدکان من مطرکښ یعنی قدکان ای وجد شیء من مطراویادلته هم دتبعیض دپاره دے اویاداپه موافقت دسوال دسائل کښ راغلے دے سائل سوال اوکړوچه هل کان من مطرنو مجیب جواب ورکړوچه قدکان من مطرځکه مصنف وائی فتأمل.

**والی وهی لانتهاء الغاية .**

**ترجمه وتشريح:** اوالی دحروف جاره نه راځی دپاره دانتهادمسافت الی ګرځوی مدخول خپل لره منتهی الیه دپاره دفعل سابق برابره خبره ده چه مدخول دده زمان وی اوکه مکان وی مثال داول لکه سرت من البصرة الی الکوفة اومثال ددویم لکه اتموا الصیام الی اللیل اوعلامه دده داده چه په مقابله دده کښ به من ابتدائیه ذکروی.

**وبمعنی مع قليلا.** ترجمه وتشريح:. اوراځی الی په معنی دمع سره دقلیلادااستعمال به قلیل وی اویاپه زمانه قلیله کښ به وی لکه پدے قول دالله تعالی کښ: ولاتأکلوا اموالهم الی اموالکم یعنی مضموما مع اموالکم یالکه من انصاری الی الله ای مع الله یالکه فاغسلوا وجوهکم وایدیکم الی المرافق ای مع المرافق.

**وحتی وهی مثل الخ.**

**ترجمه وتشريح :** اوحتی پشان دالی دے په انتهاء کښ اوپه معنی دمع سره زیات راځی لکه وائی مصنف وبمنعی مع کثیرا اودلته اکتفاء مصنف اونکړه په حرف تنبیه باندے دپاره دفرق په مابین دالی اوحتی کښ چه الی په معنی دمع سره دے اوحتی په معنی دمع سره کثیرادے مثال نمت البارحة حتی الصباح اومثال چه په معنی دمع سره وی لکه قدم الحاج حتی المشاة .

**ولاتدخل الاعلی الظاهر.** ترجمه وتشريح : اوحتی به صرف په اسم ظاهرداخلیږی پدے عبارت سره مصنف دویم فرق ته اشاره اوکړه چه الی په ضمیر اواسم ظاهردواړوداخلیږی اوحتی په اسم ظاهرداخلیږی نه په ضمیرباندے په مذهب دجمهورونحاتوباندے نوداسے نشی وئیلے حتاه بخلاف الیه.ځکه دحتی نه روستو ضمیرمنصوب اومجرورهم راځی پس که دحتی نه روستو ضمیرراشی نو لازم به شی التباس دضمیرمجروردمنصوب سره.

**خلافا للمبرد :** خلاف ثابت دے مبردلره اوهغه چه دحتی نه روستو ضمیرراتلے شی لکه

پدے شعرکښې راغلي دی:

فلاوالله لایبقی اناس فتیً حتاك یاابن ابی زیاد

ددے جواب مصنف ورکړے دے پدے قول سره چه داشاذ دے اوشاذقابل داستدلال ندے قول دامام مبردضعیف دے ځکه پدے کښې قیاس دغیرشعردے په شعریاندے اوداضعیف اوباطل دے اودویمه وجه داده چه داقلیلاً دے اوقلیل کالمعدوم وی.

وفی وهی للظرفیة الخ. **تشریح**: اوفی راځی دپاره دظرفیت یعنی ګرځوی مابعدخپل ظرف دپاره ماقبل اوداعام دے حقیقتا وی اوکه مجازاً مثال دحقیقی لکه الماء فی الکوز اومثال دمجازی لکه النجات فی الصدق اوپه معنی دعلی سره راځی قلیلالکن پدے کښې اختلاف دنحاتودے صاحب مفصل وائی چه فی په معنی دعلی سره نه راځی اوکوم مثال چه ذکرشوے دے چه فی جزوع النخل نودلته دفی خپله معنی ده چه ظرفیت دے اوابن حاجب وائی چه پدے مثال کښې دلته فی په معنی دعلی سره دے اوددے دپاره یوه قاعده ذکرکوی چه کوم شی کښې معنی داستقرار دمنزلت وی نو هلته مقام دظرفیت به وی یعنی فی به په خپله معنی کښې مستعمل وی اوپه کوم شی کښې چه معنی داستعلاء وی اواستعمال دفی پکښې شوے وی نو هلته به فی په معنی دعلی سره وی اوکه دواړه معانی پکښې وی نو هلته اختیاردے هره معنی چه اغستے شی نوجائزده مثلاجلست فی الارض یاجلست علی الارض دواړه صحیح دی پس دلته ایت کښې معنی داستعلاء ده نوپه معنی دعلی سره دے.

**فائده**: [۱] فی بمعنی مع مستعملیږی ادخلوفی امم ای مع امم.[۲]په معنی دتعلیل سره لمسکم فیمااخذتم فیه عذاب عظیم دلته فی په معنی دلام تعلیلیه سره دے ای لمااخذتم [۳]بمعنی مقابله ومامتاع الحیواة فی الاخرة الاقلیل.

و الباء وهی للالصاق. ترجمه و تشریح:. اوباء راځی دپاره دالصاق بل دحروف جاره نه باء ده اوداراځی دډیرو معانیودپاره چه یو دهغے نه الصاق دے الصاق دیته وائی چه ګرځوی شی اخرملصق په مدخول خپل پورے داپه طریقے دمخالطت سره وی دیته الصاق حقیقی وائی مثال به داء اویابه په طریقے دمجاورت وی دیته الصاق مجازی وائی مثال

مررت بزيد اى التصق مروري بمكان يقرب منه زيد.

**وللاستعانة نحو كتبت بالقلم.** ترجمه و تشريح: بـلـه معنى دباء استعانت. يعنى مدخول دباء به معاون وى دپاره دفاعل په صدوردفعل كښې پدے وجه داباء داخليږى په آلات باندے لكه كتبت بالقلم اواركبوا فيهاباسم الله.

**وقد يكون للتعليل نحو قوله تعالى انكم ظلمتم بانفسكم باتخاذكم العجل.**

**ترجمه وتشريح:** اوكله كله باء راځى دپاره دتعليل لكه راغلى دى پدے ايت كښې باء دعلت دپاره ده چه اتخاذ العجل سبب دظلم دنفس دے.

**وللمصاحبة كخرج زيد بعشيرته.** ترجمه وتشريح: بل باء راځى په معنى دمصاحبت سره يعنى مدخول دباء به مصاحب وى دمفعول سره په صدوردفعل كښې لكه خرج زيدبعشيرته دلته عشيره دزيدسره مصاحب دى په خروج كښې. **سوال** : ذكرمصاحبت پس دالصاق نه مستدرك دے ځكه ددواړومعنى يوه ده. **جواب** : مصاحبت عام دے دالصاق نه فان المصاحبت لايستلزم الالصاق بخلاف العكس.

**وللمقابلة.** ترجمه و تشريح: بل باء راځى په معنى دمقابله باندے چه كرځوى مدخول خپل عوض اوثمن دپاره دماقبل لكه بعت هذا بذاك يالكه اخذت هذا الثوب بدرهم.

**وللتعديت كذهبت بزيد.** بل باء راځى په معنى دتعديت سره دتعديت لغوى معنى تجاوزكول اوپه اصطلاح كښې فعل لازمى متعدى كول مثال ذهب زيدلازمى دے معنى ددے داده زيدتلے دے پس هركله چه په فاعل ددے باندے باء داخله شى نواوبه كرځى متعدى مثال لكه ذهبت بزيدمعنى ددے اوس داشوه مابولے ووزيدلره. دارنګه ذهب الله بنورهم هم دغه قبيلے نه دے.

**سوال** : تعديت ولے مختص شوپه باء پورے په نوروحروف جاره سره هم تعديت راتلے شى. **جواب** : تعديت په دوه قسمه دے :١. چه فعل متضمن وى معنى دتصيرلره ٢. فعل خپل معمول ته رسول په اولے معنى سره تعديت مختص دے په باء پورے اوپه دويمے سره مختص تعديت بالباء ندے دلته معنى اولى مراده ده.

**وزائدة قياسا.** **ترجمه وتشريح:** بل باء راځى زئده ليكن داقياسى اوسماعى دواړه

راځي.قياسي بياپـه دوه مـواضعوكښ راځي:١.هركله چه خبرمنفي وي په ماوليس سره اوبـاء پـرے داخـلـه وي نوداباء به زائده اوقياسي وي مثال مازيدبقائم اوليس زيدبقائم ٢.كله چه داستفهام په خبرباندے باء داخله وي چه استفهام شوے وي په هل سره نوداباء به زائده وي قياسا هل زيدبقائم.

**وسـمـاعا في المرفوع.** **تـرجـمه و تشريح:** اوباء زائـده سـمـاعي راځي په مرفوع اومـنـصـوب دواړوكښ مرفوع بياعام دے چه مبتداء وي لكه بحسبك زيداوياخبروي لكه حسبك زيد اومـرفـوع فـاعـل وي لكه كفى بالله اومنصوب كښ هم زائده راځي مثال القى بيـده اي الـقـى يـده ولاتـلـقـوابـايـديـكم الى التهلكه اي لاتلقواانفسكم الى الهلاك بترك الجهاداوبترك النفقه على عيالكم.

**فائده:** بـاء پـه مـعـنـى (١)دعـن هم راځي مثال سئل سائل بعذاب واقع اي عن عذاب واقع .(٢).پـه مـعـنـى دمن هم راځي مثال يوم تشقق السماء بالغمام اي من الغمام.(٣).په معنى دعـلـى هـم راځي مـثـال ومـنـهـم مـن ان تـأمـنـه بـقنطاريؤده اليك اي على قنطار(۴).برائے تجريد هم راځي مثال رئيت زيدابالعلم اي خالياعن العلم وغيره وغيره.

**واللام وهي للاختصاص.** **ترجمه و تشريح :** اوبـل دحروف جاره نه لام دے اودده دپاره هـم ډيـرمـعـانـي دي بـعـضـي دهـغـوى نه دادي چه يوراځي په معنى داختصاص سره معنى داختصاص داده چه يوشي دبل شي دپاره خاص كول اودبل نه نفي كول لكن دابه ياپه طريقـے داسـتـحـقاق سره اويابه په طريقـے دتمليك سره وي مثال داول لكه الجل للفرس اومثال دثاني لكه المال لزيد.

**وللتعليل كضربته للتاديب.** **تـرجـمه وتـشـريح:** بـل لام راځي دپاره دتعليل چه ګرځوي مدخول خپل علت دپاره دماقبل مثال لكه ضربته للتاديب.

**وزائدة كقوله تعالى ردف لكم** **تـرجـمه وتـشـريح:** بـل راځي زائـدپه كلام كښ لـكـه پـدے قول دالله تعالى كښ ردف لكم دلته لام زائددے ځكه ردف متعدى بنفسه دے نوپس نشته دے حاجت ذكردلام ته چه پدے سره متعدى كولے شي فعل لازمي.

**وبمعنى عن الخ.** **ترجمه و تشريح:** اوبـل لام راځي په معنى دعن سره لكن ددے

دپاره شرط دادے چه دابه یادقول اویادده دمشتقاتوسره متصل وی مثال قال الذین کفرواللذین ای عن الذین الخ.

وبمعنی الواوفی القسم للتعجب کقول الحربی.

لله یبقی علی الایام ذوحید بمشمخربه الظیبان والانس.

داشعرد هزلی شاعردے په لله یبقی کښ لام دقسم دپاره دے په معنی دواوسره اودیبقی نه مخکښ لاحرف نفی مقدردے اودعلی الایام نه مخکښ مضاف مقدردے یعنی مرور الایام اوحیدپه معنی دشاخ مشمخراوچت غرته وائی ظیبان جمع دظبی ده اوسوته وائی اوبمشمخرکښ باء په معنی دفی سره ده اوداباقی پوره جمله مشمخردپاره صفت دے.

**ترجمه و تشریح:** دشعرداده چه قسم په الله چه پاتے به نشی په تیریدودزمانه کښ ښکرونووالاځنګلی بزے په داسے اوچت غرکښ چه په هغے کښ اوسئ اوزنګلی انسانان وی مطلب دشاعردادے چه دنیافانی ده چه په اوچتوغرونوکښ چه ثوك اوسیږی هغه نه پاتے کیږی نوپه یوځاے ددنیاکښ به نه انسان اونه حیوان پاتے شی دالله‌تعالی ارشاددے.کل من علیهافان ماعندکم ینفدوماعندالله باق کل نفس ذائقه الموت

**فائدة** لام جاره(۱) په معنی دفی سره هم راځی ونضع الموازین القسط لیوم ای فی یوم(۲) په معنی دعندسره هم راځی لکه دلته داسے هم وئیلی شی ای عند یوم القیامه (۳).په معنی دبعدسره هم راځی اقم الصلات لدلوك الشمس ای بعدزوالها(۴).په معنی دمع سره هم راځی فلمااسلماوتله للجبین ای مع الجبین.(۵).په معنی دالی سره هم راځی کل یجری لاجل مسمی ای الی اجل مسمی (کذافی الشروح)

وربَّ وهی للتقلیل. : ترجمه و تشریح:. اوبل حرف دحروف جاره نه رب دے اوداراځی دتقلیل دپاره یعنی مدخول دده به افرادقلیله وی په مقابله دکم خبریه کښ راځی دهغه مدخول افرادکثیره غواړی دامعنی حقیقی درب ده اومجازادکثرت دپاره هم رب راځی دامذهب دجمهورونحاتودے چه رب حرف دے دحروف جاره نه اواخفش اوصاحب مفتاح وائی ربّ اسم دے.

وتستحق صدر الکلام: ترجمه و تشریح : اوربّ دکلام دصدارت تقاضاکوی ځکه

پده کښې معنی دانشاء تقلیل ده ددے ده دلالت دپاره صدارت غواړی لکن صاحب کتاب وائی چه دے دصدارت مستحق دے اوابن حاجب وائی چه صدارت ورلره واجب دے اولازم دے.

**ولاتدخل الاعلی النکرة.**

**ترجمه وتشریح:** اورُبّ په نکره موصوفه باندے داخلیږی ځکه تقلیل په نکره کښې متحقق کیږی په صفت سره ځکه کوم شی چه موصوف وی په یوصفت سره نوهغه دغیرموصوف نه اقل اواخص وی.اویابه داخلیږی په ضمیرمبهم مفردمذکرباندے اودامذهب دبصرینودے اوپه مذهب دکوفینودضمیرمبهم اوتمیزکښې مطابقت ضروری اولازم دے.

**وقد تلحقهاما الکافة.**

**ترجمه وتشریح:** اوملحق کیږی کله کله په رب پورے ماکافه اودے به عمل نه کوی ما الکافه منع کوی دعمل کولونه په مابعدکښې اوبیارُبّ په جمله اسمیه اوجمله فعلیه په تولوداخلیږی مثال دجملے اسمیه ربمازیدقائم اومثال دجملے فعلیه ربماقام زیدٌ.

**فائده:** د ماکافه علامه داده چه همیشه به دے متصل لیکلے کیږی اومااسمیه وغیره به همیشه مفصول لیکلے کیږی.

**ولابدّلها من فعل.** اوضروری ده رب دپاره دفعل ماضی نه. **سوال** : ربمایودا لذین کفروادلته ربّ په مضارع داخل دے. **جواب** : دلته مضارع په معنی دماضی ده یودبمعنی ودّ.

**واو ربَّ وهی الواو الخ.** **ترجمه وتشریح:** بل دحروف جاره نه واودے په معنی درب سره لکه راغلی دی پدے قول دشاعرکښې :

وبلــــــدة لیس لهاانیس الا الیــعـافیـروالا الـعیـس

الیعافیرجمع دیعفورده معنی بچے داوسئ دعیس جمع اعیس راځی معنی سپین اوښ، ترجمه شعر: اوماډیرکلی پیمال کړی دی یعنی زه ورته تلے یم لکن ماپه هغے کښې سوا د بچو د اوسواوسپین اوښ نه ندے لیدے دانسانانونه. داشعردعامربن حارث دے اوپدے شعرکښې خپل جرأت اوبهادری بیانوی چه داسے ځائے ته تلے یمه چه هلته یوانسان هم نه وودیرے ځائے وو اوبل دمدګارئ دپاره هم انسان نه ووپدے شعرکښې واوپه معنی دربّ سره دے.

**اختلاف نحات فی واو رب :**

په نزددسيبويه اودبصرينو باندے داواوعاطفه دے اوددينه روستوبه ربّ مقدروی او هغه به عامل وی اوجربه ورکوی اوکوفين اوامام مبردوائی واو رب پخپله جاره دے دليل دادے چه داواوپه افتتاح داشعارواوقصائدوکښ راځی اوکه دعطف دپاره وے نوپه ابتداء کښ به نه وراغلے اودے خوراځی نومعلومه شوه چه حرف جاره دے .بصريين وائی واوعاطفه دے اوپه ابتداء کښ چه راځی نوممکن ده چه مخکښ ددينه معطوف عليه په ذهن دمتکلم کښ وی اولکه څرنګه چه حرف عاطف په اول دنوروحروف جاره کښ راځی نودغه شان په اول درب کښ هم داواو راغلے دے نوپس واوحرف عاطف غيرعامله دے اورب حرف جرمقدرعامل دے.

واوقسم وهی تخص الخ.

ترجمه و تشريح:. بل دحروف جاره نه واو قسميه دے اودده دپاره شرائط ثلاثه دی دده فعل قسم به حذف وی ۲ ،واوقسم په سوال کښ نه راځی ۳ .هميشه به په اسم ظاهرداخليږی په ضميرنه داخليږی لهذا والله والرحمٰن وئيلے شی اووك نشی وئيلے هرچه اول شرط دے ځکه واو کثيرالاستعمال دے په قسم کښ نوپه وخت دحذف دفعل کښ ذهن فعل ته سبقت کوی اوچه دويم شرط دے ځکه واوقسميه فرع دباء ده نوداسے نشی وئيلے والله اجلس ياوالله اخبرنی ياوالله لاتخبرنی اوهرچه دريم شرط دے ځکه چه درجه دفرع خکته شی چه واو قسميه دے داصل نه چه باء قسميه ده باء قسميه په اسم ظاهراوضميردواړو داخليږی.

وتاء القسم وهی تختص . **ترجمه وتشريح**: بل دحروف جاره نه تاء قسميه ده اوددے دپاره هم هغه شرائط ثلاثه دی(۱)دده فعل قسم به حذف وی(۲)،تاء قسم په سوال کښ نه راځی(۳).هميشه به په اسم ظاهرداخليږی په ضميرنه داخليږی لکن مطلقا نه صرف په لفظ دالله باندے تالله به ئيلے کيږی تا الرحمٰن اوتاء الرحيم وئيل درست ندی. **سوال** : ترب الکعبه په کلام دعربوکښ موجوددے. **جواب** : دا شاذدے پدے نورقياس کول صحيح ندی اومذهب دامام اخفش دادے چه تاء قسميه په هراسم باندے داخليږی.

وباء القسم وهی تدخل. ترجمه و تشريح : بل دحروف جاره نه باء قسميه ده اوپدے کښ تعميمات ثلاثه دی (۱)- ددے دپاره ذکردفعل قسم اوحذف دفعل قسم دواړه درست دی لکه بالله اواقسم بالله.(۲).په سوال اوغيرسوال دواړوکښ مستعمليږی بالله لافعلن ياباالله اجلس دواړه

درست دی (۳). په اسم ظاهر او ضمیر دواړو باندے داخلیږی لکه بالله لافعلن وبك لافعلن دواړه درست دی او په اسم ظاهر کښې هم تعمیم دے اسم ذاتی دالله تعالی وی او که اسم صفتی وی.

**وعن للمجاوزة الخ.** **ترجمه وتشریح**: بل د حروف جاره نه عن دے او دے راځی دپاره د تجاوز او مجاوزت یعنی د خپل مجرور نه یو شی لری کوی او دا مجاوزت به یا په طریقے د انفصال سره وی او یا به نه وی یعنی د مدخول د عن نه به منفصل شوے وی او یا نه مثال د اول لکه رمیت السهم عن القوس او مثال د ثانی لکه اخذت عنه العلم.

**فائده**: عن په معنی د بدل هم راځی مثال واتقوا یوما لاتجزی نفس عن نفس.(۲) د استعلاء دپاره هم راځی فانما یبخل عن نفسه (۳). برائے تعلیل ومانحن بتارکی الهتنا عن قولك یعنی لاجل قولك (۴). برائے استعانت لکه رمیت السهم عن القوس(۵). بمعنی بعد لترکبن طبقا عن طبق یعنی حالة بعد حالة (٦). بمعنی من هو الذی یقبل التوبه عن عباده ای من عباده وغیره وغیره.

**وعلی للاستعلاء.** **ترجمه وتشریح**: او بل د حروف جاره نه علی دے. او دے راځی دپاره د استعلاء او دا به یا حقیقی وی لکه زید علی السطح او یا به حکمی وی لکه علیّ دین.

**وقد یکون عن وعلی اسمین.** **ترجمه وتشریح**: او کله عن او علی اسمین هم راځی دا معنی مجازی د دوی ده او علامت د دے دا دے چه من حرف جر به پرے داخل شوے وی من به په معنی د جانب سره وی مثال جلست عن یمینه یعنی من جانب یمینه او علی به په معنی د فوق سره وی مثال ونزلت من علی الفرس یعنی من فوق الفرس ځکه من حرف جر دے دا نه داخلیږی مګر په اسم باندے ورنه بیا به لازم شی دخول د حرف په حرف باندے او دا باطل دے.

**و الکاف للتشبیه.** **تشریح** : او بل د حروف جاره نه کاف دے او دے راځی دپاره د تشبیه لکه په دے قول کښې زید کعمرو یعنی ګرځوی شی اخر مشابه د مدخول خپل او مدخول د ده به مشبه به وی مثال زید کعمرو زید پشان د عمرو دے زید مشبه او عمرو مشبه به او کاف حرف تشبیه.

**وزائدة کقوله تعالی: لیس کمثله شیء.** **ترجمه وتشریح**: او کاف زائده هم راځی مثال لکه لیس کمثله شیء. او په دے کښې احتمالات ثلاثه دی: ۱. کاف په کښې زائد دے تقدیر داسے شو لیس مثله شیء(۲). مثل زائده دے (۳). دواړه زائد ندی ځکه نفی د مثل د الله تعالی شوے ده کنایۃ ځکه نفی د مثل د مثل د شی مستلزم وی نفی د مثل لره او کنایه ابلغ وی د صریح نه په دے

دريوصورتونو اواحتمالاتوكښې داصورت راجح دے چه نه كاف زائددے اونه مثل.

**وقد تكون اسما ترجمه وتشريح**: اوكله كاف اسمي راځي چه كله ورباندے حرف جرداخل شي لكه يضحكن عن البردالمنهم اى مثل البرد المنهم.

**ومذ منذ : ترجمه و تشريح** : بل دحروف جاره نه مذ منذ دے مذپه سكون دذال سره منذپه ضمه دذال سره اودادواړه راځي دپاره دزمانے ماضي ياحاضر وضعا. **سوال** : داخواسماء ظروف شو چه هركله دزمانے دپاره وضع شونوپدوى څنګه حكم دحرفيت اوشو؟

**جواب** : ددوى مدلول معنى حرفي ده پدے وجه ورباندے حكم دحرفيت اوشو مدخول ددوى به زمانه ماضي وى اوياحالي وى كچرے ماضي وه نومعنى ددے ابتداء ده اودازمانه ماضي به مبدأدفعل سابق اوګرځي مثبت وى اوكه منفي وى مثال سافرت من البلدمنذسنة يامارئيت فلانامذسنة اوكچرے معنى ددوى حال وى نودوى ګرځوى زمانه د حال لره چه مدخول ددوى دے ظرف دپاره دفعل سابق مثبت لكه سافرت مذشهرنا اويامنفي وى لكه مارئيته مذشهرنا ومذيومناو التفصيل في كتب شروح النحوفاطلب منها.

**وخلاوعداو حاشا. ترجمه و تشريح**: بل دحروف جاره خلاعدااوحاشادى دوى راځي داستثناء دپاره يعنى پدوى سره استثناء دمابعدراځي دماقبل نه پس كچرے ددوى نه روستومنصوب وى نودوى به افعال وى اوكه چرے روستوترينه مجروروى نودوى به حروف وى والتفصيل في المطولات.

**فصل الحروف المشبهة بالفعل ستة. ترجمه** : دافصل دے په بيان دحروف مشبه بالفعل كښې اوداشپږدى.

**تشريح** : هركله چه فارغ شو مصنف دبيان دحروف جاره نه نوشروع ئے اوكړه په بيان دحروف مشبه بالفعل كښې داهم دحروف عامله نه دى پشان دحروف جاره دوى ته حروف مشبه بالفعل وائي ځكه دوى دفعل سره په څلوروځيزونوكښې مشابهت لري:

(١) لفظا. (٢)معنا. (٣)عملا.(٤) اقساما. ددے تفصيل مخكښې شوے دے په معرب كښې.

**وقد يلحقهاما الكافة. ترجمه**: اوكله پدوى پورے ما الكافه پيوست كيږي.

**تشريح** : پدے عبارت سره مصنف يوه فائده ذكركوى چه دحروف مشبه بالفعل نه

روستو ماکافه راځي پدغه وخت کښ دوی عمل نکوی اودوی بیاپه فعل هم داخلیږی مثال انماقام زیداوپه اسم هم داخلیږی مثال انماالهکم واحد.

اعلم اَنَّ اِنَّ. **تشریح**: پدے عبارت سره مصنف دان مفتوح الهمزه اوان مکسور الهمزه فرق بیانوی پس ان مکسور الهمزه معنی دجملے نه بدلوی بلکه زیات تاکید پکښ پیداکوی اوان مفتوح الهمزه سره داسم اوخبرنه په حکم دمفردسره وی نوتغیرپه جملے کښ راولی اوطریقه دتغیریه داسے وی چه دخبرنه به مصدرراواخلی اواسم ته به مضاف کړے شی مثلا بلغنی ان زیداقائم شونوقائم خبردان دے اومصدردے قیام دے دابه مضاف شی اسم دان ته چه زیددے نوتقدیردعبارت به دارنګه شی بلغنی قیام زید.

**ولذلك یجب الکسر** ترجمه وتشریح : نوددے وجینه چه اِنَّ تغیرپه معنی دجملے کښ نه راولی اواَنَّ تغیرپه معنی دجملے کښ راولی لازم ده کسره الخ.پدے عبارت سره مصنف په مخکښ بیان دقاعدے تفریع کوی دانّ مکسور الهمزه اواَنّ مفتوح الهمزه مقامات بیانوی حاصل ددے تفریع دادے چه کوم ځاے ضرورت دجملے وی نو هلته به ان مکسور الهمزه راځی اوچه په کوم ځاے کښ ضرورت دمفردوی نو هلته ان مفتوح الهمزه راځی نوپس اول دمواضعودان مکسور الهمزه ابتداء دکلام ده چه په ابتداء دکلام کښ به ان مکسور الهمزه راځی ځکه که ان مفتوح الهمزه راوړے شی نو مفردبه شی مابعدددینه نولازم به شی تکلم په مفردباندے په ابتداء کښ اوداباطل دے ځکه پدے سره فائده تامه نه حاصلیږی.

**وبعد القول** **تشریح** : اوپه همزه مکسورے سره به وئیلے شی انّ پس دقول نه یعنی چه مشتق وی دقول نه لکه قال یایقول شومثال یقوّل انهابقرة ځکه مقوله دقول نه وی مګرجمله وی.

**وبعد الموصول** **ترجمه وتشریح**: اوپس دموصول نه به ان مکسور الهمزه وی لکه الذی انه فی المسجدځکه صله دموصول نه وی مګرجمله وی.

**واذاکان فی خبرها اللام نحوانّ زیدالقائمٌ.** **ترجمه وتشریح**: اوکله چه ددے په خبرکښ لام وی نو هلته به هم مکسور الهمزه وئیلے شی ځکه لام راځی دپاره دتاکیددمعنی دجملے بناء په قاعده مذکوره باندے داهم دجملے ځاے دے.

داخلورمقامات مصنف ذکرکړه پدے کښې حصرندے نورهم شته دے چه ددے تفصیل په شروحودکتابونودعلم نحوکښې ذکردے اواجمالا احقرهم په خپله رساله کښې ددے ذکرکړے دے چه مسمی په تبیان نصیرشرح نحومیرسره ده.

**ویجب الفتح حیث یقع فاعلا.** **ترجمه وتشریح:** اوواجب اولازم ده چه اووئیلے شی ان مفتوح الهمزه په هغه ځائے کښې چه مابعدده نه فاعل واقع کیږی .پدے عبارت سره مصنف مقامات دان مفتوح الهمزه بیانوی اول دهغه مواضعونه فاعل دے ځکه چه فاعل نه وی مگرمفردوی مثال بلغنی ان زیداقائم.دویم ځائے :

**وحیث یقع مفعولا.** ځکه چه مفعول مفردوی دریم مقام: حیث یقع مبتداء ځکه مبتداء مفرده وی څلورم مقام حیث یقع مضافا ځکه مضاف الیه مفردوی لکه عجبت من طول ان زیداقائم تقدیرداسے عجبت من طول قیام زیدپینځم ځائے حیث یقع مجرورا کله چه انّ سره داسم اوخبرنه مجرورواقع شی لکه عجبت من ان بکراقائم داپه تاویل دمفردسره وی ای عجبت من قیام بکراوشپږم ځائے وبعدلولا الخ .ځکه لولابه خالی نه وی یابه امتناعیه وی اوبابه تحضیضیه وی کچرے لولاامتناعیه وی نودهغه نه روستوبه مبتداء محذوف الخبروی اومبتداء خونه وی مگرمفرده وی لکه لولاانك منطلق انطلقت اوکچرے لولاتحضیضیه وی نومابعدده نه به یافاعل وی اویامفعول وی او دوی نه وی مگرمفردوی مثال لکه لولاانك ضربتنی صدرمنك دلته دلولانه روسته فاعل دفعل محذوفه دے چه صدردے اوروستوصدرداتفسیردفعل محذوفه دے مثال دمفعول لکه لولاانی معادلك زعمت نودلته انی معادلك په تاویل دمفردسره چه معاداتی دے مفعول دفعل محذوفه دے چه هغه مدخول دلولادے اوزعمت تفسیردهغه دے.

**ویجوز العطف الخ** **ترجمه وتشریح:** اوجائزدے عطف.پدے عبارت سره هم مصنف تفریع ذکرکوی چه ان مکسور الهمزه تغیرپه معنی دجملے کښې نه راولی بلکه تاکیدپکښې پیداکوی اوس کچرے عطف اوشی په اسم دده باندے یعنی په انّ مکسور الهمزه باندے نوددے دوه صورتونه دی په رفع سره هم جائزدے عطف اونصب سره هم جائزدے عطف.رفع په اعتباردمحل سره ځکه محل داسم دان مبتداء ده اومبتداء مرفوع وی اونصب په

اعتباردلفظ سره اواسم دان لفظامنصوب وی مثال ان زیداقائم وعمروٌ،وعمروًا.

واعلم اَنَّ اِنَّ المکسورة. ترجمه و تشریح : مصنف پدے عبارت سره هم تفریع په اصل اوقاعده باندے ذکرکوی چه اِنّ مکسور الهمزه معنی دجملے نه بدلوی نولهذادده په خبرباندے لام تاکیدداخلیدے شی ځکه لام تاکیددجملے دتاکیددپاره راوړے شی ددوی په مینځ کښ څه تضادنشته دے.

وقد تخفف الخ. ترجمه و تشریح : اوکله ان مخفف کولے شی.پدے عبارت سره مصنف دحروف مشبه بالفعل دتخفیف مسئله ذکرکوی اوپدے کښ ځلورحروف مشدددی پدوی کښ تخفیف جائزدے اوپه مختلفوطریقوسره کیدے شی اول دهغے نه مسئله دتخفیف دانّ مکسور الهمزه ذکرکوی نودارنګه ئے اووئیل چه وقدتخفف ان المکسوره الخ په ان مکسور الهمزه کښ تخفیف کیدے شی ځکه داثقیل دے اودوجے دتشدیدنه اودکثرت استعمال نه هم دے تقاضادتخفیف کوی نوپدے وجه مخفف راځی دمثقل لکن لام ورسره راوړل بیاپه خبرکښ دپاره ددے چه فرق راشي دان مخفف من المثقل اوانِ نافیه کښ په صورت د الغاء کښ اوهرچه صورت داعمال دے نوداحمل دے په صورت دالغاء باندے طردا للباب لکن دالزوم دالام مشروط دے په شروط اربعه باندے : (۱) خبربه مثبت وی منفی به نه وی چه لام وضع شوے دے دپاره دتاکیددامرمثبت.(۲)خبردے ماضی نه وی چه مجردوی دقدنه ځکه لام تاکیددهغه شی کوی چه فی الحال موجودوی . (۳) خبربه جمله شرطیه نه وی ځکه دامتردد الوجوددے اوپه لام سره تاکیددهغه شی راځی چه متحقق الوجودوی. (۴)خبربه جواب دقسم نه وی ځکه هغه مصدروی په لام سره دپاره ددے چه لازم نشی توالی دلامینو البته که فصل راغلے وی په مابین دان اودلام کښ په مازائده سره لکه وان کلالمالیوفینهم.

وحینئذ یجوز الغاؤها الخ. ترجمه و تشریح:. اوجائزده چه ان مخفف من المثقل ملغاة العمل اوګرځی ځکه دده مشابهت په دغه وخت کښ لفظاختم شودفعل سره اواعمال هم جائزدے په اعتبارداصل سره.

ویجوز دخولها الخ. ترجمه و تشریح:. اوجائزدے دخول دان مکسوره بعد التخفیف په هغه افعال باندے چه هغه ددواخلودمبتداء اوخبرنه وی لکه باب دکان شویاباب دعلم

شوڅکه اصل په ده کښې داده چه دے به داخلیږی په مبتدا اوخبرباندے نوپس هرکله چه فوت شودخول دده په مبتدا اوخبرباندے نو لابدی ده ددے نه چه داخلیږی به په هغه فعالوباندے چه هغه ددواخلودمبتدا اوخبرنه وی دپاره درعایت داصل مثال ان نظنك لمن الكذبين وان كانت لكبيرة وان كنت من قبله لمن الغافلين.

**وكذالك ان المفتوحة الخ ترجمه و تشريح :** هم دغه شان مخفف كولے شی أنّ مفتوح الهمزه ځرنګه چه تخفيف په إنّ المكسوره كښې جائزدے نودغه شان په أنَ المفتوحه كښې هم جائزدے لكن فرق دادے چه أنّ مفتوح الهمزه پس دتخفيف نه عامل به وی وجوبادان مسكور الهمزه پشان ملغاة العمل به نه وی اوعمل به په ضميرشان مقدركښې كوی اوجمله واقع پس دضميرشان نه به خبروی دده مثال بلغنی ان زيدقائم اوعمل دده به ضميرشان مقدركښې وی ځکه دده مشابهت دفعل سره زيات دے دانّ مكسور الهمزه نه اوان مكسور الهمزه بعد التخفيف خوعمل كوی اوعمل دان مفتوح الهمزه بعد التخفيف ندے موجودپه ملفوظ كښې نولازم كړونحاتوعمل دده په ضميرشان مقدركښې دپاره ددے چه لازم نشی ترجيح داضعف په اقوی باندے اومزيت دفرع په اصل باندے مثال واخردعواناان الحمد لله رب العٰلمين.

**ويجب دخول السين. ترجمه و تشريح:.** اوواجب دے دخول دسين.پدے عبارت سره بيان ديوے ضابطے كوی چه هركله ان مفتوح الهمزه بعد التخفيف په فعل باندے داخل شی نوپه دغه وخت كښې يودڅلورواشياؤنه په فعل باندے داخلول ضروری دی:(۱).سين(۲).سوف(۳).قد(۴).حرف نفی.دپاره ددے چه التباس رانشی دان ناصبه مصدريه سره مثال دسين لكه علم ان سيكون منكم مرضى اومثال دسوف لكه واعلم فعلم المرأ ينفعه .ان سوف ياتی كل ماقدراومثال دقدليعلم ان قدابلغواپه حرف نفی كښې به قرينه پكاروی ځكه چه حرف نفی ددواړوسره راتلے شی كه ان ناصبه مصدريه وی اوكه ان مخفف من المثقل وی اوقرينه به يالفظی وی چه كله روستوترينه مضارع منصوب راغله نودابه ان ناصبه مصدريه وی اوچه كله ترينه وروسته مضارع مرفوع راغله نودابه ان مخفف من المثقل وی اوقرينه به يامعنويه وی هغه به داوی كچرے دامضارع په استقبال پورے مختص كړه نودابه ان ناصبه مصدريه وی ورنه ان مخفف من المثقل به وی. **سوال :** وان ليس للانسان الاماسعی وان

عسی ان یکون قداقترب اجلهم پدے دوومقاماتو کښې انْ په فعل داخل شوے دے اوددے ثلورواشیاؤنه پکښې یو هم ندے راغلے.

**جواب** : مراددفعل نه څمونږه فعل متصرفه دے اومثالینو کښې فعل غیرمتصرف دے.اوپه فعل غیرمتصرفه باندے همیشه به ان مخفف منْ المثقل وی نه ناصبه مصدریه اوقاعده مذکوره دفعل متصرفه ده په هغه دواړوداخلیږی نودفرق دپاره یوداشیاؤ مذکورونه پرے داخلولے شی.

**و کأنَّ للتشبیه الخ.** **ترجمه و تشریح** : بل دحروف مشبه بالفعل نه کأنَّ دے دے راځی دتشبیه دپاره یعنی دیوشی دبل شی سره تشبیه ورکوی مثال کأنَّ زیدًا اسدٌ. **سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے ترکیب چه کان زیدًاقائم یعنی چه خبرپکښې مشتقی وی څکه دلته خبرمشبه به داسم ندے وجه داده چه خبرمحمول په اسم باندے اومتحدبالذات وی داسم سره اوپه مشبه به اومشبه کښې مغایرت وی اوبله وجه داده چه دلته لازمیږی تشبیه دشی دځپل نفس سره . **جواب** : دلته مشبه محذوفه ده اوخبرمشتقی دهغے دپاره صفت دے نوتقدیر دارنګه شوکان زیدارجل قائم.

بیاپه کأنَّ کښې دنحاتو اختلاف دے چه دامرکب دے اوکه مفرددے خلیل نحوی وائی دامرکب دے دکاف تشبیه اوإنَّ مکسور الهمزه نه اوجمهورنحات وائی دامفرددے برأسه دچانه مرکب ندے دمصنف په نزددخلیل نحوی مذهب مختاردے ددے وجینه هغه ئے ذکرکړو.

**وانمافتحت لتقدم .** **ترجمه و تشریح** : داعبارت جواب دے دسوال مقدره نه سوال داسے واردیږی: چه هرکله کأنَّ مرکب شو دکاف تشبیه اوإنَّ مکسور الهمزه نه نو همزه ولے مکسوره نشوه .جواب دادے چه همزه په کأن کښې څکه مفتوحه شوه چه کاف حرف جردے اوحرف جاره په انَّ مفتوح الهمزه داخلیږی نه په انَّ مکسورالهمزه باندے اوپدے کښې لحاظ اورعایت دااصل شودے اګرکه اوس داحرف جرندے ،نوپس همزه مکسوره په مفتوحه باندے بدله شوه تقدیردعبارت دکان زیدااسداداسے شوان زیداکالاسد.

**وقدتخفف فتلغی نحو کان زیداسدٌ** **ترجمه و تشریح**: اوکله په کان کښې تخفیف کولے شی نوبیاملغاة العمل وی څکه بعض مشابهت دده دفعل سره ختم شو چه هغه فتحه ده په اخرکښې لکن داپه افصح لغت سره اوپه غیرافصح لغت کښې عمل کوی لکه راغلی ذی پدے

مصرع کښې : ــ کأن ثدیاه حُقَّان.

**ولـکن للاستدراك الخ.** **تـرجمه و تشریح:.** بـل دحـروف مشبـه بـالفعل نه لکن دے اوداراځی دپاره داستـدراك استـدراك پـه لغت موندلوته وائی اوپه اصطلاح کښې دفع دتوهم ته وائی چـه ناشي وی دکلام سابق نه اودا لکن راځی په مابین دکلامینو متغایرینو کښې معنابرابره خبره ده چه لفظي متغایروی اوکه معنوی متغایروی مطلب دا چه یوکلام منفي وی اوبل مثبت وی مثال جاء زیدلکن عمرولم یجئ.یالکه ولواراکهم کثیرالفشلتم ولکن الله سلم یعنی لکن الله لم یراکم کثیرا.

**ویجوزمع الواو نحوقام زیدولکن عمرو اقاعدٌ.** **ترجمه و تشریح:.** اودالکن دواوسره جوازا راځی لـکن پـدے واوکښې دنحاتواختلاف دے بعضی نحاة دیته واوعاطفه وائی ددے دپاره دے چه عـطف دجملے په جملے اوشئ اوبعض نحاة دیته واو اعتراضیه وائی اودارائے دشیخ رضی هم ده ځکه دلتـه جمع والے مراندے دزید اودعمروچه دامقتضادواوعاطفه ده بلکه دادویم کلام دپاره ددفع دتوهم دے چه ناشي دے دکلام سابق نه.

**وقدتخفف فتلغی.** **ترجمه و تشریح :** ځـکه بعض وجوه دمشابهت پده کښې فوت شی چه هغه فتحه ده نودے مشابه شودلکن عاطفه سره لفظاپه صورت کښې اومعنا چه دواړه دپاره داستدراك دی نوجاری شوپه مجری دلکن عاطفه باندے په عدم عمل کښې.

**سوال :** اِنَّ اواَنَّ چه کـلـه مـخـفف شي نوددوی مشابهت داِن نافیه اودا نْ تفسیریه دِراشی په عدم عمل اوحالانکه داسے نده. **جواب :** ددوی مشـابهـت صـرف صـورتـادے اونه معنانوددے وجینه دوی غیرعامل اونه ګرځیده.

**ولیست للتمنی نحولیت هنداُعندنا** **ترجمه و تشریح :** بل دحروف مشبه بالفعل نه لیت دے اوداراځی دپاره دتـمـنـی چـه طلب دحصول دشيءِ په طریقـے دمحبت سره اوداپه مـمـکـن اومـمتـنـع دواړوداخلیږی لکه لیت زیداقائم اولیت الشاب یعودپه خلاف دترجی نه چه هغـه پـه مـمـکـن داخـلیږی اوپـه ممتنع باندے نه لعل عمرواغائب وئیلے شی اولعل الشاب یعودنشي وئیلے.

**واجـاز الفراء لیت زیداقائماـ** **ترجمه و تشریح :** اوفـراء نـحوی جائزګرځولے دے

داترکیب چه لیت زیداقائمادے په نصب دجزئینوسره په تقدیردفعل سره چه اتمنی دے اودافعل متعدی دے دوه مفعولینوته ځکه دے په معنی دفعلِ قلب دے اودلیل دفراء داد دے چه یالیت ایام الصبارواجعالکن جواب دهغه داستدلال نه په دوه طریقوسره دے:(۱) رواجعا منصوب دے بنابرحالیت چه داحال واقع دے دهغه ضمیرنه چه مستتردے په خبرمقدره کښې چه کائنة دے یعني یالیت ایام الصبا کائنة حال کونهارواجعا.(۲)امام کسائی وائی نصب دجزء ثاني په تقدیردکان سره دے یعنی یالیت ایام الصباکانت رواجعا.

ولعل للترجی کقول الشاعر:

احب الصالحین ولست منهم  لعل الله یرزقنی صلاحا .

ترجمه و تشریح: بل دحروف مشبه بالفعل نه لعل دے اودے راځی دپاره دترجی چه توقع دوجوددامرده پدے شرط چه ممکن الوجودبه وی برابره خبره ده چه محبوب وی اوکه مکروه وي مثال داول لکه لعلکم تفلحون اومثال دثانی لکه لعل الساعت قریب.

وشذ الجربها- ترجمه و تشریح : پدے عبارت سره مصنف دفع داعتراض کوی سوال داد دے چه شمیرل دلعل دحروف مشبه بالفعل نه ندی صحیح ځکه داخودحروف جاره نه دے جواب داد دے پدے سره جرشاذدے چه راغلے دے پدے شعر کښې لعل ابی المغوار منك قریب نویاخوجرپدے کښې په سبیلے دحکایت سره دے چرته په بل ځائے کښې دے مجرور استعمال شوے دے نودلته په طریقے دحکایت سره ذکرکړے شواویادا چه دارجل مشهوروو په ابي المغوارسره نوپه احوال ثلاثوکښې په یاء سره ذکرکیږی برابره خبره ده چه حالت رفعی وی اوکه حالت نصبی وي اوکه حالت جری وی.

وفي لعل لغات ترجمه و تشریح : دلته په لعل کښې لس لغات دی مصنف دلته شپږذکرکړی دی اوځلورئی ترك کړی دی:.

(۱) عل په حذف دلام سره. (۲) عن په حذف دلام اول سره اوپه بدل دلام ثانی کښې په نون سره. (۳) أَنَّ په حذف دلام اول سره اوپه بدل دعین کلمے په همزے سره اوپه بدل دلام ثانی په نون سره. (۴)لان په ابدال دلام کلمه په همزے سره اولام ثاني په نون سره. (۵) لعن چه دویم لام په نون مشددسره بدل کړی. (٦) لعل داپه خپل اصل باندے باقی دے.

وعند المبرد اصله عل۔ ترجمه و تشریح : اومبردوائی اصل دلعل عل دے پس په اول کښې لام راوړے شولعل شوباقی لغات دغه مذکوره دی لکن دجمهورونحاتو په نزدباندے لعل افصح اومشهوردے په مابین ددے لغاتو کښې.

**فصل** حروف العطف عشرة۔ ترجمه و تشریح : دا فصل دے په بیان دحروف عطف کښې او هغه لس ۱۰دي هرچه کله چه مصنف فارغ شودبیان حروف مشبه بالفعل نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دحروف عطف کښې عطف په لغت کښې امالے ته وائی اودے حروفوته حروف عطف پدے مناسبت سره وائی چه پدے سره میلان دمعطوف معطوف علیه ته راځی اودا حروف لس دی :

(۱) واو. (۲) فا. (۳) ثم. (۴) حتی. (۵) او. (٦) اما. (۷) ام. (۸) لا. (۹) بل. (۱۰) لکن.

**فالاربعة الاول.** ترجمه و تشریح:. هرکله چه فارغ شو مصنف دبیان داجمال دحروف عطف نه نوشروع ئے اوکړه په بیان دتفصیل دحروف عطف کښې نودارنګه ئے اووئل چه په حروف عطف کښې څلورړومبنی دپاره دجمع دی برابره خبره ده چه مطلق جمع وی اوکه ترتیب سره وی اومراددجمع نه داده چه معطوف علیه اومعطوف به په حکم کښې برابروی اودامعنی مراده نده چه مصاحبت سره به وی.

فالواوبالجمع مطلقا۔ ترجمه و تشریح:. واودمطلق جمع دپاره راځی پدے عبارت کښې فاء برائے تفصیل ده پدے عبارت سره مصنف فرق بیانوی په مابین ددے څلوروحروفو کښې نوپس واودپاره دمطلق جمع دے برابره خبره ده چه ترتیب پکښې وی اوکه نه اوتراخی پکښې وی اوکه نه مثال:جاء نی زیدٌ وعمروٌ. **سوال** : واو په حروف عاطفه کښې پدے نوروولے مقدم شو؟. **جواب** : دپاره درعایت داصل ځکه په حروف عطف کښې واو اصل دے.

والفاء للترتیب بلامهملة وثم للترتیب بمهملة۔

**ترجمه و تشریح:.** اوفاء راځی دپاره دجمع سره دترتیب نه په مابین دمعطوف اومعطوف علیه کښې بغیرد مهلت نه اوثم عکس دفاء دے مثال قام زیدفعمرٌوودخل زیدٌ فعمرٌو.

وحتی کثمّ ترجمه و تشریح :. اوحتی پشان دثم دے په ترتیب کښې سره دمهلت نه لکن فرق دادے چه زمانه دمهلت دحتی قلیله ده دزمانے دمهلت دثم نه نو حتی ګویامتوسط

دے په مابين دفا اوثم كښې۔ ويشترط ان يكون معطوفها الخ۔

**ترجمه و تشريح :.** مصنف پدے عبارت سره دحتى دپاره شرط بيانوى چه قاعده داده چه دحتى معطوف دخپل متبوع معطوف عليه جزوى اوحتى به په خپل معطوف كښې قوت اوضعف پيداكوى كچرے جزء قويه وونوقوت به فائده كوى اوكه جزء ضعيفه وونوضعف به فائده كوى مثال دقوت لكه مات الناس حتى الانبياء اومثال دضعف لكه قدم الحاج حتى المشاة پس دحتى دپاره شرائط اربعه دى: (۱) اسم به وى (۲)اسم ظاهربه وى (۳)معطوف به دمعطوف عليه جزء وى (۴)دماقبل نه به زيات وى لكه مات الناس حتى الانبياء اويابه كم وى لكه قدم الحاج حتى المشاة **فرق په مابين دثم اوحتى** كښې : (۱)په حتى كښې مهلت كم اوپه ثم كښې زيات. (۲) دحتى معطوف په معطوف عليه كښې داخل وى بخلاف ثم.

(۳) په حتى كښې مهلت ذهنى وى اوپه ثم كښې خارجى وى بطورمثال مات الناس حتى الانبياء دتماموانسانانودمرګ نه روستودانبياؤوفات امر ذهنى دے په خارج كښې داترتيب لازم اوضرورى ندے بلكه دانبياء وفات دخلكوپه درميان كښې شوے دے فتفكروتامل بادنى تفكر.

واَوْ واِماواَمْ الخ۔ **تشريح** : دادرى حروف راځى داحد الامرين دپاره چه غيرمعين وى په نزددمتكلم باندے.

**سوال** : ستاقاعده منقوضه شوه پدے قول دبارى تعالى باندے ولاتطع منهم اثما اوكفورادلته كلمه داو داحد الامرين دپاره نه صحيح كيږى. **جواب** : دادے چه دلته اوپه خپله معنى قائم دے اوهرچه عموم دے نو هغه معلوميږى ديودمبهم نه په سياق دنفى كښې نه لرجے دكلمه داوياام نه.

واِمّاانماتكون۔ترجمه و تشريح:. داماپه باره كښې دنحاتواختلاف دے چه اياداامفردے اوكه مركب دے؟امام سيبويه وائى دامركب دے دان اومانه جمهورنحات وائى مفرددے مستقله كلمه ده حرف دے اواصل په حروفو كښې مفردوالے دے.

**دويم اختلاف** دنحاتوپه اماكښې : چه آياداحرف عاطف دے اوكه نه؟عبد القاهرجرجانى اوابوعلى سيناوائى چه داحرف عاطفه ندے ځكه په اول دمعطوف عليه كښې راځى اوحرف عاطفه دمعطوف عليه نه بعداودمعطوف نه مخكښې وى اوجمهورنحات وائى دادحروف عاطفه نه دے.

وام علی قسمین متصلة۔ ترجمه و تشریح : اوام په دوه قسمه دے یو متصله دے اوبل منقطعه دے. پدے عبارت سره مصنف دام حرف عاطفه تحقیق کوی اوددے دریو حروفو چه ام اواما او اودی په درمیان کښ فرق بیانوی ام متصله دیته وائی چه مابعدده به مربوط وی دماقبل سره لکه سواء علیهم ادستغفرت لهم ام لم تستغفرلهم اوام منقطعه دیته وائی چه مابعددده به مربوط نه وی دماقبل سره لکه ام هل تستوی الظلمات و النورهل یستوی الاعمی و البصیرل فرق دادے چه دام متصله سره همزه لازمه ده داستفهام یعنی بغیرددینه به نه راځی اوپه ام منقطعه کښ همزه لازمه نده لکه دیته اشاره کړے ده مصنف پدے عبارت سره :

وتستعمل بثلاثة شرائط الاول ان یقع ماقبلهاهمزة۔ ترجمه و تشریح:. بیا همزه عامه ده که ملفوظه وی اوکه مقدره وی دویم ۲ شرط دادے کچرے دهمزے نه بعداسم وونودام نه بعدبه هم اسم وی اودغه شان فعل هم مثال اقام زیدام قعددے وجینه داسے نشی وئیلے ارئیت زیداام عمرواځکه دهمزے داستفهام نه روستوفعل دے اودام نه رستواسم دے. دریم شرط دادے چه یودامرینونه به په نزددمتکلم باندے یقینی ثابت وی اوسوال صرف دتعین دپاره به کولے شی نه دثبوت دپاره.

ومنقطعة وهی ماتکون۔ **تشریح** : دویم قسم دام منقطعه دے دابه په معنی دبل سره وی اویابه په معنی دهمزے سره اودابه مستعملیږی په هغه مقام کښ چه دمخکښ نه پکښ اعراض اوشی اودویم کلام ذکرشی دامرنه روستو مثال انهالابل امر شاة ای بل هی هی شاة۔

واعلم انّ ام المنقطعة۔ ترجمه و تشریح:. پدے عبارت سره مصنف بیان فائده کوی چه دام منقطعه داستعمال دپاره دوه صورتونه دی:(۱).دابه دخبرنه روستوواقع وی لکه مثال مذکوره شو(۲).بعدالاستفهام به وی مثال زیدعندك ام عمروٌ.

ولاوبل ولکن وجمیعها الخ۔ ترجمه و تشریح:. دا دری واړه حروف دپاره داحد الامرین راځی چه معین وی یعنی نسبت دحکم به معطوف علیه اومعطوف ته معین وی لکه جاء نی زید لاعمروٌ

## التمرین لحروف العاطفة

افتری علی الله کذباام جنة — اماشاکرا واماکفورا

لاخوف علیهم ولاهم یحزنون — انی اخلق لکم من الطین کهیئة الطیرفانخ فیه

اوکصیب من السماء — لاتسئمواان تکتبوه صغیرا اوکبیرا الی اجله.

کنتم امواتافاحیاکم ثم یمیتکم ثم یحیکم ثم الیه ترجعون .

حروف التنبیه ثلاثة الا،واما،وها۔ ترجمه و تشریح:. بـل دحروفونه حروف تنبیه دی دوی تـه حروف تـنبیـه ځکـه وائی چـه دوی راځی دپاره دایقاظ دمخاطب چـه غافل وی اوداحـروف تـنبیـه دری دی الاواماوهاء الا او اما راځی دپاره دتاکیددمضمون دجملے اودادواړه داخلیږی په جمله برابره خبره ده چه جمله خبریه وی اوکه انشائیه وی اوهرچه هاده نوداخلیږی په اسم اشاره باندے لکه هذا.

**فائده** : پـه اماکښ یـو څـولغات دی ۱ .چه همزه په هاسره بدل شی نو هما۲ .همزه په عین سره بـدلـه شـی نوعما۳ دهمانه چه الف ساقط کړے شی نو هم۴ .دعمانه الف ساقط کړے شی نوعم ۵ .دامانه چه الف ساقط کړے شی نوام.

**فصل** حـروف الـنداء خـمسة الخ۔ **تشریح** : بـل دحـروفـونـه حـروف نـداء دی اوداپینـځـه۵دی:( ۱ ).یا(۲).ایا (۳).هیا(۴) .ای(۵).هـمـزه مـفـتـوحـه.پـدے کـښ ایااوهیادندا دبعیددپاره راځی او ای اوهـمـزه مـفـتـوحـه دنـداء قریب دپاره راځی اویاعامه ده دقریب اوبعید اومتوسط درے واړو دپاره راځی .

**فائده**: یـاء حذف کولے هم شی اویادمندوب دپاره هم راځی اوداستغاثه دپاره هم راځی اوپه لفظ دالله باندے یاداخلولے شی داخصوصیات دیادی دحروف ندائیه نه.

حروف الایجاب ستة۔ **تشریح** : بـل دحروفونه حروف الایجاب دی اوهغه شپږدی : (۱)-نعم.(۲).بلـی (۳).ای (۴).اجـل( ۵)- جیـر. اودلته مرادایجاب نه داندے چه مقابل دسلب اونفی وی بلکه دلته مرادجواب ورکول دی.

وامـانعم لتقریر کـلام سابق مثبتا کـان اومنفیا۔ **تشریح** :. اول حرف دحروف ایجاب نه نـعـم دے اودے راځی دپاره دتـحـقـق دمـضـمـون دجملے سابقے ایجاباوی اوکه نفیاوی اوکه

خبراوی اوکه استفهاماوی مثلاپه جواب دسوال دسائل کښې چه اقام زید اووئیلے شی نعم معنی داده قام زیداوکه سائل سوال اوکړوالم یقم زیدنوپه جواب کښې نعم اووئیلے شی معنی داده لم یقم زیدٌ اوپه جواب د الست بربکم کښې نعم نشی راتلے بلکه داکفردے دلته مصنف داسے وئیلے دی فلتقریرکلام سابق اوداسے ندی وئیلی چه لتصدیق ماسبقها.په نعم کښې لغات:۱.فتحتین نعَم ۲.بفتح النون وکسر العین نعِم ۳.کسرتین نِعِم۴.فتح النون وقلب العین بالحاء نحم.

وبلی تختص بایجاب النفی- ترجمه و تشریح:. دویم حروف دحروف ایجاب نه بلی دے اودے راځی دپاره دایجاب النفی یعنی نفی سابقه باطلوی اوپه سره ایجاب راځی برابره خبره ده که خبروی اوکه استفهام وی لکه الست بربکم قالوابلی یعنی لیس کذلك بل انت ربنالم یقم زیدبلی ای قام زیدٌ.

وای للاثبات بعد الاستفهام ویلزمها القسم- **تشریح** : دریم حرف دحروف ایجاب ای دے ،دے راځی دپاره داثبات پس داستفهام نه اودده سره قسم ذکرکول لازم دی لکه قل ای وربی انه لحق البته فعلِ قسم به ورسره ذکرنه وی مثال هل کان کذاجواب ای واللهٰ اومقسم دده به دری څیزونه وی(۱).لفظ رب(۲).لفظ الله(۳).لفظ عمرلکه ای والله ای وربی ای ولعمری

واجل وجیروان لتصدیق الخبر- ترجمه و تشریح:. څلورم اوپینځم اوشپږم دحروف ایجاب نه اجل اوجیر اوان دی دوی راځی دتصدیق دمخبردپاره برابره خبره ده چه خبرموجب وی اوکه منفی وی نودوی به پس داستفهام نه اویادهغے نه چه په هغے کښې معنی دطلب وی نه راځی.حروف زیادت.

**فصل** حروف الزیادة سبعة- ترجمه و تشریح : دا فصل دے په بیان دحروف زیادت کښې اوهغه اوه۷ دی اودوی ته حروف زیادت وئیلے شی ځکه دوی چه په کومه جمله کښې راغلی وی نوددوی په اسقاط سره ددوی په معنی کښې خلل اونقصان نه راځی، او فائده ددے حروفوپه کلام دعربو کښې ۱ .تاکیدفی الکلام۲ .تحسین دنظم پیداکوی.

**سوال** : دوی ته حروف زیادت ندی وئیل پکارځکه ددوی فائده لفظی اومعنوی شته دے.

**جواب** : چه فائده لفظی اومعنوی نه وی بیابحث ددوی نه اوذکرددوی عبث وو اوپه کلام

دفصحاؤ كښې عبث راوړل جائزندى دوى په دغه معنى سره دى چه په اسقاط ددوى سره معنى ته نقصان اوخلل نه رسى اودوى ته حروف الصله هم وائى لانها يتوصل بها الى زيادة الفصاحة او اقامة وزن لسجع.

فان تزادمع ما النافيه نحوماان زيدقائم۔ **ترجمه و تشريح :** دحروف زيادت نه ان دے داپه يوڅو مقاماتو كښې زائدراځى:(١).دمانافيه نه روستولكه ماان زيدقائم دارنګه پدے قول دحسان بن ثابت كښې :

ماان مدحت محمدا بمقالتى لكن مدحت مقالتى بمحمد

(٢) دمامصدريه سره ان زائده راځى مثال: انتظرماان يجلس الاميربمعنى انتظرمدة جلوس الاميرٌ.

**فائده** : زيادت دان دمااسميه سره هم راځى لكه ولقدمكنٰهم فيماان مكناكم فيه اودالاحرف تنبيه سره هم راځى الاان قام زيدٌ. (٣).دلمانه بعدهم راځى لكه لماان جلست جلست.

وان تزداد مع لما۔ **تشريح** : دويم حرف زائدان دے داهم په يوڅو مقاماتو كښې زائدراځى:(١)دلمانه روستوفلماان جاء البشيرفرق دإن اواَنْ دادے چه دلمانه روستوإنْ مكسور الهمزه زيادت قليل دے اودان مفتوح الهمزه زيادت كثيردے.

(٢)- په مابين دلو اوقسم كښې لكه والله ان لوقمت قمتُ . ومامع اذا۔

**ترجمه و تشريح** : دريم حرف زائدمادے اوداهم په يوڅومقاماتو كښې زائدراځى:

(١) داذانه روستو. (٢) دمتى نه روستو.

(٣) اى نه رستو. (٤) انىٰ نه روستو.

(٥) اين نه روستو. (٦) دان شرطيه نه روستو.

(٧) اوپس دبعض حروف جاره نه.

ولاتزدادمع الواوبعد النفى۔ **ترجمه و تشريح :** څلورم حرف زائدلادے اوزيادت دلاكولے شى پس دواوعاطفه نه چه بعد النفى وى دابياعام دے چه لفظاوى لكه رسول الله فرمائى لاتدخل الملائكه بيتافيه كلب ولاتصاويراويامعناوى لكه غير المغضوب عليهم ولا الضالين دلته نفى اګرچه لفظانشته لكن معنانفى دغيرنه معلوميږى.

(٢)وبعدان المصدريه مثال : مامنعك ان لاتسجد(٣)وقبل القسم مثال لااقسم بهذا البلد.

**فصل** حرف التفسيراى واَنْ ترجمه و تشريح:. دافصل دے په بيان دحرفا التفسيركښې اوهغه دوه دي:١ .اى٢ .ان اى په تفسيردمبهم كښې راځي برابره خبره ده چه دامبهم مفردوى اوكه جمله وى مثال دمفردلكه جاء رجل اى زيدٌ اومثال دجملے قطع رزقه اى مات دارنګه مثال دمفردچه مذكورفي الكتب دے.

**واَنْ انمايفسربها فعل بمعنى اليقين**

**ترجمه و تشريح** : دويم حرف تفسيران دے اوپدے سره تفسيردهغه فعل كولے شي چه په معنى دقول سره وى لكه امر نداء كتابت وغيره اودااكثرتفسيردمفعول مقدره كوى لكه ونادیناه ان ياابراهيم.دلته ان تفسيريه دے فعل نداء په معنى دقول سره دے اومفعول مقدردے تقديردارنګه شوناديْنه بلفظ هوقولنايااِبراهيم اوكله دمفعول ظاهرى تفسيرواقع كيږى لكه اذاوحيناالى امك مايوحى ان اقذفيه.

**فصل** حروف المصدرثلاثة۔

**ترجمه و تشريح** : بل دحروفونه حروف المصدردى دلته اضافت دحروف مصدرته دوجے دادني ملابست نه دے يعنى حروف تجعل الجملة مصدرااودادرى حروف دى:
(١) .ما(٢).ان(٣).اَنَّ.

فالاُوليان للجملة الفعلية۔ **ترجمه و تشريح** : اولنى دواړه حرفين ما اواَنْ دے په جمله فعليه پورے خاص دى چه داګرځوى په تاويل دمصدرسره لكه وضاقت عليهم الارض بمارحبت اى برحبهااودان مصدريه مثال فماكان جواب قومه الاان قالوا اى قولهم.

واَنَّ للجملة الاسمية۔ **ترجمه و تشريح** : اوان دحروف مصدريه دپاره دجملے اسميه دے داپه تاويل دمصدرسره ګرځوى مثال علمت انك قائمٌ اى علمت قيامك .

**فائده** اَنَّ په جمله اسميه پورے خاص دے چه كله مشددوى مخفف نه وى اوماكافه وركړ پورے نه وى پيوست شوے ورنه په جمله اسميه اوفعليه دواړو بياداخليږى.

**فصل** حروف التحضيض اربعة هلّا واَلّا ولوماولولا۔ ترجمه و تشريح : دافصل دے په بيان دحروف تحضيض كښې اوهغه څلوردى:دوى راځى دپاره دبرانګيخته كولودمتكلم مخاطب لره چه كله په فعل مستقبل داخل شى لكه هلا تتوب قبل الموت اوچه په فعل

ماضي داخل شي نوفائده كوى تندم اوزجراوتوبيخ په مافات باندے لکه هلاقرأت القران.

لهاصدر الكلام ترجمه و تشريح:. ددے حروفودپاره صدردكلام وى دپاره ددے چه دلالت اوكړى په يوه نوعه دكلام باندے داول وهلت نه.

وجـميعهامر كبة جزئها الثاني حرف النفي- ترجمه و تشريح:. اوداټول حروف مركب دى مفردندى مركب دى ده دووجزئينونه چه دويم جزددوى به حرف نفي وى اواول جزبه حرف شرط وى په لـولااولـوماكښ اوپـه هلاكښ جزء اول حرف استفهام به وى هلاپه اصل كښ هل لاوو اوپه الاكښ جزء اول مصدردے په اصل كښ داأنْ لاوو.

وللولامعنى اخر- ترجمه و تشريح :. اودلـولادپاره بـله معنى هم شته دے هغه داده چه لـولاء انتـفاء دجملے ثانيـه راولى په وجوددجملے اولى سره اوديته لولاامتناعيه وائى لكه لـولاعـلى لهلك عمراودالولاامتناعيه محتاج وى په دخول كښ دووجملوته اولى به اسميه وى اوثانيه عامه ده چه فعليه وى اوكه اسمنه وى.

**فصل** حروف التوقع قد- ترجمه و تشريح : فـصل دے په بيان دحروفودتوقع كښ چه قددے ديته حرف توقع پدے وجه وئيلے شي چه لانه يخبربه من يتوقع.

وهى فـى الـماضى لتقرب الماضى الى الحال- ترجمه و تشريح : حـرف قدچه په ماضي داخل شي نوزمانه ماضي حال ته قريبه كوى قدركب الاميراى قبيل هذا.

ولهذاتلزم الماضى- ترجمه و تشريح:. ددے وجينه دماضى سره لازم دے ددے وجينه چه په ماضي كښ صلاحيت دوقوع دحال شته دے.

وقـدتجئ للتاكيداذاكان جوابا- ترجمه و تشريح : اوكـلـه راځى دتاكيددپاره كله چه مـاضـى پـه جـواب دسوال كښ راشى لكه سائل سوال كړے وى په هل قام زيدسره نوجواب به وركولے شي په قدقام زيدسره.

وفى الـمضارع للتقليل الخ- تـرجمه و تشريح : اوپـه مـضارع كـښ معنى دتقليل پيداكوى لكه ان الجوادقديبخل اوكله په مقام دمدح كښ معنى دتكثيرپيداكوى لكه قديعلم الله الذين يتسللون منكم لواذاً

وقـديـحـذف الفعل بعدقد تـرجمه و تشريح:. اوكلـه حذف دفعل كولے شي دقدنه

روستولکه راغلی دی پدے قول دشاعرکښ شعر :

افدالترحل غیران رکابنا لمانزل برحالناو کان قدن

ای و کان قد زالت.

**ظابطه :** قـدبـه پـه مـضارع هـغـه وخت داخلیږی چه مضارع خالی وی دعوامل لفظیه اوجازمه نه اودسین اوسوف نه.

**فصل** حـرف الاستـفهـام الـهمزه وهل- **تـرجـمه و تشـریح :** بـل دحـروفـونه حرف الاستـفهـام دے چه داراځی دپاره دطلب دفهم اودعلم او هغه دوه دی( ۱). همزه(۲). هل اوددوی دپاره صدردکلام دے ځکه دوی دلالت کوی په خاص نوع دکلام باندے چه هغه استفهام دے نـوپه اول اوصدردکـلام کښ به راوړے شی چه دلالت اوکړی د اول و هلت نه په دغه خاص نوع بـاندے اودابه په جمله اسمیه اوفعلیه دواړوداخلیږی مثال دجمله اسمیه ازیدقائم اومثال دجمله فـعلیه اقام زیدٌ.دهمزے اوهل فرق همزه په هره جمله اسمیه باندے داخلیږی برابره خبره ده چه ددے خبرفعل وی اوکه اسم وی لکن هل په هغه جمله اسمیه داخلیږی چه خبرد هغے فعل وی ځکه هل په معنیٰ دقدسره دے اوقددلوازم دفعل نه دے.

ودخولهاعلی الفعلیة اکثر **ترجمه و تشریح :** اودخول دحرفاالاستفهام په جمله فعلیه باندے اکثـردے دجمـلـے اسمیـه نـه پـدے عبارت سره مصنف یوه فائده ذکرکوی او هغه داده چه دادواړه حـرفـااستـفهام به په جملے اسمیه اوفعلیه باندے دواړو داخلیږی مگردخول ددوی به په جمله فعلیه باندے اکثروی دجملے اسمیه نه ځکه استفهام زیات په فعل سره کیږی نه په اسم سره.

وقـدتـدخل الـهمزة- **تـرجمه و تشریح :** اوکـلـه هـمـزه داخـلیـږی الخ.پدے عبارت سره مصنف دهمزے اوهل فرق ذکرکوی ډیرمواضع داسے دی چه هلته استعمال دهمزے صحیح وی اودهـل استـعـمـال صـحیـح نـه وی نـومـعـلـومـه شوه چه همزه عـامـه د هل نـه.(۱).سره دوجـوددفـعـل نـه همزه په اسم داخلیدے شی په خلاف دهل باندے مثال ازیداضربت صحیح دے اوهل زیداضربت غلط دے ځکه هل په معنی دقددے په فعل داخلیږی(۲).دکوم کلام نه چه استـفهـام انـکاری مرادوی هـلتـه استـعمال دهمزے صحیح دے نه دهل ځکه داستفهام انـکاری دپاره هـمـزه وضـع شـوے ده نـه هـل.(۳). هـمزه دام متصله سره راوړل صحیح دی نه

دهل.(۴).همزه په حروف عاطفه باندے داخليږى نه هل.

وههنابحثٌ- ترجمه و تشريح:. پدے عبارت سره مواضع خاص دهل ذكركوى چه هلته استعمال دهمزے صحيح نه وى :

(۱) په هل باندے حرف عاطفه داخليدے شى نه په همزے باندے لكه فهل انتم منتهون.

(۲) دام نه بعددهل استعمال صحيح دے نه دهمزے .

(۳) په اثبات كښى هل دنفى دپاره راځى اونه همزه لكه هل ثوب الكفاربمعنى لم يثوب.

(۴) دهل نه روستوالاراتلے شى داثبات دپاره نه همزه لكه هل جزاء الاحسان الا الاحسان.

(۵) په كوم خبردمبتداء چه باء زائده راغلے وى هلته هل راوړے شى نه همزه لكه هل زيد بقائم.

**فصل** حرف الشرط ان ولوواما- ترجمه و تشريح:. دافصل دے په بيان دحرف شرط كښى اوهغه درى دى: ان، لو، اواما،داحروف دال دى په تعليق ديوشى په بل شى پورے شرط په لغت كښى الزام الشى بالشىء تـه وائى اوپـه اصطلاح كښى تـعليق حصول مضمون جمله بحصول مضمون جمله اخرى.

ولهـاصدر الكلام- تـرجمه و تشريح : دے حروف شرط لـره صدردكلام ثابت دے دپاره ددے چه دلالت اوكړى په يوه نوعه دكلام باندے داول وهلت نه.

فـان لـلاستقبال وان دخلت على الماضى- ترجمه و تشريح:. اوان داستـقبال دپاره وضع دے اګركـه پـه مـاضـى بـانـدے داخل وى لكن معنى به دمضارع وركوى مثال ان زرتنى اكرمتك.

ولـولـلـمـاضـى وان دخلت على المضارع- تـرجمه و تشريح:. اولـودپاره دمعنى دمـاضـى دے اګركـه داخـل وى پـه مـضـارع بانـدے داستعمال دده غالب دے اولوپه معنى دان بـانـدے هـم استـعـماليـږى لـكـه ان اعجبتكم اوپه معنى دان ناصبه هم راځى لكه يود المجرم لويفتدى به.

ويـلـزمهما الفعل لفظا الخ- ترجمه و تشريح : اولازم دے دان اولـوسره فعل دافعل به يـامـلـفـوظ وى اويـابـه مـقـدروى دلفظامثالونه ذكرشوى دى اودتقديرى مثالونه لكه وان احدمن الـمشـركـيـن استـجـارك يـاولـو لاانـتم تملكون دلتـه احداوانتم مرفوع دى ځكه چه دافاعلين دى

دپاره دافعال محذوفه اوددوی نه روستو چه کوم افعال راغلی ذی هغه تفسیرکوی دمقدرنو اصل عبارت به داسے شی وان استجارك احدمن المشركين استجارك ولوتملكون انتم يامثال لكه ان انت زائری فاناا كرمك اصل كښ داوو ان كنت زائری فانا اكرمك.

واعلم ان اِنْ لاتستعمل الافی الامور المشكوكة- **ترجمه و تشریح:** پوهـ شه چه يقينا ان شرطيه نه مستعمليږی مګرپه امورمشكوكه كښ مصنف پدے عبارت سره بيان ديوے قاعدے كوی چه ان شرطيه هميشه په امورمشكوكه كښ استعماليږی نه په اموريقينيه كښ ددے وجينه داتركيب غلط دے اتيك ان طلعت الشمس ځكه طلوع دشمس داموريقينيه نه دے داسے وئيلے شی اتيك اذاطلعت الشمس ځكه اذاپه اموريقينيه كښ استعماليږی.

ولوتدل علی نفی الخ- **ترجمه و تشریح :** لوشرطيه جمله ثانی نفی كوی په سبب دنفی داولی سره مثال لوكان فيهماالهة لفسدت پدے ايت كښ جمله ثانيه لفسدتاده په "لو"سره منتفی ده لوجے دانتفاداولی جملے نه چه په ځمكه كښ تعدد دالهه نشته دے.

واذاوقع القسم فی اول الكلام وتقدم علی الشرط- **ترجمه و تشریح :** پدے عبارت سره يوه قاعده بيانوی چه هركله په اول دكلام كښ قسم واقع شواوپه شرط باندے مقدم وونوحرف شرط چه په كوم فعل داخل وی دابه لازمافعل ماضی وی ماضی عامه ده كه لفظا مثال لكه والله ان اتيتنی لاكرمك اويامعنا وی لكه والله ان لم تاتينی لا هجونك.فعل ماضی به لازماولے وی پدے صورت كښ ځكه هركله چه عمل دحرف شرط په جزاء كښ باطل شو ځكه داجواب دقسم دے نوددے وجينه په شرط كښ فعل ماضی راوړل ضروری دی چه په شرط اوجزاء دواړوكښ عمل باطل شی اوموافقت دقسم سره راشی په عدم عمل كښ.

فلذلک وجب فيهماوجب فی جواب القسم من اللام **ترجمه و تشریح :** نوددے وجينه واجب دے پدے كښ هغه چه په جواب دقسم كښ واجب اولازم وی چه دے پدے عبارت سره مصنف تفريع په مخكښ قاعدے باندے ذكركوی چه دويمه حمله به اعتباردلفظ سره جزاء دشرط نده بلكه جواب دقسم دے لهذادتاكيدپاره چه په جواب دقسم كښ چه څه شی راوړے شی نودلته به راوړے شی البته په اعتباردمعنی سره دوه اعتباره لری

جواب قسم اوجزاء شرط.

اماان وقع القسم الخ ترجمه و تشريح:. كچرے قسم په اول دكلام كښې نه وو اوپڼدے باندے شرط اوياغيرشرط مقدم وونو بيادواړه جائز دى (١).كه دشرط اعتبار اوكړے شى نودابه جزاء وى اوكه دقسم اعتبار اوكړے شى نودابه جواب قسم وى.

وامالـلتفصيل ترجمه و تشريح : اوبل دحروف شرط نه امادے دے راغى دپاره دتفصيل داجمال چه متكلم كومه يوه خبره مجمله كړے وى دهغے دتفصيل دپاره راغى چه هغه اجمال به ياپه ذكركښې وى اوياپه ذهن كښې وى دذكرمثال جاء اخوتك امازيدفاكرمته واماعمروفاهنته وامابكرفاعرضت عنه اومثال داجمال ذهنى چه هغه معلوم وى مخاطب ته په واسطوسره اوياپه قرائنوسره اوكله اماراځى دمجرداستيناف دپاره بغيردسبق اجمالى نه لكه امّا چه ذكركيږى په اوائيلودخطبوكښې اوچه كله امادپاره دتفصيل راځى بياپكښې تكرارلازم دے ځكه مفصل مكرروى اوكله كله اكتفاء پكښې صرف په يوقسم كيږى ،وخت كښې مذكورضددغيرمذكوروى ځكه يوضددلالت كوى په بل باندے لكه فاما الذين فى قلوبهم زيغ نوددے ضداما الذين ليس فى قلوبهم زيغ.

ويجب فى جوابها الفاء ترجمه و تشريح : داماپه جواب كښې دوه خبرى لازم دى:(١).دخول دفاء په جواب باندے.(٢)- اول به دثانى سبب وى ځكه دادواړه امرين په شرطيت دامادلالت كوى.

وان يحذف فعلهامع ان الشرط لابدله من فعل ترجمه و تشريح : اماچه په كوم فعل داخليږى دهغه حذف لازم دے سره ددينه دشرط دپاره لابدى وى دفعل اوددے دپاره دوه علتين دى (١).دثقل لفظى دلرے كولودپاره حذف كولے شى(٢)- غرض معنوى ددے مطلب دادے چه متكلم كوم تفصيل كوى نوهغه داسم تفصيل كوى نه دفعل لكه امازيدفمنطلق تقديردعبارت داسے دے مهمايكن منٓ شى فزيدمنطلق پس ددينه فعل شرط چه يكن دے اوجارمجرورچه من شىء دے حذف شواودمهماپه ځاے امّاقائم شو نوامافزيدمنطلق جوړشوپس هركله چه امّاشرطيه په فاء جزائيه باندے دخول ددے مناسب نه وونوددے وجينه فاء دجزء اول نه نقل شوه جزء ثانى ته امازيدفمنطلق شو اوعوض به راوړے شى په مابين

داما اوفاء کښې دفعل محذوفه نه ددے دپاره چه دحرف شرط او حرف جزاء په مابین کښې انفصال اوجدائي راشي.

ثم ذلک الجزاء الخ **ترجمه و تشریح :** مصنف پدے عبارت سره ترکیب ته اشاره کوی چه هرکله دامانه روستو جزاول دمبتداء صلاحیت نه لرلویعنی اسم ظرف وو نو پدے جزء کښې عامل به هغه وی کوم چه دفاء جزائیه نه روستوراغلے وی مثلا امایوم الجمعه فزید منطلق پدے مثال کښې یوم الجمعه ظرف دے جزء اول دے مبتداء نه واقع کیږی پدے کښې عامل دفاء جزائیه نه روستو چه منطلق دے اویوم الجمعه منصوب بنابر ظرفیت.

**فصل** حرف الردع کلا **ترجمه و تشریح :** دافصل دے په بیان دحروف ردع کښې چه هغه کلا دے دکلا معنی منع ده پس هرکله چه کلادزجراومنع دپاره وضع شوے وونو ددے وجینه دده نوم حرف ردع کیخودلے شو. په لفظ دکلاکښې دنحاتو اختلاف دے چه دامفرددے اوکه مرکب دے دجمهورونحاتو په نزدباندے دابسیط اومفرددے اودابن یعیش په نزدباندے دامرکب دے دکاف تشبیه اولانه پس هرکله چه معنی دتشبیه پدے کښې پرے خودے شوه نولام مشددکړے شونوکلا ترے نه جوړشواوداکلادزجر اومنع دپاره وضع شوے دے.

وهذابعد الخبروقدتجئ بعد الامر الخ **ترجمه و تشریح :** داکلادزجر اومنع دپاره هغه وخت راځی چه بعد الخبروی اوکله بعدالامرهم راځی مثال اضرب زید فقلت کلا **فائده دکلا** معنی حقیقی زجر اومنع نده په نزددسیبویه اودجمهورونحاتو باندے لکه پدے ایت کښې یوم یقوم الناس لرب العالمین کلادلته په زجراوردع کښې ندے مستعمل شوے دلته معنی دحرف ایجاب ده اوبعض وائی چه په معنی دحقاسره دے لکن داتولے معانی مجازی دی لکن که کلاپه معنی دحقاسره شی پدے کښې دنحاتو اختلاف دے چه دابه اسمی وی اوکه حرفی وی بعض نحات وائی اسمی به وی لکن اسم مبنی به وی ددے وجینه چه کلااسمی مشابهت لری دکلاحرفی سره نوددے وجینه مبنی به وی اوبعض نحات وائی چه حرفی به وی داراځی دجملے دتحقیق اوتاکیددپاره لکه کلاان الانسان لفی لیطغی.

**فصل** تاء التانیث الساکنة **ترجمه و تشریح :** دافصل دے په بیان دتاء دتانیث ساکنه کښې اوداملحق کیږی په اخردماضی پورے دپاره ددے چه دلالت اوکړی په تانیث دفاعل باندے

چه روستوکوم مسندالیه دے هغه به مونث وی په ساکنه سره احترازاوکړودمتحرکه نه هغه په اسم پورے ملحق کیږی.

**سوال** : تخصیص دتاء الساکنه ولے په فعل پورے اوشو؟اودتاء متحرکه په اسم پورے؟

**جواب** : اصل په اسم کښ اعراب دے اواصل په فعل کښ بناء ده نوتحرك دتاداعلامه داسم شوه اوسکون دتاداعلامه دبناء دفعل شوه.

وقدعرفت مواضع وجوب الحاقها ترجمه و تشریح : پدے عبارت سره مصنف هغه قاعدے ته اشاره اوکړه کومه چه په ماقبل کښ بیان شوے ده چه هغه دفاعل په بیان کښ ذکرده.

واذا لقیهاساکن بعدها ترجمه و تشریح:. اوکله چه پدے پورے ساکن ملحق شی نوپدغه وخت کښ به تالره کسره ورکول لازمی وی دپاره درفع دالتقاء الساکنین چه کله اولنے ساکن مده نه وی نوحرکت دکسرے ورلره ورکولے شی قاعده داده: الساکن اذاحرک حرک بالکسرمثلاقدقامت الصلوۃ

اما الحاق علامۃ جمع المونث ترجمه و تشریح : هرچه الحاق دعلامے دجمع مونث پدے عبارت سره جواب ورکوی دسوال مقدره نه لکه دتانیث دفاعل ددلالت دپاره الحاق دتاکولے شی په اخردماضی پورے نوعلامه دتثنیه او د جمع دے پورے هم ملحق شی دپاره ده دلالت په تثنیت دفاعل اوجمعیت دفاعل مصنف پدے عبارت سره جواب ورکوی چه داضعیف دے ځکه بیابه تکراردفاعل لازم شی اوداقبیح اوناجائزدے ددے وجینه قاما الزیدان قاموا الزیدون قمنا النساء ضعیف دے په خلاف دمسندالیه چه مونث وی پدے کښ کله علامه دتانیث په لفظ کښ راځی اوکله په معنی کښ راځی نوداقبیح اوضعیف ندے.

**فصل** التنوین نون ساکنۃ۔ ترجمه و تشریح : دافصل دے په بیان دتنوین کښ تنوین نون ساکنه دے تنوین مصدردے په معنی دمنون کرده سره لکن داتنوین په تلفظ کښ نون ساکن وئیلے کیږی لکن په کتابت کښ دوه زبراودوه پیش اودوه زیره لیکلے کیږی اوداتنوین تابع دحرکت دے کچرے حرکت په حالت دوقف کښ ساقط شونوتنوین به ورسره ساقط وی والافلا.

لالتاکید الفعل ترجمه و تشریح : پدے عبارت سره نون خفیفه خارج شوځکه هغه هم نون

ساکنه دے لکن دتاکید دفعل دپاره راځي اوتنوین دتاکید دفعل دپاره نه راځي. وهي خمسه اقسام تنوین په پینځه قسمه دے ددے تفصیل په مقدمه دکتاب کښې ذکرشوے دے فلانعیده :
(۱) تنوین تمکن. (۲) تنوین تنکیر. (۳) تنوین عوض. (۴) تنوین مقابله. (۵) تنوین ترنم.

**فائده :** تنوین عوض په دری قسمه دے :
۱- دجملے په عوض اوبدل کښې راغلي وي په اخر دمضاف الیه کښې لکه یومئذ اوحینئذ ۲.
داسم په عوض کښې به راغلي وي په اخر دمضاف کښې اوداراځي په لفظ دکل کښې مثال کل قائم اصل کښې کل انسان قائم ۳. دحرف اوحرکت په بدل کښې راغلي وي لکه جوارٍ غواشٍ دواعٍ

وقدیحذف من العلم **ترجمه و تشریح :** پدے عبارت سره مصنف یوه قاعده بیانوی چه دعلم نه حذف دتنوین کولے شي چه موصوف وي په لفظ دابن اوابنة سره اودالفظ بل علم ته مضاف وي ځکه داقسم علم کثیر الاستعمال وي اوکثرت داستعمال تقاضادتخفیف کوی ددے وجینه تنوین ترینه حذف کولے شي. **سوال :** ستاقاعده منقوضه شوه په فلان باندے داعلم ندے اوتنوین ترینه حذف کولے شي. **جواب :.** فلان حمل شوے دے په علم باندے ځکه داکنایه ده دعلم نه.

**فصل** نون التاکید الخ **ترجمه و تشریح :** دافصل دے په بیان دنون تاکید کښې نون تاکید په دوه قسمه دے : ۱-نون تاکید ثقیله ۲. اونون تاکید خفیفه.

وهوبازاء قدلتاکید الماضي وهي علی ضربین **ترجمه و تشریح :** اودانون په مقابله دقدتاکید للماضی کښې اودانون په دوه قسمه دے خفیفه اوثقیله. **سوال :.** نون خفیفه ولے مقدم کړے شوپه ثقیله باندے؟

**جواب :** نون خفیفه مقدم شوپه ثقیله باندے له وجے دخفت نه ۲. جواب: نون خفیفه جزء دنون ثقیله دے اوجز مقدم وي په کل باندے.

وتدخل في الامر الخ **ترجمه و تشریح :** پدے عبارت سره مصنف یوه قاعده بیانوی چه نون تاکید په کومو مواضعو کښې راځي هغه پینځه ذکردی دلته په امر مطلقاکښې ۲. نهی ۳. داستفهام په اخر کښې ۴. تمنی ۵. دعرض په اخر کښې.

**سوال** : نون تاکید په نفی کښې هم راځي هغه ولے ذکرنشودلته. **جواب** : نفی مشابه دنهی سره نو اکتفاء بذکرالنهی ترك النفی شوے دے اوبل نون تاکیدبه نفیٰ کښې قلیل دے نودد ے وجینه ترك کړے دے . **سوال** : نون تاکیدیه په اول کښې ولے نه راځي پشان دلام تاکید.

**جواب** : نون خفیفه ساکن دے ابتداء ابتداپه ساکن لاز میږی اودامحال ده.

جواب۲:.تاکید همیشه دموکدنه روستوراځي ددے وجینه په اخرکښې ملحق کیږی.

وقدتدخل فی القسم وجوبالوقوعه **ترجمه و تشریح**:. دلته دقسم نه مرادجواب قسم دے اوتدخل معنی تلحق ده پس کچرے جواب دقسم مثبت وونو نون تاکیدپه جواب کښې راوړل واجب اولازم دی ځکه اول دقسم دتاکید نه خالی نه وی نودغه شان اخردقسم هم دتاکیدنه خالی نه وی مثال والله لافعلنّ کذا.

واعلم انه بحسب ضم ما الخ **ترجمه و تشریح** : پدے عبارت سره مصنف ماقبل دنون تاکیدنه شرط ذکرکولودپاره یوه ضابطه ذکرکوی :

وماقبلهامع ضمیر المذکرین مضموم دپاره ددے چه دلالت اوکړی په واومحذوفه باندے.

ومع المخاطبة مکسور دپاره ددے چه دلالت اوکړی په یاء محذوفه باندے:وفتح ماقبلهافیماعداهما.داپاره دخضت اودماعداهمانه مرادهغه واحدمذکرغائب دے اومونث غائب اومخاطب دے اومتکلم دے واحدوی اوکه جمع وی.

امافی المثنی وجمع المونث **ترجمه و تشریح** : پدے عبارت سره مصنف علت دفتحه دماقبل دنون په تثنیه اوجمع مونث کښې ذکرکوی ځکه په تثنیه کښې ماقبل دنون نه الف وی اوهغه فتحه غواړی په ماقبل کښې اوپه جمع مونث کښې هم الف مفاصله وی هغه هم داتقاضاکوی چه فتح دماقبل غواړی.

ونون الخفیفة الخ مصنف پدے عبارت سره یوه ضابطه ذکرکوی چه نون خفیفه په خومواضعواومقاماتوکښې راځي نوددے حاصل دادے چه په دوو۲ مقاماتوکښې نون خفیفه نه راځي بلکه ممنوع دی:۱ .تثنیه۲ .جمع مونث.وجه داده چه په اخرد تثنیه کښې الف وی اوالف ساکن وی اونون خفیفه هم ساکن وی نولازمیږی التقاء الساکنین اودفع هم ممکن نده که الف حذف شی نوداجائزنده یوخوضمیردفاعل دے اوبل لازم به شی التباس دتثنیه دمفردسره اونون

خفیفه لره که حرکت ورکړے شي نو متحرك به شي نو خفیفه خفیفه پاتے نشو اوکه داسے ساکن پریخودے شي نـو لازمیـږي التـقاء الساکنین نولهذاپه تثنیه کښ نشي راتلے اوپه جمع مونث کښ علـت اووجـه داده چه نون خفیفه په تماموا حکامو کښ پشان دنون ثقیله دے اوپه نون ثقیله کښ چـه مـلحـق شـي دجـمع مونث په اخرکښ الف مفاصله راوړے شي لوجے داجتماع دثلاثه نـونـات نـه نـودلتـه اګرکه ثلاثه نونات نه لازمیږي لکن قیاساالف مفاصله به راوړے شي نوبیابه هـغـه علـت کوم چه په تثنیه کښ جاري شوے دے هغه به دلته جاري کولے شي نودډے وجینه په جمع مونث کښ هم نون خفیفه نشي پیوست کولے په اخرکښ. والله اعلم بالصواب.

۱۰ رجب المرجب ۱۴۲۸ هجری ۲۷ جولائی ۲۰۰۷ء تمت بالخیر،

الـحـمـدلله الـذی بـنـعـمتـه تتم الصالحات وصلی الله علی خیرخلقه محمد واله واصحابه واهل بیته اجمعین برحمتك یا ارحم الرحمین۔ العبد : ابوحمادنصیر الحق شالپینۍ سواتی۔

